# تفسیر ایوبی حنفی

تالیف

ملا العصر وحید الدہر ابو الفضل مولانا محمد عبد الحمید الایوبی
القندھاری العلیا خیلی الحنفی النقشبندی عم فیضہ

الناشر
مکتبۃ القراءۃ والتجوید
کانسی روڈ شالدمن کوئٹہ

بسم الله الرحمن الرحيم

په پښتو ژبه کښې اولنی او په افغاني تاريخ کښې بې ساری په
زرگونو جديدو مسئلو باندي مشتمل

# تفسير ايوبي حنفي

## وَمَآ اُبَرِّئُ ۱۳ ❁❁❁ ۱۴ رُبَمَا

لـم ټوک ۱۰

تاليف او تصنيف

د علامة العصر ابو الفضل شيخ التفسير والحديث فقيه دوران مفسر الزمان

## حضرت مولانا محمد عبد الله الايوبي

الکندهاري السليمانخيلي الحنفي النقشبندي حفظه الله تعالى

مکتبة القرآة والتجويد

کاسي روډ شالدره کوټه

# د کتاب پېژندنه

د کتاب نوم ........................ تفسير ايوبي پښتو (لسم ټوک)
مؤلف ........................ الحاج مولنا محمد عبيد الله الايوبي الكندهاري
السليمانخيلي الحنفي حفظه الله تعالى بفضله الوهبي
كمپوزر ........................ حبيب الحق حقاني (مينګل)
ټايپ ........................ حقاني كمپيوټر اداره
نشر كوونكې اداره ........... مكتبة القراء ت والتجويد كانسي روډ كوټه
د چاپ ځاى ........................ لاهور پاكستان

# يو نظر دې خوا

هيڅ يو مسلمان هم په قرآن مجيد، احاديثو يا د فقهې په كتابو كې په قصده سره غلطي نه كوي، زموږ اداره تر خپله وسه پوري د كتابو تر ليكلو وروسته تصحيح ته زياته پاملرنه كوي، چې ددې په وجه زموږ كتابونه معياري دي، خو بيا هم بنده بنده دى، يو نه يو ځاى څه ناڅه غلطي په املاء كې يا په يوه جمله كې څنې صادره سي، نو زموږ د ټولو ناظرينو څخه دا خواست دى چې كه ستاسي تر نظر داسې غلطي تېره سي لطفاً زموږ سره تماس ونيسئ، تر څو د كتاب د دوهم ځل په چاپ كې د هغې تېروتنې اصلاح وسي.

په درناوي ستاسي ورور شمس الحق شمس

بسم الله الرحمن الرحيم






الطبعة الاولى

١٤٢٩ هجري - ٢٠٠٨ ميلادي

**مكتبة القراءة و التجويد**

شارع كانسي كوئته-باكستان

رقم الهاتف ٣-٢٨٨٥٥٣٥

**MAKTABTUL-QIRRAT**
**WALTAJWEED**
KANSI ROAD QUETTA
BALOCHISTAN

ISBN 2-7451-3140-0






الحمد لله المنان، الذي علم القرآن، خلق الانسان، علمه البيان، وصدق رسوله النبي الامي للانس والجان.

وبعد: محترمو لوستونکو! دا چي تاسي د "تفسير ايوبي" لسم ټوک لولئ او د نورو ټوکونو انتظار کوئ، نو يقيناً دا ستاسي د دعاو نتيجه ده، ولي چي حضرت ايوبي مدظله العالي د عمر په داسي پړاو کي دی چي په داسي مصروفياتو او مختلفو مشغولتياوو کي يې بيا هم د الله تبارک وتعالی د کتاب وخدمت ته ملا تړلي ده او کوشش يې لاهم مخ پر وړاندي روان دی.

محترمو لوستونکو! مکتبة القرائت والتجويد زيار باسي چي د اولس تر لاسونو پوري داسي سوچه او معتمد کتابونه ورورسوي چي پکښي له عقائدو، فقه، احاديث او تفسيرونو څخه علاوه د ژوند د نورو اړخونو کتابونه شامل دي و اولس ته وړاندي کړي، تر څو هغوی خپلي علمي، عقيدوي او نوري اړتياوي په پوره کړي.

او دا هم يو حقيقت دی چي د اسلام د

دښمنانو لاسونه که چېري يوې خوا ته د
مسلمانانو په وينو لړلي دي نو د بلې خوا يې د
مسلمانانو د عقيدو پر خلاف متې رانغښتي دي
او د مسلمانانو عقيدې ورخرابوي، د مسلمانانو خلاف نشريات کوي، کتابونه چاپوي، مجلې چاپوي او ورځپاڼې چاپوي، دوی غواړي چې د مسلمانانو بچيان له خپلې نظريې عقيدې څخه واړوي، او همدارنګه يې د ساده لوحه مسلمانانو د بد لارې کولو په خاطر تبليغات پيل کړي دي چې په ژبه تقريرونه او په راډيوګانو او تلويزيونو کښې خپل نظريات او عقائد خپروي، او مسلمانان و يهوديت او نصرانيت ته رابولي، موږ هڅه کوو تر څو معتمد، سوچه او صحيح کتابونه و اولس ته وړاندې کړو، په دې موخه او مقصد کښې که موږ تر يوه حده پورې بريالي سوي هم يو، نو دا ستاسي دعاګانې او مفيدې مشورې هم دي.
موږ همېشه ستاسو د مفيدو مشورو انتظار يو، او همدارنګه موږ ستاسي د مستجابو دعاګانو په هيله يو.

هيله ده چې په خپلو ګټورو مشورو مو بدايه کړئ
ستاسو د ګټورو مشورو په هيله

(قاري) فضل الحق حقاني
خادم التجويد والقراءة کوئټه

تفسير ايوبي حنفي د نصيراحمد احمدي لخوا
سکين او pdf سو. واتساپ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

بسم الله الرحمن الرحيم

وبالحمد لله اثني. وبالصلوة والسلام على رسوله وآله اختتم داعياً بالتوفيق من الله. لتفسير هذا الجزء وقائلاً رب سهل ولا تعسر.

**درويش وايي:** چي تفسير د ديارلسم جزء په وخت كي د ماپښين د يكشنبې ورځ ديارلسمه د جمادى الاول سنه (١۴٢٩هـ ق شروع سو.

## وَمَآ أُبَرِّئُ نَفۡسِيٓۚ

يوسف عليه السلام وويل چي زه په تېرو سوو خبرو كي تزكيه او پاكي د نفس خپل نه وايم او نه مي هم عجب غرض دى بلكي اظهار د نعمت د عصمت د خداى كوم او بيان د توفيق الهي كوم كريمه " وَأَمَّا بِنِعۡمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثۡ ﴿١١﴾ " او اقتدا كوم په دې قول پسي چي نبي ابن النبي ابن النبي ابن النبي بايد همدا غسي وي. وهذا القول منه كما قال النبي ﷺ "انا سيد ولد آدم ولا فخر الى اخير الحديث.

**درويش وايي:** چي په حديث كي د انس رضي الله عنه چي مرفوع حديث دى راغلي دي چي يوسف عليه السلام چي وويل وذالك ليعلم اني لم اخنه بالغيب" جبرئيل ورته وويل "ولا حين هممت" يعني اشاره يې وهغه آيت ته وكړه "ولقد همت به" يعني زليخا قصد وكړى ويوسف عليه السلام ته د فحشا "وهم بها" يعني يوسف په مقتضى د طبع بشري قصد وكړى وزليخا ته د فحشا كمامر تفصيله. يوسف عليه السلام و جبرئيل ته وويل "ذالك اى الهم بها بسبب"

## إِنَّ ٱلنَّفۡسَ لَأَمَّارَةُۢ بِٱلسُّوٓءِ

په تحقيق نفس حيواني ډېر امر كونكى دى په بدو كارو سره يعني نفس بالطبع مائلة الى الشهوات والرزائل التي من جملتها الهم بها كمامر.

**بوه سه:** چي الف او لام د نفس لپاره د جنس دى يعني جمع النفوس التي من جملتها. نفسي امر كونكى دى په قبائح سره ولي چي نفوس ډېر ميل لري وشهواتو او منكراتو ته ولو لا ذالك (اى ميل النفوس الى الشهوات والمنكرات)

لما كان نفوس اكثر الخلق مسخرة لشهواتها او په باب کې د قضا شهوت گوناگون حیلې لتهوي، او داغه رنگه به شرور او قبائح په ډېرو خلګو کې نه واى. یعني دا ټوله شرور په سبب د میل د نفوس دي وشهواتو باطلو ته.

إِلَّا مَا رَحِمَ رَبِّيٓ

مگر نه هغه نفوس چې خدای ﷻ رحم پر وکړي او د عفت په پرده کې یې وساتي له ارتکاب څخه د قبائحو او منکراتو چې د هغو په جمله کې زما نفس دی او نفوس د ټولو انبیاء او د ملائکو وو علیهم السلام دي، اما الملائكة ددوی په خلق کې شهوت نسته. واما الانبیاء علیهم السلام ددوی په ترکیب کې که څه هم شهوات سته لکن دوی محفوظ دي له شهواتو باطله وو څخه په تائید او عصمت د خدای عزوجل.

**فائده:** کلمه د "ما" که څه هم مشهوره داده چې د غیر ذوی العقول لپاره دی او کلمه د "من" لپاره د ذوی العلم لپاره دی. نو بناء پر دغه شهرت بعض مفسرین وایي چې کلمه د "ما" په معنی د "من" ده. لکن حق داده چې جامي رحمه الله په شرح کې د کافیه ویلي دي چې کلمه د "ما" عامه ده د ذوی العلم او غیرهم دواړو ته شامله ده. قال الله تعالی "والسماء وما بناها الی اخیر الآیات فافهم"

إِنَّ رَبِّي غَفُورٌ رَّحِيمٌ

په تحقیق زما خدای عزوجل مبالغ في المغفرة والرحمة دی چې یو له رحمت څخه د خدای ﷻ دادی چې هیڅ څوک به هم د نفس او په خاطراتو د نفس نه نسي. ویرحم من یشاء بالعصمة كالانبیاء علیهم السلام او د خدای ﷻ د غفور والي او د رحم دا نتیجه ده چې یو ګناه کار که څه هم مرتکب د کبائرو ګنهو وي چې اقرار په خپل معصیت سره وکړي او ندم پښېماني ښکاره کړي خدای پاک یې ګناه وربخښي او مزید رحم هم پر کوي چې په کتابو کې د کرام کاتبین په ځای کې د سیئاتو ده ته حسنات نوشته کوي. اولئک الذین یبدل الله سیئاتهم حسنات و اولئک هم المفلحون.

وَقَالَ الْمَلِكُ ائْتُونِي بِهِۦٓ أَسْتَخْلِصْهُ لِنَفْسِي

وویل سلطان مصر یعني هغه وخت چې عذر د یوسف و ده ته ښکاره سو. او

مرتبه د يوسف عليه السلام په علم او امانت داري ده ته يقين سو کمامر، راولئ ماته يوسف چي زه يې خاص سړی وګرځوم د ځان لپاره.
**فائده**: راتلونکي و يوسف عليه السلام ته خو ساقي و لکن صيغه د جمع يعني "ايتوني" چي يې راوړه له دې کبله چي د ساقي سره نور ملکي سرداران او فوجي قومندانان لپاره د تعظيم د يوسف عليه السلام ورسره وه. ساقي و يوسف عليه السلام ته وويل اجب الملک ...... حافظ شيرازي قدس سره چنين ګفت:
مه کنعان من مسند مصر آن تو شد ...... ګاه آنست که پد رود کنی زندان را
په حديث کي د ابن عباس رضي الله عنه راغلي دي چي ساقي چي و يوسف عليه السلام ته راغلی ورته وه يې ويل چي د بندي خانې کالي دي وکاږه او هغه نوی فاخره لباس چي ملک مصر و ساقي ته د يوسف عليه السلام لپاره ورکړی و هغه واغونده، وقم الى الملک، راوي وايي چي يوسف عليه السلام چي له بندي خانې څخه وتی د محبس بنديانو ته يې په دغو الفاظو دعا وکړه اللهم اعط عليهم قلوب الاخيار (خدايه مائل وګرځوې دوی ته زړونه د بندګانو)
**درويش وايي**: چي په سبب د دعا د يوسف عليه السلام هر څوک چي يو خيرات کوي د بندي خانې بنديانو ته دې ور استوي که څه هم په محبس کي غټ غټ ګناه کاران بنديان وي چي د هيڅ جانبه نه ځني راځي په سبب د ګنهو ددوی "ولا تعم عليهم الاخبار" او ته خدای جل جلاله مه پټوې ددوی څخه خبرونه د ملک.
**درويش وايي**: چي هم دا سبب دی چي بنديان اعلم د خلګو دي په هره بندي خانه کي په خبرو د هغه ځای او ماته په تجربه دا خبره معلومه سوې ده، ولي چي ماهم په بند کي مياشتي تيري کړي دي، راوي وايي چي يوسف عليه السلام چي د بندي خانې څخه ووتی پر دوازه د سجن يې دا خبري نوشته کړې هذا قبور الاحيا" دا بندي خانه قبرونه دي د ژوندو خلګو "وبيت الاحزان" او د غمو سرای دی "وتجربة الاصدقا" او ځای د تجربې د خدای جل جلاله د خپلو نيکو بندګانو دی "وشماتة الاعدا" او ځای د خوشالی د دښمنانو د بندي خانې، او يوسف عليه السلام غسل وکړی او د بدن خيري يې له ځانه لېري کړې او نوي فاخره کالي يې واغوستل وقصد

الملک. نو دی چي د ملک دروازې ته ورسېدی داسي دعا يې وکړه "حسبي ربي من دنياى وحسبي ربي من خلقه عزجاره وجل ثنائه ولا اله غيره. بيا د ملک و دربار ته ورداخل سو چي پر ملک يې سترګي ولګېدلې داسي دعا يې وکړه "اللهم اني اسئلک بخيرک من خيره واعوذبک من شره وشر غيره" نو ملک چي يوسف عليه السلام ته وکتل. يوسف عليه السلام السلام عليکم ورته وويل يعني بالعربية ملک ورته وويل ما هذا اللسان؟ قال يوسف لسان عمي اسماعيل عليه السلام بيا يې ملک ته دعا وکړه په عبراني ژبه ملک ورته وويل، ما هذا اللسان؟ يوسف عليه السلام ورته وويل لسان آبائي، د ملک دغه دوې ژبې نه وې زده.

وهب بن منبه رحمه الله وايي چي د ملک اوويا ژبې زده وې. نو هر وخت چي به ملک په يو ژبه سره د يوسف عليه السلام سره خبري کولې يوسف عليه السلام به هم په هغه ژبه جواب ورکوی، نو د يوسف عليه السلام دواوويا (٧٢) ژبې زده وې عربي او عبراني پر ملک بالا ؤ. نو ملک په تعجب کي واقع سو د يوسف عليه السلام د دواوويا ژبو له زدکړې څخه مع حداثة سنه يوسف عليه السلام په دې وخت کي د دېرشو کالو ؤ. نو يې پر تخت کښېناوه له ځانه سره.

فَلَمَّا كَلَّمَهٗ قَالَ اِنَّكَ الْيَوْمَ لَدَيْنَا مَكِيْنٌ اَمِيْنٌ

چي ملک د يوسف عليه السلام سره په خبرو شروع وکړه اوله خبره يې دا ورته وکړه چي په تحقيق ته نن ورځ زموږ په دربار کي خاوند د مکانت يعني جاه وجلال يې او امين يې پر هر شي، بغوي رحمه الله وايي چي ملک و يوسف عليه السلام ته وويل چي زما دا خوبنه ده چي تعبير زما د خوب ستا څخه شفاهاً واورم، يوسف عليه السلام ورته وويل نعم! تا اووه بقرات سپين تنديان ډېر ښائسته ليدلي دي په خوب کي چي دا بقرات له رود نيل څخه راووتلې او تر تيانو يې شيدې توېدلې. او بيا وروسته له لشو څخه د نيل اووه ډنګري غواوې دې وليدلې چي راووتلې چي نهايته بدرنګه وې وچي غولانځي يې وې، غابونه او پښې يې لکه د درندګانو وې، نو دې اوو ډنګرو غواوو هغه چاغي غواوي وخوړلې حتی چي هغوکي پوستکي د هغو يې ترښکرو پوري وخوړلې او ته په هغه تعجب کي وې چي اووه



Scanned by CamScanner

وږي تکشنه او اووه وږي تکتور وچ دي ولیدله او پر یو ځای راشنه وه وروسته هغه وچو تورو وږو پر شنو وږو احاطه وکړه او هغه یې پټ کړه. فهذا ما رئیت. نو له خوبه راویښ سوې په ډېر خوف کې. ملک ورته وویل چې زما تر خوب ستا بیان اوضح دی. نو ملک و یوسف علیه السلام ته وویل ما رأیک ایها الصدیق.
یوسف علیه السلام ورته وویل چې ته په دې اولو کلو کې چې ډېر آباد به وي خلګ امر کړه چې هر ځای دي کښت کوي او خالي ځمکه مه پرېږدئ او حکومت دي هم سرکاري ځمکې وکري. او چې کښت ورسېږي د غنمو وږي د ساق سره په انبار خانو کې جمع کوه تاچې په وروسته اوو کلو کې غنم ستاسې په ښه درسي او پروړ به یې ستاسې د حیواناتو په ښه درسي. او ته خپل عاملان امر کړه چې پینځمه حصه د هغو دي د مصر د خلګو خوراکې او د حیواناتو د علف لپاره جلا کړي. او خلګ حاضر کړه چې هر سړی دي له خپلو غلو څخه جلا کړي پینځمه حصه او په انبار خانو کې دې د دولت جمع کړي په خپلو وږو کې تاچې شپږي یې ونه خوري. یوسف علیه السلام ورته وویل چې هغه زخیره کړې غله او د سرکاري ځمکو غله ستا د اهل او ماحولها بس ده یعني په کلو کې د قحط چې اووه کاله به دوام وکړي. او تاته به خلګ له اطرافو څخه راځي لپاره د خریدارۍ د غلې. او تاته به دومرې خزانې د نقودو په بیت المال کې جمع سي چې هیڅ ملک به تر تا دمخه نه وي جمع کړي. ملک و یوسف علیه السلام ته وویل چې څوک به دا کار پر غاړه واخلي چې په کلو کې د خصب به غلې جمع کوي او په کلو کې د قحط به یې خرڅوي او نقود به په بیت المال کې جمع کوي یعني دا خو لوی جنجال دی.

قَالَ اجْعَلْنِي عَلَىٰ خَزَائِنِ الْأَرْضِ ۖ إِنِّي حَفِيظٌ عَلِيمٌ ﴿٥٥﴾

یوسف (علیه السلام) وملک ته وویل چې ما مقرر او آمر کړه پر خزانو د غلو د اهل مصر او د اموالو د اهل مصر. په تحقیق زه ساتونکی یم د دغو خزانو او خبریم په صرفولو د هغو خزانو پر مستحقینو باندې په کلو کې د قحط او پر خرڅولو د هغو غلو پر اهل مصر او اطرافو باندې په ثمن مناسب سره یعني چې نه سیخ وسوځي او نه کباب، دا د پښتنو یو متل دی.

**درویش وایي:** چي اهل تفسیر یعني روح المعاني، روح البیان، مظهري، بیضاوي او قرطبي ټوله پر دې متفق دي چي یوسف علیه السلام مدح د ځان وکړه په حفیظ علیم سره او طلب د امارت یې وکړی بقوله "اجعلني آه" دا ټوله لپاره د طلب د جاه او جلال نه وه بلکې ددې لپاره وه چي احکام د خدای پاک په ملک کي جاري کړي او اقامت د حق او اظهار د عدل وکړي چي د مذکوره امورو لپاره خدای پاک انبیاً کرام علیهم السلام را استولي دي. یوسف علیه السلام په دې پوهېدی چي اجرا د دغو امورو بل څوک نسي کولای بېله ده، هم دا سبب دی چي اختلاف د مهاجرینو او انصارو رضي الله عنهم د علیه الصلوة والسلام تر وفات وروسته چي مهاجرین او انصار رضي الله عنهم سره یو ځای سوه او انصارو وویل منا امیر او مهاجرینو وویل نحن الامرأ وانتم الوزرأ، حتی وروسته تر قیل وقال د ابوبکر صدیق رضي الله عنه سره بیعت په اتفاق سره وکړل سو، او دغه معارضه د حضرت علي او د معاویه رضي الله عنهما هم پر دې بنأ وه چي علي رضي الله عنه ځان ښه قادر باله پر انفاذ د امورو د شریعت او عدالت.

**مسئله:** درویش وایي چي ټوله مفسرین رحمهم الله پر دې متفق دي چي طلب د قضأ او امارت او اظهار ددې چي زه ددې مستعد یم روا دی که یې پر ځان اعتماد ؤ چي زه دا کار اجرأ کولای سم بلکې واجب دی که بل مستعد ددې کار نه ؤ.

**فائده:** له دې آیت څخه دا معلومه سوه چي تولی او طلب د قضأ او امارت د سلطان کافر یا ظالم څخه روا دی که سړی په دې پوهېدی چي زه واظهار نه د حق او سیاست د خلګو نه رسېږم بېله دې کافر او جائر. ویدل علیه ان سلف هذه الامة یقولون القضأ من ائمة الجور کما یدل علیه التاریخ الاسلامي.

**حکایت:** علامة ابن الشحنة رحمه الله وایي چي امیر تېمور لنګ چي یو جابر ظالم پادشاه ؤ او د اسلام د علماؤ ډېر سخت دښمن ؤ که څه دی هم مسلمان خو ؤ او له علمأ څخه یې تعنتي سوالونه کول چي د هغو جوابونه سبب د قتل د هغو علماؤ وګرځېدله. مثلاً یو ځای چي به ده فتح کړی، نو دا بله ورځ به یې علمأ د هغه ځای را جمع کړل او ورته وه به یې ویل چي پرون زموږ او ستاسي تر منځ معرکه وسوه څوک پر حق او څوک پر باطل وه او د کوم طرف مړي شهیدان دي؟

که به ملا یانو ورته وویل چي ته پر باطل یې موږ پر حق یو او زموږ مړي شهیدان دي. تیمور به خپلو عسکرو ته امر وکړی چي دغه ټوله ملا یان قتل کړئ ولي موږ خو مجاهدین یو دوی پر موږ د باطل حکم وکړی. او که به ملا یانو ورته وویل چي ته پر حق یې موږ پر باطل یوو. نو به یې ملا یانو ته وویل چي تاسي خو پر خپل ځای بېغمه ناست واست، موږ ناحقه حمله دربانديِ وکړه. نو حق مو ولي پټ کړی. عسکرو ته به یې امر وکړی چي دغه تغیه واجب ملایان ټوله مړه کړئ. نو تیمور لنګ چي حلب فتح کړی. نو پر رواج دده بنا ټوله ملا یان د حلب یې را جمع کړل وروسته تر دې چي فتح د حلب ده عنوةً او په زوره وکړه او ډېر مسلمانان یې قتل کړه. ابن الشحنة رحمه الله وایي چي موږ د حلب علماً او قضات توله یې ورو غوښتلو بنه ګړی موږ د تیمور لنګ په حضور کي منتظر ولاړ وو. بنه ګړی وروسته یې راته وویل چي کښېنئ، وروسته تیمور د حلب د علماؤ مشر ته وویل چي دده په زعم مولوي عبد الجبار بن العلامة نعمان الدین حنیفي وُ چي ته د حلب وقاضیانو او ملا یانو ته ووایه چي زه له دوی څخه سوال کوم د یوې مسئلې چي ما د هغې مسئلې سوال له علماؤ څخه د سمرقند. بخاری او هرات او د ټولو ملا یانو څخه د هغو بلادو چي ما فتح کړي دي هم سوال کړی دی هغو واضح او قناعت بخښونکی ځواب نه دی راکړی تاسي د هغو مثل مه ګرځئ او ماته به قناعت بخښنه ځواب راکوئ، نو عبد الجبار مذکور موږ ته وویل چي "ان سلطاننا یقول" چي پرون زموږ او ستاسي تر منځ جنګ وسو او دو طرفه مړي وسړه فمن الشهید منا او منکم یعني قتیلنا او قتیلکم. ابن الشحنة وایي چي زما په زړه کي خدای ﷻ یو بنه او معقول ځواب وګرځاوه، هغه دا چي یو اعرابي و علیه الصلوة والسلام ته راغلی چي یو سړی چي جنګ کوي د غنیمت لپاره او بل سړی د خپل شجاعت د اظهار لپاره فمن الغازي في سبیل الله؟ علیه الصلوة والسلام ورته وویل من قاتل لیکون کلمة الله العلیا فهو في سبیل الله. نو ابن الشحنة تیمور لنګ ته وویل من قاتل لیکون کلمة الله هي العلیا فهو شهید. یعني ابن الشحنه نه پر خپلو خلګو یوازي او نه د تیمور پر خلګو یوازي د شهید

حکم وکړی. نو تیمور ورته وویل خوب گفتی خوب گفتی، او علامه عبدالجبار هم راته وویل ما احسن ماقلت یعني څه ښه خواب دی ستا.

ابن الشحنة رحمه الله وايي چي د الفت دروازه زموږ او د تیمور تر منځ خلاصه سوه، نو تیمور څو نوري پوښتني هم وکړې، اخيري پوښتنه يې دا وه چي ته څه وايي په علي او معاويه رضي الله عنهما کي يعني ددوی تر منځ پر خلافت جنگ واقع سوی و. ما ورته وويل لاشک ان الحق مع علي رضي الله عنه وليس معاوية رضي الله عنه من الخلفاً. تیمور راته وويل چي ته ووايه چي علي رضي الله عنه على الحق و او معاويه رضي الله عنه ظالم و. ابن الشحنة وايي چي ما ورته وويل چي په هدايه کي راغلي دي ويجوز تقليد القضات من امرا الجور فان كثيراً من الصحابة والتابعين قلدوا القضا من معاوية مع ان الحق مع علي رضي الله عنه. نو امير تیمور لنگ خوشاله سو واحسن الى العلماً والقضات وسائر اهل حلب.

**درویش وايي:** چي راويان د قصې وايي چي بغوي رحمه الله په خپل سند سره د ابن عباس رضي الله عنهما څخه داسي روايت کړی دی چي رسول الله ﷺ وويل رحم الله اخي يوسف. که ده دغه مطالبه د ملک مصر څخه نه وای کړې اجعلني على خزائن الارض ملک، ملک مصر به فوراً دی پر عهده د رئيس د خزائن الارض مقرر کړی وای لکن چي ده مطالبه وکړه يو کال د ملک مصر سره په کور کي د هغه تېر کړي وروسته کال ملک مصر يوسف عليه السلام وروغوښتی او تاج يې پر سر ور کښېښود او خپله توره يې دده په غاړه کي وراچول. او يوسف عليه السلام ته يې يو تخت کښېښود چي د سرو زرو و او په ملغلرو او قيمتي جواهراتو ښائسته کړل سوی و او سربېره پر تخت ورښمين استبرق اوار و او شپېته نازکي پردې ثم امره ان يخرج فخرج متوجاً يعني تاج يې پر سر و چي لون (رنگ) يې لکه د اور و او مخ يې لکه سپوږمۍ. نو يوسف عليه السلام ورغلی پر تخت کښېنستی او ټوله امراؤ نظامي او ملکي و يوسف عليه السلام ته يې غاړه د اطاعت کښېښوله. ملک مصر خپل کور ته ولاړ او د مصر ټوله کارونه يې و يوسف عليه السلام ته حواله کړه او قطفير د زليخا مېړه يې معزول او بر طرفه کړی او د هغه پر ځای يې يوسف عليه السلام مقرر کړی يعني په اصطلاح د مصر صدر اعظم يې وگرځاوه. ابن زيد رحمه الله وايي چي ملک مصر ريان په مصر کي ډېري خزاني درلودي ټولي يې يوسف عليه السلام ته

وسپارلي، او وه يې ګرځاوه امر او قضا د يوسف عليه السلام په ټولو کې نافذ. او په يو ناتائيد شده روايت کې راغلي دي ملک مصر ريان ايمان هم راوړي.

ابن جرير او ابن حاتم له ابن اسحاق رحمه الله څخه داسي روايت نقل کړی دی چي قطفير په نژدې ورځو کې مړ سو او زليخا کونډه سوه. ملک مصر زليخا و يوسف عليه السلام ته په نکاح کړه. ما ښام چي ډېره ارمان زده او ډېره زمانه په غم کې د يوسف عليه السلام په کړاوونو اخته د خپل محبوب يوسف سره په شپه کي يو ځای سوه. نو يوسف عليه السلام زليخا ته وويل چي دا زما او ستا جمع والی په نکاح صحيح ښه نه دی تر هغه چي تا زما څخه خوښتل يعني زنا. زليخا ورته وويل ايها الصديق لا تلمني على ما مضى فاني كنت امرئة حسناً غاية الحسن او جمال فائق کي او زما مېړه قطفير عنين و چي دخول په ښځه يې نسوای کولای فعلتني نفسي على ما رئيت فدخل بها ووجدها باكرة فدخل بها وولدت لها افرائيم وميتا.

**درويش وايي**: چي دغه و صحيح حال د يوسف عليه السلام او زليخا د اجتماع او د نکاح. درويش همېشه خوشه چين دی د کتاب د علامه برسوي رحمه الله چي روح البيان يې نوم دی لکن موضوع د وصال او نکاح د يوسف عليه السلام او زليخا په دومره اوږده بيان سره بيان کړي ده چي نه يې عقل مني او نه هم يو حديث نبوي که څه هم ضعيف وي او نه اقوال د صحابه کرامو رضي الله عنهم او نه اقوال د تابعينو او تبع د تبع تابعينو رحمهم الله او نه اقوال د ائمة اربعة مجتهدينو رحمهم الله ددغه اوږد بيان تائيد او ښخلي کوي او په هر ځای کي ددې اوږد بيان بيتونه د کتاب (يوسف زليخا) چي تصنيف د علامه عبد الرحمن جامي قدس سره راوړي، او کتاب د يوسف زليخا په بيان کي حسن د زليخا نهايت اهانت انګېزه ابيات ويلي دي كما لا يخفى على من طالع الكتاب المذكور.

**درويش وايي**: چي نه پوهېږم چي مأخذ ددې بيانا تو څه دی الا چي امکان لري چي دغه بيانات د يهودانو څخه په عربي ته رانقل سوي وي ثم وثم الى يومنا هذا. ددغه موضوع بيان په دې ځای کي زموږ اهل السنة والجماعة لپاره د پټې پېژوان دی، غير مقلدين لکه سلفيه او وهابيه او نور همېشه په ورته خبرو

کي موږ ته په غور راکوي.

**تنبیه:** غرض د درويش په مذکوره بياناتو کي توهين د علامه جامي رحمه الله يا د علامه برسوي رحمه الله نه دی حاشاً لله. بلکې خپل معذرت بيانول دي چي ما ولي له دې اوږده بيان څخه ددې دوو کتابو صرف نظر وکړی او نقل مي نه کړه. ولله در صاحب روح المعاني والقاضي البيضاوي والمظهري والامام العلامة الرازي چي تفسير کبير يې تصنيف دی والعلامة القرطبي رحمهم الله چي په هغو کي هيڅ تعرض ودې بيان طويل ته نشته...... بيت:

تو گوی آنچه دانی سخن سود مند ......... وگر هيچ کس را نيايد پسند

والله اعلم بحقيقة الحال واليه المرجع والمآل.

**درويش وايي:** چي ما په يو کتاب کي وليدله چي سيد الشهدا حمزه رضي الله عنه چي له موره پيدا کېدی نهه گزه يې د سينې عرض ؤ. نو دا خبره امکان پذير ده او که صرف کذب دی.

**وَكَذٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِى الْأَرْضِ ۚ يَتَبَوَّأُ مِنْهَا حَيْثُ يَشَآءُ ۚ**

دغه رنگه لکه چي موږ عزت ورکړی ؤ يوسف عليه السلام ته په دربار کي د ملک مصر. موږ تمکين او عزت ورکړی ؤ ده ته په ځمکه کي د مصر. دی نازلېدی يعني ورتلی له بلادو او له قری وو څخه هغه ځای چي دده به خوښه وه يعني لپاره د سياست داری د مملکت د مصر او نظر کول په حال کي د رعاياوو کما هو من لوازم رتبته.

**نُصِيبُ بِرَحْمَتِنَا مَن نَّشَآءُ ۖ وَلَا نُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ ﴿٥٦﴾**

موږ رسول کوو په نعمت سره خپل هغه چا ته چي زموږ خوښه وي في الدنيا والآخرة. او موږ نه ضائع کوو اجر او ثواب د خپلو مخلصو او صابرو بندگانو ومنهم هم يوسف عليه السلام بلکي کامل ورکوو اجور ددوی عاجلاً وآجلاً.

**وَلَأَجْرُ الْآخِرَةِ خَيْرٌ لِّلَّذِينَ آمَنُوا وَكَانُوا يَتَّقُونَ ﴿٥٧﴾**

او ثواب د اخرت بهتر او ښه دی تر نعمتو د دنيا لپاره د هغو کسانو چي ايمان يې راوړی وي او هنوز هم د خدای جل جلاله له عذاب څخه بېرېږي.

تاريخ خبري كوي او محققين د مفسرينو يې تائيد كوي چې څه وخت چې اختيارات د مملكت د مصر د ريان ملك مصر له خوا څخه ټوله و يوسف عليه السلام ته حواله سوه، نو يوسف عليه السلام په ښه تدبير سره جمع د غلاتو په انبار خانو كې د مملكت كوله او ډېري كلاوي يې د غلو د جمع كولو لپاره په مخصب كلو كي لپاره د قحط د كلو جمع كړي وې او جمع كولې يې وانفق الناس بالمعروف يعني في السنين المخصبة حتى چې د قحط كلونه په ډېر هول او بېره سره داخل سوه چې مصريان قبل ازان داسي قحط نه ؤ ليدلی. او يوسف عليه السلام په دې كلو كي د ملك مصر او ده د فاميل د ورځي پر دوولس بجې مثلاً ډوډۍ ور استول حتى چې ملك مصر به ناري وهلې يا يوسف الجوع الجوع. نو په اووه كاله كي د قحط خلكو چې هر څو غلې جمع كړې په سنوات محصبه وو كي هغه ټولې تمامي سوې، نو د مصر خلكو و يوسف عليه السلام ته رجوع وكړه د غلو په باره كي، يوسف عليه السلام د غلو د خرڅولو پيل وكړی پر رعاياوو د مصر او د اطرافو. په اول كال كي يې په نقدو روپو پر خرڅول يعني الدراهم والدنانير. حتى چې د مصريانو په لاس كي نه درهم او نه دنانير پاته سوه. او په دوهم كال يې د ښځو په زېوراتو او جواهراتو پر خرڅول حتى لم يبق في ايدي الناس منهما شيئ. او په دريم كال يې په مواشيو او چارپايانو غلې پر خرڅولې حتى چې د خلكو دا شيان هم ختم سوه. او په څلورم كال يې په مريانو او مينځيانو غله پر خرڅول حتى چې اهل مصر ته نه مريي پاته سو نه مينځه. او په پينځم كال يې د اهل مصر د مځكو او د سرايو په معاوضه غلې وركولې حتى چې دا هم ختم سوې، او په شپږم كال يې ددوی د اولادو په استرقال غله وركوله. حتى اولاد د اهل مصر يې ټوله مريان او مينځياني وګرځول. او په اووم كال يې په خرڅولو سره د خپلو ځانو د مصريانو غله وركول.

**درويش وايي:** چې پر بنا ددې روايت په شريعت كي د يوسف عليه السلام بيع د اولادو او انفسو روا وه كه څه هم زموږ په شريعت كي دا نه ده روا. نو مصريانو به ويل چې موږ تر داسي آمر اعلى واجل تر يوسف عليه السلام طول اعمارنا نه ؤ ليدلى نو يوسف عليه السلام سلطان مصر ته وويل چې څرنګه يې بولي چې تا كار ماته

وسپاره ځرنګه مې خزانې ټولې د نقودو، سرو، سپينو زرو او جواهراتو درډکې کړې او ځرنګه مې ځمکې او سرايونه د اهل مصر ستا ملک وګرځاوه او ځرنګه اهل مصر او اولاد ددوی مې ستا مريان وګرځول، يوسف عليه السلام ورته وويل چې اوس نو ستا ځرنګه خوښه ده. ملک ورته وويل چې خوښه ستا ده زه دې تابع يم. نو يوسف عليه السلام ورته وويل فاني اشهد الله عزوجل واشهدک چې زما له خوا ازاد دې ټول اهل مصر او اولادونه ددوی او ټولې ځمکې او سرايونه او مواشي او حيوانات ددوی پر دوی رد دي.

**درويش وايي:** چې په دې کار د يوسف عليه السلام سره ټوله اهل مصر دده شکر ګذاره سوه او دده فضل او عدل يې په زړو کې ځای پيدا کړی.

تاريخ قديم وايي چې يوسف عليه السلام د قحط په شپو او ورځو کې په ډوډی ځان نه مړاوه، خلګو ورته وويل چې ستا په لاس کې خو خزائن مصر دي ته ولې وږی ګرځې؟ يوسف عليه السلام به ورته ويل که زه ځان موړ کړم د وږو خلګو حال به مې هېر سي. او يوسف عليه السلام به د ملک اشپز ته ويل چې پر نصف نهار و ده ته ډوډی مهيا کوه تاچې و ملک ته د لوږې درک ورمعلوم سي او وږي خلګ هېر نه کړي.

تاريخ وايي چې له اطرافو څخه د ټولو خلګو راتګ مصر ته شروع سو، د يوسف عليه السلام څخه د غلې د پورولو لپاره يعني چې را يې نسي. او د يوسف عليه السلام دا قانون ؤ چې هر چا ته به يې يو بار د اوښ ورکاوه که څه هم ډېر معتبره سړی وای له جهته د عدالت بين الناس وکثرة الازدحام عليه. تاريخ وايي چې ددې قحط اثر تر کنعان او شام پورې ورسېدی. او پر يعقوب عليه السلام چې د يوسف عليه السلام پلار ؤ اثر د قحط ولوېدی. او پر ده او زامنو او عيال ځمکه د کنعان د لوږې له کبله تنګه سوه، او يعقوب عليه السلام او زامنو يې په صحرا کې ژوند کاوه اوښان او پسونه يې درلودل او دوی ته دا اوازه ورسېدله چې په مصر کې يو ملک صالح دی يعني نه د يوسف په نامه، چې دا ملک صالح و خلګو ته په ارزانو قيمت غله يو د اوښ بار ورکوي، نو يعقوب خپل زامن د مصر پر خوا راهي کړل مګر بنيامين چې د يوسف عليه السلام سکه ورور ؤ ځنې وه يې ګرځاوه خوفاً مما فعلوا بيوسف،

**درویش وايي:** چي اول چي يعقوب عليه السلام زامن امر کړل چي تاسي مصر ته ولاړ سئ د ملک مصر څخه به غله راوړئ زامنو يې ورته وويل يا نبئ الله کيف يطيب قلبک چي ته موږ استوي وفرعونيانو ته د مځکي. او ته خبر يې په عداوت له موږ سره او موږ ته امن پر دې نسته چي دوی به موږ ته پر ځای د غلي شر راورسوي.

**درویش وايي:** چي په هغه وخت کي د مصر مځکه دوی د جبابرو مځکه بلله لزيادة الجور والظلم فيها، يعقوب عليه السلام ورته وويل چي زه خبر سوی يم چي په مصر کي هم دا اوس يو ملک عادل صالح سړی پر سر د حکومت راغلی دی چي د چا سره ظلم نه کوي، نو ولاړ سئ مصر ته او ملک مصر ته زما سلام هم ووايāست ستاسي د غلو د ورکړي حاجت به هم تر سره سي ان شا الله تعالی.

**پوښتنه:** د کنعان او د مصر تر منځ خو اته منزله مسافت ؤ لکن يعقوب عليه السلام ته سره ددې چي دروازه د وحي ورته خلاصه وه ولي ده ته د يوسف عليه السلام ځای نه ؤ معلوم، او بيا ولي يوسف عليه السلام خپل پلار په خپل حال نه خبراوه؟

**خواب:** دا دواړه کارونه معطل وه، په اراده پوري د خدای عزوجل مربوط وه الی ان يأتي وقت الملاقات المسمی في علم الله تعالی. کريمه ولايسئل عما يفعل وهم يسئلون"

## وَجَآءَ إِخْوَةُ يُوسُفَ فَدَخَلُوا۟ عَلَيْهِ فَعَرَفَهُمْ

او راغله ورونه د يوسف (عليه السلام) او دوی داخل سوه پر يوسف عليه السلام په اجازه دده او يوسف عليه السلام پر خپل تخت ناست ؤ په ډېر زينت او دبدبه سره، نو يوسف دستي دوی وپېژندل، يو خو لقوة فهم وذکاوة يوسف، او بل په دې سبب چي دوی پر هغه حال وه چي دی يې وځاه ته اچاوه نه يې هيئت بدل سوی ؤ او نه يې لباس په دواړو حالاتو کي. او بل دا چي خدای پاک و يوسف عليه السلام ته په هغه وخت کي چي دی ورڅو ځاه ته واچاوه داسي ويلي وه "لتنبئنهم بامرهم هذا وهم لايشعرون" نو يوسف عليه السلام په دې وپوهېدی چي دوی به ماته حتماً راځي په قرار د وعدې د خدای جل جلاله، نو مجرد يوسف (عليه السلام) خبر سو چي له کنعان څخه ابناً يعقوب عليه السلام راغلي دي قبل الرؤية يې دوی وپېژندل.

وَهُمْ لَهُ مُنْكِرُوْنَ ﴿۵۸﴾

او دوی له يوسف (عليه السلام) څخه منکر وه يعني نه يې پېژندی.

(۱) اول په سبب د طول عهد په منځ کي د فراق او وصال، ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي له هغه وخته څخه چي ورڼو دی وڅاه ته واچاوه او تر دې وخته د دخول پر يوسف عليه السلام څلوېښت کاله تېر سوي وه.

(۲) په وخت کي د اچولو وڅاه ته يوسف عليه السلام نهايت صغير السن ؤ.

(۳) د ورڼو يې عقيده وه چي يوسف به له وخته لا مړ وي او ددوی له ذهنو څخه يوسف عليه السلام بېخي وتلی ؤ.

(۴) يوسف عليه السلام خو دوی په صغر السن او خواره جامه کي ليدلی ؤ او اوس ځوان په حسن او جمال پر تخت شاهي ناست ؤ او قومندانان د مصر په سلامي لاس پر سينه ورته ولاړ و، نو څه يې پېژندی چي دا به زموږ ورور يوسف وي.

مفسرين رحمهم الله وايي چي يوسف عليه السلام چي دوی ته وکتل تجاهلاً يې په عبراني پوښتنه ځني وکړه چي تاسي څوک ياست او د څه شي لپاره زما ملک ته داخل سوي ياست؟ دوی ورته وويل چي موږ يو قوم يو د اهل شام رعاة الشياه موږ ته مصيبت د قحط او لوږي رارسېدلی دی د غلې د رانيولو لپاره راغلي يو. يوسف عليه السلام ورته وويل چي شايد تاسي زما د مملکت د کشف الحال د جاسوسي لپاره راغلي ياست؟ قالوا لا والله مانحن بجواسيس. انما نحن بنو اب واحد وهو شيخ کبير ونبي من انبياء الله عزوجل. يوسف عليه السلام ورته وويل چي تاسي څو ورڼه ياست دوی ورته وويل چي موږ اصلي دوولس ورڼه يو، لس له يوې موره يو او دوه د بلې مور او تر ټولو کشر چي پر پلار ډېر گران هم ؤ يوسف يې نوم ؤ چي موږ يو وخت يوسف د مېلې لپاره د ځان سره صحرا ته د کنعان بېولی ؤ د پلار په اجازه، نو موږ سات تېری کاوه او يوسف مو د کالو ته کښېنولی ؤ چي ناگاه لېوه راغلی يوسف يې وخوړی. يوسف عليه السلام ورته وويل چي هغه بل ورور مو ولې نه دی راوستلی. دوی ورته وويل چي هغه د يوسف سکنی يعني د موره يې ورور ؤ، نو پلار راڅخه وگرځاوه چي د فاقد زوی يوسف مينه يې په

ماتول، نو يوسف عليه السلام ورته وويل چې زه نه پوهېږم چې ستاسي خبري به صدق او رشتيا وي او که نه؟ دوی ورته وويل چې موږ په مصر کې هيڅ څوک نه پېژني چې زموږ پر صدق تاته شاهدي ادا کړي. نو يوسف عليه السلام ورونو ته هر يوه ته يو بار د اوښ غله ورکړه او نوره مرسته د سفر خرڅ يې هم ورکړې.

وَلَمَّا جَهَّزَهُمْ بِجَهَازِهِمْ قَالَ ائْتُونِي بِأَخٍ لَّكُم مِّنْ أَبِيكُمْ

نو چې کار سازي وکړه يوسف (عليه السلام) ددوی د سفر، نو دوی ته يې وويل چې ماته به راولئ ستاسي ورور د پلار له خوا څخه که ستاسي خبري رشتيا وې چې زه په دغه سره راضي، او يو اوښ بار به د ورور لپاره هم درکړم او هم به مو نازوم.

أَلَا تَرَوْنَ أَنِّي أُوفِي الْكَيْلَ وَأَنَا خَيْرُ الْمُنزِلِينَ ﴿٥٩﴾

تاسي نه وينئ چې زه پيمانې د غلې پوره ورکوم او خير د مهمان پرستانو يم او يوسف عليه السلام دوی ته ښکلې مېلمستياوې ورکړي وې او ډېر يې نازولي وه.

فَإِن لَّمْ تَأْتُونِي بِهِ فَلَا كَيْلَ لَكُمْ عِندِي وَلَا تَقْرَبُونِ ﴿٦٠﴾

که مو ورور نه راوستې، نو بيا تاسي ته پيمانې د غلې نشته او نه به ماته نژدې راځئ.

قَالُوا سَنُرَاوِدُ عَنْهُ أَبَاهُ وَإِنَّا لَفَاعِلُونَ ﴿٦١﴾

دوی ورته وويل پلار خو زموږ د پاته ورور په فراق نه راضي کېږي يعني چې پلار د يوسف عليه السلام مفقود مينه په ماتوي لکن بيا هم موږ به وپلار ته بهانه وکړو او ډېر کوشش به وکړو په طلب کې د ورور او موږ به دا کار وکړو يعني پاته ورور به تاته حتماً راولو. نو يوسف عليه السلام چې يو ورور به ماته گرو او ضامن پرېږدئ تر هغو چې تاسي ورور راولئ. نو دوی پچه سره واچول يعني قرعه، نو قرعه د شمعون د پاته کېدلو ووتل. او شمعون د يوسف عليه السلام چې ورونو وژی ډېر کوشان ؤ چې وژنئ يې مه وڅاه ته يې واچوئ. نو شمعون ورور يې پاته سو.

وَقَالَ لِفِتْيٰنِهِ اجْعَلُوْا بِضَاعَتَهُمْ فِيْ رِحَالِهِمْ

او وویل یوسف علیه السلام خپلو نوکرانو ته چي د کیل پر کار گمار سوي وه. وگرځوئ هغه ثمن چي دوی د غلې د رانیولو لپاره راوړی و ددوی په جولو کي یعني په پټه. دا بضاعت ددوی صحیح داده چي دراهم وه. او بعض مفسرین وایي چي یو څرمني او یو څو جوته چوتي وې.

**پوه سه:** چي "فتیان" جمع د "فتی" و مریې ته وایي که ځوان او که سپین ږیری وي، که څه هم فتی ځوان ته وایي. اما مریی که ځوان وي او که سپین ږیری باداریې په خدمت کي د ځوان کار ځني اخلي.

**نکته:** د یوسف علیه السلام یو غرض خو احسان و د ورڼو سره. او بل غرض یې دا و چي بېرېدی چي بیا به نه سي را مصر ته د غلې د رانیولو لپاره، ولي چي د پلار سره به دومره شی نه وي چي دوی د غلې لپاره بیا را واستوي.

لَعَلَّهُمْ يَعْرِفُوْنَهَآ اِذَا انْقَلَبُوْٓا اِلٰٓى اَهْلِهِمْ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿۶۲﴾

شاید دوی به پېژني حق د رد د بضاعت او حق د احسان زما یرد البدلین یعني غله او قیمته یې. چي دوی خپل کور او اهل ته ورسي شاید بیا به د غلې د پوره لو لپاره مصر ته راسي.

**درویش وایي:** چي رد د بضاعت دوې وجهې دي یو کرامت د ورونو دی او په اول وهلت پر او احسان د ملک مصر چي یوسف علیه السلام و دوی ته به معلوم سي نو وروسته به دلېرانه عود وکړي. او بله وجه یې داده چي د یوسف علیه السلام پاک وجدان دا نه قبلوله چي د ورڼو او د پلار څخه سره د احتیاجه ددوی بضاعت ددوی واخلي، لکن درویش وایي چي صحیح سبب د رد د بضاعت دا و لکه چي کلبي رحمه الله بیان کړی چي دا بضاعت یې ځکه ور رد کړی چي د پلار سره به یې نور مبلغ نه وي چي دوی د بلې پلا لپاره مصر ته راواستوي د غلې د رانیولو لپاره.

فَلَمَّا رَجَعُوْٓا اِلٰٓى اَبِيْهِمْ قَالُوْا يٰٓاَبَانَا مُنِعَ مِنَّا الْكَيْلُ

هغه وخت چي دوی بیرته وطن ته ستانه سوه او د پلار سره یې ملاقات وسو، نو دوی وویل.

**درویش وایي**: چي اول خو دوی د ملک مصر حالات و یعقوب علیه السلام ته بیان کړل په دې الفاظو "قدمنا علی خیر رجل انزلنا واکرمنا" موږ ته یې داسې د اوسېدلو ځای راکړی او زموږ فوق العادة عزت یې وکړی لو کان من آل یعقوب ما اکرمنا کرامته. که د آل یعقوب سړی وای هم دومره عزت به یې موږ ته نه وای راکړی لکه چې ملک مصر راکړی. او یعقوب علیه السلام زامنو ته وویل که بیا مصر ته ورغلاست پر ملک مصر زما سلامونه وواياست او ورته وواياست چې موږ پلار تاته ډېرې دعا وي وکړې او طلب د رحمت د خدای جل جلاله یې ستا لپاره وکړی بما اولیتنا، وروسته یې پلار ورته وویل چې شمعون مو څه کړی. زامنو یې ورته وویل چې هغو خو ملک مصر په ګرو کې وګرځاوه او ټوله قصه یې ورته وکړه. دوی ورته وویل چې ملک مصر پر موږ باندې د جاسوسانو ګمان وکړی او په عبراني لغت یې خبرې راسره وکړې.

**درویش وایي**: چې دا مقوله "یا آبانا" د "قالوا" ده اې پلاره زموږ منع کړه له موږ څخه د بلې پلا کیل او غلې او وه یې ویل چې تاسې که خپل کشر ورور بنیامین نه راولئ او ملک مصر دا قرینه وګرځول نو جواسیس نه یاست او په خپلو خبرو کې صادق یاست.

فَأَرْسِلْ مَعَنَآ أَخَانَا نَكْتَلْ وَإِنَّا لَهُۥ لَحَٰفِظُونَ

نو زموږ سره واستوه زموږ ورور بنیامین چې کیل یعنې غله راکړې او بیو اوښ غله به بنیامین ته ورکړې او موږ د بنیامین محافظت کوو.

قَالَ هَلْ ءَامَنُكُمْ عَلَيْهِ إِلَّا كَمَآ أَمِنتُكُمْ عَلَىٰٓ أَخِيهِ مِن قَبْلُ

یعقوب (علیه السلام) ورته وویل آیا زه به تاسې امینان ګرځوم پر بنیامین لکه ما چې تاسې امینان وګرځولاست پر ورور دده یعنې یوسف "من قبل" یعنې د یوسف د بېولو په وخت کې خو هم تاسې ویله ونحن له حافظون. او بیا مو په یوسف هغه څه وکړل چې تاسې کړي دي. نو استفهام د "هل" انکاري دی یعنې بنیامین نه درسره کوم او د محافظت په وعدې زه باور نه لرم لظهور کذبه في یوسف حیث قلتم وانا له حافظون.

فَاللّٰهُ خَيْرٌ حٰفِظًا ۪ وَّهُوَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِيْنَ ﴿٦٤﴾

خدای پاک بنه دی تر تاسي او تر هر چا از روی حفاظت (نو حافظاً تميز د نسبت د خير والله ته) او خدای پاک ډېر رحم کوونکی دی تر ټولو رحم کونکو.

وَلَمَّا فَتَحُوْا مَتَاعَهُمْ وَجَدُوْا بِضَاعَتَهُمْ رُدَّتْ اِلَيْهِمْ ؕ

هغه چي دوی يعني زامنو د يعقوب عليه السلام خلاص کړل هغه جوالونه چي له مصر څخه يې غله پکښې راوړې وه، دوی پيدا کړه هغه ثمن د غلې چي دوی ته رد کړل سوی وُ.

قَالُوْا يٰۤاَبَانَا مَا نَبْغِيْ ؕ هٰذِهٖ بِضَاعَتُنَا رُدَّتْ اِلَيْنَا ۚ

دوی وويل چي اې زموږ پلاره موږ نور څه غواړو له اکرام څخه د ملک مصر او دده له احسان څخه د موږ سره، دا دی هغه زموږ ثمن د غلې موږ ته رد کړل سوی دی يعني د ملک مصر له خوا څخه.

وَنَمِيْرُ اَهْلَنَا وَنَحْفَظُ اَخَانَا

موږ به مير يعني غله راوړو خپل اهل او عيال ته، او موږ به خپل د ورور بنيامين حفاظت کوو له هر دښمن څخه ذهاباً واياباً.

**پوه سه:** چي "نمير" عطف پر محذوف دی ای نذهب الی ملک مصر مرة اخری

وَنَزْدَادُ كَيْلَ بَعِيْرٍ ؕ ذٰلِكَ كَيْلٌ يَّسِيْرٌ ﴿٦٥﴾

او موږ به زيات کړو يو بار د اوښ يعني د بنيامين حصه، ولي چي ملک د سړي سره هر چاته يو اوښ بار غله ورکوي، دا يو اوښ بار غله اسانه ده و ملک مصر ته لغاية جوده وکرمه.

قَالَ لَنْ اُرْسِلَهٗ مَعَكُمْ حَتّٰى تُؤْتُوْنِ مَوْثِقًا مِّنَ اللّٰهِ لَتَاْتُنَّنِيْ بِهٖۤ اِلَّاۤ اَنْ يُّحَاطَ بِكُمْ ۚ

يعقوب عليه السلام وويل زامنو ته چي هر گز زه نه استوم بنيامين د تاسي سره لما رئيت من فعلکم باخيه يوسف، تر هغو چي تاسي ټينګه وعده په قسم سره د خدای ونه کړئ، تاسي به راولئ مانه بنيامين له مصر څخه، مجاهد رحمه الله د

"احاط بكم" دا ترجمه کړي ده چي مگر تاسي ټولـه هلاک سواست. او قتاده رحمه الله يې معنا دا کوي الا ان تغلبوا فلا تطيقوا ذالک مگر نه که تاسي مغلوبه سواست چي طاقت د راوستلو د بنيامين مو درلودی.

**فائده:** دا استثنا مفرغ ده من اعم الاحوال ای لتأتنني به في کل حال الا حال بکم.

**فَلَمَّآ اٰتَوْهُ مَوْثِقَهُمْ قَالَ اللّٰهُ عَلٰی مَا نَقُوْلُ وَكِيْلٌ ۝**

هغه وخت چي زامنو ورکړه ټينګه وعده وپلار ته ای حلفوا بالله وجهدوا اشد الجهد في الاتيان به. نو اخير يعقوب عليه السلام ته بهانه د نه ورسره کولو د بنيامين نه سوه پاته. يعقوب عليه السلام وويل دوی ته چي خدای پاک زموږ او ستاسي د وعدو حافظ دی يعني دا وعدې به وساتي.

**وَقَالَ يٰبَنِيَّ لَا تَدْخُلُوْا مِنْۢ بَابٍ وَّاحِدٍ وَّادْخُلُوْا مِنْ اَبْوَابٍ مُّتَفَرِّقَةٍ ؕ**

او يعقوب عليه السلام وويل يعني په وخت کي د رخصت د زامنو مصر ته په شمول د بنيامين. اې زما زامنو تاسي په جمع واری سره و مصر ته د يوې دروازې څخه مه ورځئ بلکي داخل سئ ومصر ته د متفرقو دروازو له لاري.

**پوه سه:** چي په دې کي د يعقوب عليه السلام غرض دا وچي دده زامن ډېر ښائسته وه او ښه ښه قامتونه يې وه او په دې مشهور وه چي دا پر ملک مصر ډېر ګران دي نو پر دې ډېر بېدی چي نظر نه سي. وفي الحديث العين حق. وفي الحديث صحصح آخر که څېري تر تقدير الهي دمخه کېدای سوای يو شی لسبقته العين ای نظر السوء.

**پوه سه:** چي سورت "نٓ" ددې آيت په تفسير کي "وَاِنْ يَّكَادُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَيُزْلِقُوْنَكَ بِاَبْصَارِهِمْ لَمَّا سَمِعُوا الذِّكْرَ وَيَقُوْلُوْنَ اِنَّهٗ لَمَجْنُوْنٌ ۝ الآية

داسي شان نزول ذکر سوی دی چي کفار د مکې د عليه الصلوة والسلام د حسن القرائة بالقرآن لپاره يې ډېر عائنين يعني نظر کونکي را جمع کړي وه چي عليه الصلوة والسلام چي قرائت وايي تاسي يې نظر کړئ، نو دا آيت لپاره د جلو ګيری ددوی د نظر نازل سو.

**درويش وايي:** چي دغه آيتونه چي پر مصاب بنظر السوء باندي ووايي يا

خاصيت نوشته کړي په وخيښل سي خداى پاک به ضرر د اصابت څخني دفع کړي وقد جربناه كرات.

**سوال**: يعقوب عليه السلام په دمخه وار کي زامنو ته نه ويل لا تدخلوا من باب واحد الآية؟

**ځواب**: په اول وار کي خو د يعقوب عليه السلام زامنو دومره شهرت نه درلودی لکه نور طالبان د غلې چي به يوسف عليه السلام ته ورتله دوی هم داغسي عادي کسان وه.
او بعض مفسرين وايي چي يعقوب عليه السلام پر بنيامين بېرېدی چي نظر نسي. ولې چي بنيامين نمونه د ښائست د يوسف عليه السلام وه.

وَمَآ أُغۡنِي عَنكُم مِّنَ ٱللَّهِ مِن شَيۡءٍۖ

او يعقوب (عليه السلام) وويل چي زه په کارو کي د تقدير الهي هيڅ فائده نه سم رسولای وتاسي ته يعني داوينا چي ما تاسي ته وکړه صرف نظر اسبابو عاديه وو ته وه مگر د تقدير الهي ردونکی نسته. ولهذا قال:

إِنِ ٱلۡحُكۡمُ إِلَّا لِلَّهِۖ

نه دی حکم د نفع او د ضرر مگر خدای پاک لره دی.
په حديث شريف کي چي روايت يې حاکم او احمد کړی دی راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام وويل "لا يغني حذر عن قدر" درويش وايي چي په دې وينا سره يعقوب عليه السلام تفويظ و خدای پاک ته وکړی او اسباب ظاهره يې صرف نظر کړه.

عَلَيۡهِ تَوَكَّلۡتُۖ وَعَلَيۡهِ فَلۡيَتَوَكَّلِ ٱلۡمُتَوَكِّلُونَ ﴿٦٧﴾

**پوه سه**: چي تقديم د جار او مجرور لپاره د حصر دی يعني خاص پر خدای پاک زما توکل دی، او خاص پر خدای جل جلاله دي توکل کوي توکل کوونکي.

**فائده مهمة**: في اصابة العين، پوه سه! چي پر اصابة العين تجربې د علماؤ من الزمن الاقدم دلالت کوي او ويناوي د انبيا عليهم السلام ناطق دي په حقيت د اصابة العين كما يدل عليه في هذا المقام يا بني لا تدخلوا من باب واحد الآية.
وفي الحديث الصحيح ان العين تدخل الرجل القبر والجمل القدر يعني کتهو ته، والآية المذكورة من قبل آنفاً "وان يكاد الذين كفروا الآية" ايضاً

تدل على حقية اصابة العين. له حضرت علي رضي الله عنه څخه روایت دی چي جبرئيل د عليه الصلوة والسلام ته راغلی، دی مبارک غمجن ؤ، جبرئيل ورته وويل ما هذا الغم الذي اراه في وجهك دا څه غم دی چي زه يې ستا په مخ کي اثر وينم. عليه الصلوة والسلام ورته وويل! حسن او حسين (رضي الله عنهما) نظر سوي دي. جبرئيل ورته وويل صدقت يا محمد فان العين حق.

**مسئله:** فقهاء رحمهم الله وايي چي که يو سړی په اصابة العين سره مشهور ؤ چي شی به يې خوښ سو که انسان وای او که حيوان او که لوښي وغيره وای هغه ته به ضرر رسېدی، نو حکومت اسلامي دې بندي کړي او ډوډی دې ورکوي تر مرګه پوري.

**حکايت:** يو صالح عالم شيخ تاجوړی ؤ قريب الموت ؤ، نو اقارب اولاد وغيره يې پر راغونډ وه او ډېر مغموم ناست وه چي د کلي يوه ښځه د شيخ د پوښتني لپاره راغله چي په نظر کولو سره مشهوره وه، نو شيخ مخ ځني پټ کړی، ښځي ورته وويل دا مخ دي ولي پټ کړی؟ شيخ ورته وويل چي نظر مي نه کړې، ښځي ورته وويل چي زه به ستا کوم ځای نظر کړم؟ حاضرينو پر وخندل، شيخ ورته وويل چي دا به مي نظر کړې چي څومره اسان زکندن يې دی، حاضرينو بيا وخندل، د شيخ غرض دا ؤ چي دا په غم قريبان وخندوي. هغه ؤ شيخ چي اخيري خبره وکړه کلمه د شهادت يې وويل او وفات سو. انا لله وانا اليه راجعون.

د درويش چشم ديد حکايت د عين السوء په باره کي، يوه سړ! چي سپېروان د يوې قريې جامع نوم دی چي د قندهار له ښار څخه شپږ کيلو مېتره تخميناً لېري ده. او د هغې قريې په شاوخوا کي باديه نشينان سته چي رېګي يې بولي په دغه باديه نشينانو کي يو سړی ؤ چي سخت نظر او اصابة العين يې درلودی نوم يې ښادو ؤ. يوه ورځ د اختر په ورځو کي ښادو او نور ملګري ورسره د شيخ قلندر مېلې ته تله، په طول کي د لاري په يو کور کي ښځي خپل غوا لوشله چي د غوا د لوشلو ږغ د ښادو تر غوږ سو او ډېر خوند يې ورکړی که څه هم نه يې غوا ليدله او نه يې ښځه چي لوشي يې بلکې صرف صوت د لوشلو يې تر غوږ سو. نو ښادو ملګرو ته وويل چي له مېلې څخه وختي راووځئ چي ددغې غوا د

خیرات غوښتي په را سره يوسو. ملګرو پسخند په وواهه چي غوا چيري ده او ستا اصابة العين پر هغې څرنګه واقع سو. خير دوی چي ولاړل غوا دستي ناجوړې سوه يو ګړی وروسته مالک ذبح کړل د خيرات په نيت. ښادو څنې ملګرو سره مېله ژړ پرېښوله چي د غوا ځای ته راغله د غوا غوښي وېشل کېدلې ښادو او ملګرو څېلې برخې څنې واخستلې او کور ته ولاړل، وهذا من عجائب الواقعات النادرة لاصابة النظر.

**درويش وايي:** چي روح البيان اصابة العين عقلي او حکمي ډېري وجهې بيان کړي دي چي ددې تفسير د متعلمانو تر فهم ډېري لوړي دي ځکه درويش صرف نظر کړې. او روح المعاني هم په ډېر شد ومد بيان د اسبابو د اصابة العين کړی دی صفحه ١٦-١٧-١٨ نقل يې فائده نه لري او د صحت يې ضمانت نسته، نو اولی داده چي د تفسير القرآن پر خوا وګرځو.

**وَلَمَّا دَخَلُوا۟ مِنْ حَيْثُ أَمَرَهُمْ أَبُوهُم مَّا كَانَ يُغْنِى عَنْهُم مِّنَ ٱللَّهِ مِن شَىْءٍ**

چي دوی داخل سوه مصر ته د هغو دروازو له لارې لکه څرنګه چي دوی پلار امر کړي وه يعني من ابواب متفرقه. راوي وايي چي د مصر څلور دروازې وې "ما کان يغني عنهم" جواب د لما دی. والمعنی دفع د ضرر له دوی څخه دا دخول متفرق ونه کړی له الله تعالی څخه يعني قضائه تعالی د هيڅ شي مما قضی الله حتی چي وروسته به راسي په قرآن کي چي بنيامين ملک مصر يعني يوسف عليه السلام له دوی څخه وګرځاوه او يعقوب عليه السلام ته مصيبت دوه چنده سو.

**إِلَّا حَاجَةً فِى نَفْسِ يَعْقُوبَ قَضَىٰهَا**

**پوه سه:** چي دا ستثنا منقطع ده ای لکن حاجة في نفس يعقوب يعني شفقته عليهم چي نظر سوء پر ونسي، چي يعقوب عليه السلام دوی ته ظاهر کړی او وصيت يې ورته وکړی.

**وَإِنَّهُۥ لَذُو عِلْمٍ لِّمَا عَلَّمْنَٰهُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٦٨﴾**

او په تحقيق يعقوب (عليه السلام) صاحب د علم و په هغه شي چي موږ ته يې ښوولی

ؤ يعني بالوحي. نو په دې سبب يعقوب عليه السلام و زامنو ته په وخت کې د وصيت د دخول من ابواب متفرقه داسې وويل "وما اغني عنکم من الله من شيئ" لکن ډېر کسان نه پوهېږي په هغه شي چې يعقوب عليه السلام په پوهېدی. اين النبي واين الامي.

## وَلَمَّا دَخَلُوا عَلَىٰ يُوسُفَ

ورونه ورغله ملاقات ته د يوسف (عليه السلام) في الواقع او ملاقات د مصر د ملک في الظاهر، نو دوی ورته وويل چې هغه زموږ ورور چې تا موږ امر کړی ؤ په راوستلو کې د هغه دادی رامو وستی وتاته. يوسف عليه السلام ورته وويل احسنتم واصبتم وستجدون جزاء ذالک عندي. بيا يوسف عليه السلام دوی ته بنه اوطاق ورکړی او ډېر يې نازول او دوی يې دوه دوه پر يوه سترخوان کښېنول. بنيامين يوازې پاته سو. نو ده وژړل او داسې يې وويل لو کان اخي يوسف حياً لاجلسني معه. نو يوسف عليه السلام ودوی ته وويل چې ستاسې دا ورور يوازې پاته سو. نو يوسف عليه السلام بنيامين له ځانه سره پر سترخوان کښېناوه او دوړی يې ورسره وخوړله. وروسته يې د خوب لپاره ځايونه هوار کړل او امر يې وکړی چې دوه دوه دې پر يوه فراش بد پرېږي. نو چې يوسف عليه السلام او بنيامين پر يوه ځای سره بيده سوه يوسف عليه السلام بنيامين په غېږ پورې تينګ نيولی ؤ تر سهاره پورې. روبيل وويل چې دومره محبت چې ملک مصر يې د بنيامين سره لري ما تر اوسه نه دی ليدلی. دا بله ورځ يوسف عليه السلام امر وکړی چې تاسې ټوله ورونه يو ځای سره اوسېږئ او بنيامين به زما سره وي. او حسب المعمول به فوق العاده خوراکونه او نورې مېوې وغيره تاسې ته درځي او د بنيامين بود وباش او خوراک به زما سره وي.

## اٰوٰىٓ اِلَيۡهِ اَخَاهُ

او ضم کړی يوسف (عليه السلام) خپل ورور بنيامين چې د مور له خوا يې هم ورور ؤ د خپل ځان سره. نو يوسف عليه السلام او بنيامين چې سره دوه په دوه سوه، نو يوسف عليه السلام ورته وويل چې ستا نوم څه دی؟ هغه ورته وويل بنيامين. يوسف عليه السلام ورته وويل کوم بنيامين ورته وويل ابن المثکل، دا يې له دې سببه ورته

وویل چي دی بنیامین چي له موره وزېږېدی مور یې په نفاس کي فوت سوه. یوسف علیه السلام ورته وویل د مور نوم دي څه شی دی؟ بنیامین ورته وویل راحیل بنت لاوي. یوسف علیه السلام ورته وویل چي ته اولادونه لرې؟ بنیامین ورته وویل چي هو لس اولاده لرم. یوسف علیه السلام ورته وویل چي خوښه دي نه ده چي ستا د هالک ورور پر ځای ستا ورور سم؟ بنیامین ورته وویل چي چا ته ستا غوندي ورور رسېږي ایها الملک لکن لم یلدک یعقوب ولا راحیل فبکی یوسف علیه السلام وقام الیه په غېږ یوري یې ټینګ ونیوی.

قَالَ إِنِّىٓ أَنَا۠ أَخُوكَ فَلَا تَبْتَئِسْ بِمَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿٦٩﴾

وویل یوسف (علیه السلام) په تحقیق هم زه ستا ورور یم. ته غم مه کوه په هغه سره چي ورونو ستا د ورور سره وکړی یعني في ما مضی. نو مضارع په معنی د ماضي ده چي دې ته په عربیت کي استحضار د حالت ماضیه عجیبه وایي، والاشارة الی ظلم اخوته معه حیث القاه في الجب وشروه بثمن بخس کما مر تفصیله. او یوسف علیه السلام بنیامین ته وویل چي ورونه مه خبروه په هیڅ شي سره مما علمتک فان الله قد احسن الینا.

**فائده:** یوسف علیه السلام چي بنیامین ته وویل چي څو اولادونه لرې، ده ورته وویل چي لس اولاده لرم، یوسف علیه السلام ورته وویل چي نومان یې څه دي، بنیامین ورته وویل چي د یوه نوم ذئب دی، یوسف علیه السلام ورته وویل چي ته خو ابن نبي یې نو تا څرنګه پر زوی د لېوه نوم کښېښو؟ بنیامین ورته وویل چي زما ورونو چي پلار ته وویل چي یوسف اکله الذئب. سمیت ابني ذئباً تاچي هر وخت چي زه هغه زوی ته ناره وکړم ذکرت اخي یوسف. بنیامین وژړل یوسف علیه السلام یې هم وژړاوه، یوسف علیه السلام ورته وویل د بل نوم څه دی؟ بنیامین ورته وویل دم، یوسف علیه السلام ورته وویل چي دا نوم دي څرنګه پر ایښی دی؟ بنیامین وویل چي زما ورونو چي د یوسف قیص په وینو ککړ پلار ته راوړی، نو مي د زوی نوم دم کښېښو چي هر وخت چي زه ورنارې کړم ذکرت اخي یوسف فبکی بنیامین فابکی یوسف، او د بل نوم مي یوسف ایښی دی چي زه ورنارې کړم، نو یوسف هالک ورور مي را

پیاد سي، نو بنیامین د پر وژړل او یوسف علیه السلام ور سره وژړل.

**فائده:** یوسف علیه السلام چې بنیامین ته وویل چې دا راز ورونو ته مه وایه دا ددې کبله چې علما وايي چې اخفا د مرام په بعض مقاماتو کې مستحب ده ویعین علی تحصیل المقاصد ولذالک ورد في الاثر استعینوا علی قضا حوائجکم بالکتمان وسیئاتي فائدة الکتمان ه في القرآن الکریم عنقریب.

روی ان یوسف علیه السلام قال لاخوته اتریدون سرعة الرجوع الی ابیکم قالوا نعم، فامر یوسف علیه السلام الکیال لیکیل لهم او یو بار تنها د بنیامین په نامه.

## فَلَمَّا جَهَّزَهُمْ بِجَهَازِهِمْ

**بوه سه:** چې جهاز په لغت کې متاع ته وايي وکل ماینتفع به. والمراد هـ کیل الطعام.

## جَعَلَ السِّقَايَةَ فِي رَحْلِ أَخِيهِ

وه یې ګرځول سقایه په بار کې د ورور یعنې بنیامین.

**بوه سه:** چې سقایه او صواع سره یو شی دي فرق یې اعتباري دی یعنې په دې اعتبار چې اوبه پکښې څښل کیږي سقایه یې بولي او چې شی غنم وغیره په پیمانه کیږي صواع یې بولي. یعنې یوسف علیه السلام خپل مریان امر کړل چې دا سقایه د بنیامین په جوال کې پټه کړي. ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې دا سقایه د زبرجدو وه. او ابن اسحاق رحمه الله وايي چې د سپینو زرو وه او بعض وايي چې د سرو زرو وه. په هر حال یوسف علیه السلام په دغه سقایه کې اوبه څښلې او مکیال یې هم ګرځولې وه د غلې لپاره. ولې چې غلې دومره عزت درلودی چې یوسف علیه السلام په بل لوښي کې کیل نه کاوه.

مفسرین رحمهم الله په دې کې اختلاف لري. ځینې وايي چې دا کار یوسف علیه السلام د خپل ورور په پټه وکړی چې بنیامین په دغه تو ګه ځان ته راوګرځوي. ولې چې نه یې زړه کېدی چې د یوسف علیه السلام څخه جلا سي. او کعب بن مالک رحمه الله وايي چې یوسف علیه السلام چې بنیامین په دې خبر کړی چې زه دي ورور یوسف یم. هغه

ورته وويل چي زه ستا څخه نه جلا کېږم. يعني د ورونو سره نه ځم، يوسف عليه السلام ورته وويل چي ته خبر يې چي پلار تر اوسه پوري زما په فراق څومره غمجن دی او که زه تا راوګرځوم نور به د پلار غم زيات سي، خو بيا هم بنيامين پر دې ټينګ ؤ چي زه ستا څخه نه جلا کېږم. يوسف عليه السلام ورته وويل چي دا کار نه کېږي مګر نه چي زه به تا متهم کوم په يو امر فظيع او په يو ډېر بد کار به دي مشهور کوم. بنيامين ورته وويل چي پروا نه لري فافعل ما بدالک فاني لا افارقک.
يوسف عليه السلام ورته وويل چي خپل صواع ستا په بار کي په پټه ايږدم بيا پر تا د غلا اعلان کوم تاچي په قانون تا راوګرځوم. بنيامين ورته وويل چي په هر شي چي ما متهم کوي زه باک نه په کوم.

ثُمَّ اَذَّنَ مُؤَذِّنٌ

وروسته يوه اعلان کونکي اعلان وکړی.

**پوه سه:** چي کلمه د "ثم" لپاره د تراخي ده چي ورونو خپل بارونه بار کړه يوسف عليه السلام مهلت ورکړی يعني ژر يې اعلان نه پسي وکړی حتی چي دوی تر عمارتو د مصر وصحرا ته ووتل وروسته يې نفر پر آس پسي واستول او دوی يې لاندي کړل او داسي اعلان يې وکړی.

اَيَّتُهَا الْعِيْرُ اِنَّكُمْ لَسٰرِقُوْنَ ﴿٧٠﴾

**پوه سه:** چي "عير" قافلې ته وايي د اوښانو چي بارونه پر باندي وي. اسم جمع ده مفرد د لفظ نه لري. وروسته مجازاً په معنی د اهل د قافلې وګرځېدی للملابسة بينهما او يا محذوف المضاف ای اهل العير، او بعض مفسرين وايي چي عِير جمع د عَير بالفتح چي خره ته وايي بيا مجازاً په معنی د قافلې د خرو سوه، وروسته فراخي پکښې وسوه يعني چي هري قافلې ته وايي که څه هم د اوښانو وي کما ههنا.

**درويش وايي:** چي دا آيت "انكم لسارقون" ډېر مشکل دی الحکم بالسرقة علی اهل القافلة. بعض مفسران وايي چي دا ندا او حکم د سرقې پر اهل د قافلې

په امر د یوسف علیه السلام او اطلاق د سرقه پر اهل حجاز د قافلې مجاز آدی یعني لکه سارق چي خیانت کوي د مسروق منه سره دغه رنګه خیانت وکړی ورونو د یوسف علیه السلام د خپل یعقوب علیه السلام سره چي یوسف علیه السلام یې څني بوتلی او په جب کي یې واچاوه او پلار ته یې د یوسف علیه السلام قمیس په وینو ککړ راوړی. کریمه "وجاؤا علی قمیصه بدم کذب"

**سوال**: په قافله کي خو بنیامین هم ؤ او په خیانت کي د ورونو شامل نه ؤ؟

**ځواب**: بنیامین یې تغلیباً شامل کړی لکه بنوا فلان قتلوا او قاتل یو وي. او بعض مفسران وایي چي دا حکم د سرقې پر اهل قافلې د منادی له خوا ؤ. ولي یوسف علیه السلام په خپل لاس صواع الملک په بار کي د بنیامین ایښې وه. وروسته چي قافله روانه سوه د صواع الملک بازخواست چي وسو هغه نه وه او په دې ځای بیله اصحاب قافله بل څوک نه وه، نو منادي بنا پر زعم خپل دا وویل انکم لسارقون. او روح المعاني او مظهري وایي چي دا حکم د سرقې له جانبه د خدای پاک بالوحي الی یوسف علیه السلام ؤ. درویش وایي وهذا بعید اجداً فتامل وطالع التفسیرین المذکورین.

## قَالُوْا وَاَقْبَلُوْا عَلَیْهِمْ مَّاذَا تَفْقِدُوْنَ ﴿۷۱﴾

وویل اهل د قافلې په داسي حال کي چي مخ یې راواړاوه پر ندا کونکي باندي څه شی تاسي ورک کړی دی.

**فائده**: جمله د "واقبلوا" حال ده په تقدیر د قد کما هو القانون النحوي في الماضي الذي وقع حالاً. او کلمه د ما موصوله ده متضمن معنی لره د استفهام ده، او کلمه د "ذا" په معنی د الذي ده او په "تفقدون" کي عائد وما موصوله ته محذوف دی ای تفقدونه.

## قَالُوْا نَفْقِدُ صُوَاعَ الْمَلِكِ

وویل رسول د ملک ومن معه ولهذا جمع لفظ قالوا. چي موږ ورکه کړې مکیال ده د ملک چي ډېر بیش قیمته وه کمامر من قبل. والمعنی چي موږ پر بل چا تهمت نه لرو بیله تاسي.

وَلِمَن جَآءَ بِهِۦ حِمۡلُ بَعِيرٖ وَأَنَا۠ بِهِۦ زَعِيمٞ ۝٧٢

او که چا راوړل دغه صواع بیله تلاشیه د بار، نو یو بار د اوښ غلـه انعام ورکول کیږي، او زه د دغه انعام ضامن یم.

**مسئله**: د دې آیت څخه دا معلومه سوه چې انعام چې په عربي یې جعل بولي روا ده او دا هم معلومه سوه چې کفاله بالمال هم روا ده.

قَالُواْ تَٱللَّهِ لَقَدۡ عَلِمۡتُم مَّا جِئۡنَا لِنُفۡسِدَ فِي ٱلۡأَرۡضِ وَمَا كُنَّا سَٰرِقِينَ ۝٧٣

وویل اهل د قافلې چې وروڼه د یوسف علیه السلام وه قسم په خدای دی، په تحقیق سره تاسې پر دې علم لرئ چې موږ نه یو راغلي د دې لپاره چې موږ فساد وکړو په ځمکه کې یعني د مصر او سرقه خو قسم د فساد ده.

**سوال**: دوی ولې وویله "لقد علمتم"

**جواب**: دوی یعني اهل مصر په دې ښه پوهېدل چې په مکرر واروته راغلي دي. چې صرف او صرف د خپل مکسنت پر بنا راغلي یو نه د غلا لپاره راغلي یو او موږ نه غله یو.

**فائده**: کلمه د "تا" په قسم کې بدل د واو قسم څخه ده لکن مخصوص په اسم د الله سره ده یعني تا الرحمٰن نه ویل کیږي لکه والرحمٰن چې ویل کیږي. وقالوا وفي القسم بالتا معنى التعجب فافهم.

قَالُواْ فَمَا جَزَٰٓؤُهُۥٓ إِن كُنتُمۡ كَٰذِبِينَ ۝٧٤

ای المنادی ومن معه ولهذا جمع الضمیر، نو څه وي جزای د سارق یعني د صواع الملک. او یا جزا د سرقې، که تاسې دروغ ویونکي واست په برائت کې د سرقې.

**پوسه**: چې سرقه مونث لفظي دی تذکیر او تانیث د ضمیر راجع دواړه روا دي.

قَالُواْ جَزَٰٓؤُهُۥ مَن وُجِدَ فِي رَحۡلِهِۦ فَهُوَ جَزَٰٓؤُهُۥۚ

دوی یعني ورونو د یوسف علیه السلام ورته وویل چې جزا د سارق د سرقې هغه څوک دي چې د هغه په بار کې مال مسروق پیدا سي. یعني د هغه مریی ګرځول هکذا کان في شریعة یعقوب علیه السلام، هغه سارق یې جزا ده دا جمله تاکید د حکم سابق ده.

**فائده:** په شریعت کې د یعقوب علیه السلام قطع ید السارق نه وه لکه زمونږ په شریعت کې چې ده بلکه استرقاق ؤ یو کال.

**كَذٰلِكَ نَجْزِي الظّٰلِمِيْنَ ۝**

داغه رنګه مونږ جزا ورکوو وه ظالمانو ته.

**پوهه:** چې حق د عبارت خو دا ؤ السارقین لکن ظالمین یې په ځای کې راوړی تنبیهاً علی ان السارق ظالم. نو رسول الملک ودوی ته وویل چې مونږ تلاشي کوو ستاسي د جولو په امر د یوسف علیه السلام.

**فَبَدَاَ بِاَوْعِيَتِهِمْ قَبْلَ وِعَآءِ اَخِيْهِ**

نو شروع وکړه (بعض وایي منادي او بعض وایي یوسف علیه السلام په خپله د تلاشي لپاره حاضر سو، وهذا بعید مخالف للسیاق) په اوعیه وو سره د نورو ورونو دمخه تر وعا د یوسف علیه السلام د ورور یعني بنیامین لپاره د دفع د تهمت، راوي وایي چې یوسف علیه السلام یا منادي چې تفتیش د رحالو د ورونو یو یو وکړی او نوبت بنیامین ته ورسېدی، نو یوسف علیه السلام یا منادي وویل چې دي دومره مشرانو چې غلا نه ده کړې بنیامین چې تر ټولو کشر دی په طریق اولی به یې غلا نه وي کړې، د یوسف علیه السلام ورونو ورته وویل چې والله لانعرک حتی تنظر في رحله تا چې ستا زړه به هم پر ارام سي او زمونږ زړونه به هم پر قرار سي.

**ثُمَّ اسْتَخْرَجَهَا مِنْ وِّعَآءِ اَخِيْهِ**

وروسته تر دې چې تلاشي د بنیامین د رحل یې وکړه را وه یې ایستله سقایة الملک. او د صواعه تذکیر او تانیث دواړه روا دی باعتبارین له رحل څخه د ورور د یوسف علیه السلام یعني بنیامین.

راوي وایي چې سقایه چې له رحل څخه د بنیامین راووتل، کښته وځړول ورونو د یوسف علیه السلام سرونه خپل من الحیا" او پر بنیامین د ملامتیا خولې خلاصي کړې چې دا تا څه وکړه چې مونږ دي ګرده رسوا کړو او مخ دي راتور کړی یا بني راحیل همېشه ستاسي یعني د یوسف علیه السلام او چې د راحیل زامن یاست

مور ته يو مصيبت ورسېږي "حتى اخذت هذا الصواع بنيامن ورته وويل بل بنوا راحيل لايزال لهم بلاً منكم" ذهبتم باخي يوسف او تاسي په دښت کي د کنعان هلاک کړی او هم تاسي دا صواع زما په رحل کي پټه کړې وه راوي وايې چي منادي بنيامين تر غاړه ونيوی او يوسف عليه السلام ته يې وروستی.

## كَذٰلِكَ كِدۡنَا لِيُوسُفَ ؕ

ای مثل الکيد يعني حيله ده راګرځولو د بنيامين ځان ته مورږ حيله ور وښوول ويوسف عليه السلام ته . نو کذالک منصوب محلاً دی مفعول مطلق دی د کدنا. وحاصله علمناه واوحينا له.

**فائده:** د دې آيت څخه دا معلومه سوه چي هغه قول د منادي "انکم لسارقون" او ورو سته عبارت قرآني په امر د يوسف عليه السلام وو وکان بايحا الله اليه"ح فلا معصية في ذالک" او بغوي رحمه الله وايې چي کيد دلته په معنی د جزا الکيد ده يعني لکه وروڼو چي په ابتدا کي کيد وکی په مفارقت کي د يوسف عليه السلام د پلاره څخه" فعلنا بهم في مفارقة بنيامين منهم بکيد السرقة.

**پوه سه:** د کيد نسبت چي وخلګو ته وسي معنی يې حيله ده او چي وخدای جل جلاله ته وسي په معنی د تدبير بالحق دی" يعني صنعنا ذالک ليوسف عليه السلام حتى اخذ اخاه وضمه الى نفسه وحال بينه وبين اخوته.

## مَا كَانَ لِيَاۡخُذَ اَخَاهُ فِىۡ دِيۡنِ الۡمَلِكِ اِلَّاۤ اَنۡ يَّشَآءَ اللّٰهُ ؕ

نه وو يوسف عليه السلام چي اخستی يې وای خپل وررور بنيامين او د ځانه سره يې کړي په دين کي د ملک مصر قتاده وايې ای في حکم الملک" ولي چي دين او حکم د ملک مصر دا وو چي سارق به يې په درووواهه او دوه مثله تاوان د مال مسروق به يې څنډي اخستی. مګر که د خدای جل جلاله اراده وای چي دغه استرقاق د سارق يو کال حکم د ملک ګرځولی وای فالاستثنا متصل من اعم الاحوال او دا هم روا ده چي استثنا دي منقطع وي ای لکن اخذ يوسف عليه السلام اخيه بمشية الله وارادته ولطفه ولي چي يوسف عليه السلام ته دغه لاره د استرقاق د نبيامين خدای جل جلاله وروښووله چي يوسف عليه السلام حکم د سارق و ورنورو ته وسپاره يعني في شريعت

يعقوب علیه السلام چي هغه استرقاق وو سنة او خدای جل جلاله پر ژبو د ورنړو د يوسف علیه السلام دا وروستله چي حکم د سارق استرقاق فحصل مراد د يوسف علیه السلام چي رد د بنيامين وخان ته ضم کړی بمشية الله.

نَرْفَعُ دَرَجٰتٍ مَّنْ نَّشَآءُ ۗ وَفَوْقَ كُلِّ ذِیْ عِلْمٍ عَلِيْمٌ ۝

موږ پورته کوو من نشأ چي زموږ اراده وسي درجات ای الى درجات لکه يوسف علیه السلام درجه چي يې لوړه کړه پر ورنړو، او لوړه تر هر چا په علم کی يعني د مخلوق عليم سته يعني په علم کي بالا وهو الله تعالى.

**فائده:** "عليم" په لغت کي هو الذي له العلم البالغ الى الغاية القصوى وما هو الا الله عز وجل د محمد بن کعب څخه روايت دی چي يو سړی د علي رضي الله عنه څخه پوښتنه د يوې مسئلې وکړه علي رضي الله عنه يې حکم ورته بيان کړی هغه سړي ورته وويل چي داغسي حکم نه دی لکه تاچي وويل بلکه حکم داسي دی، علي رضي الله عنه ورته وويل اصبت واخطأت وفوق كل ذي علم عليم.

قَالُوْٓا اِنْ يَّسْرِقْ فَقَدْ سَرَقَ اَخٌ لَّهٗ مِنْ قَبْلُ ۚ

ورونو د يوسف علیه السلام وويل لپاره د دفع د خجالت له ځانه څخه که غلا کړې وي يعني بنيامين صواع الملک، نو په تحقيق ده ورور د ده يعني د مور د خوا چي مراد يې يوسف علیه السلام وو د دوی مراد دا وو چي غلا د بني راحيل عادت دی.

**درويش وايي:** چي روح المعاني او روح البيان او مظهري رحمه الله او اما قرطبي رحمه الله د دغې غلا په باره کي وايې چي ورونړو د يوسف علیه السلام وده ته منسوب کړه مختلف اقوال را وړي دي د ټولو مفسرينو مجمع عليه قول دا دی چي د يوسف علیه السلام نيکه يعني د مور پلار يې بت فرسته وُ، يو بت يې جوړ کړی وو د سپينو زرو او د سرو زرو، نو يوسف علیه السلام هغه بت ځندي غلا کړی او ټوک ټوک يې کړی په لاره کي وغورځاوه په دې چي دی گوندي دا بت پرستي پرېږدي يعني دی به فکر ووهي که دا بت خدای وای نو ولي مخلوق ټوټه ټوټه کولای سوای، نو د دغه بت په غلا کولو سره د يوسف علیه السلام ورونړو د يوسف علیه السلام بنيامين ته پيغور ورکړی.

**درویش وایي:** چي وایې چي دا روایت د سعید بن جبیر او قتاده څخه مروي دي "او بغوي وایي چي مجاهد وایې چي یوسف علیه السلام ته یوه ورځ یو سائل راغلی نو یوسف علیه السلام د کوره یوه اګۍ غلا کړه او سائل ته یې ورکړه او بعض علما وایې چي یوسف علیه السلام به د د ستر خوانه څخه ډوډۍ پټول د فقراو دپاره.

**پوښتنه:** یوسف علیه السلام ولي بې اجازې د پلار دا شیان وفقراو ته ورکوله؟

**جواب:** د یعقوب علیه السلام کور د کرم او د سخاؤ او دی په دې ورکړه راضي وو.

**سوال:** نو ورونړو د یوسف علیه السلام ولي دا غلا وبلله؟

**جواب:** حسدا او عنادا یې غلا وبلله او دا سبب د غلا هم په صحیح روایت د ابن اسحاق د مجاهد څخه ثابت دی چي د یوسف علیه السلام مور راحیل چي په نفاس کي د بنیامین وفات سوه. نو یوسف علیه السلام چونکه کشنی وو پلار یعقوب علیه السلام د خپلي خور ابنة اسحاق چي د یوسف علیه السلام عمة کېدل ورکړی د تربیې دپاره" او پر عمه نهایت ګران وو، نو یوسف علیه السلام چر مراهق سو د پلار یعقوب علیه السلام د ده محبت جوش وکړی، نو خور ته یې وویل چي یوسف علیه السلام را واستوه. او خور ته یې دویل یا اختاه سلمي الی یوسف علیه السلام فو الله لا اقدر الصبر علی فراقه ساعة واحدة خور یې ورته وویل لا والله ما انا بتارکه" یعقوب علیه السلام ورته وویل قسم به خدای دی که یې در پرېږدم خور یې ورته وویل چي ته یې یو څو ورځي پرېږده چي زما زړه نو کې صبر سي ځندي. نو یعقوب علیه السلام دا خبره د خور ومنل. نو د یعقوب علیه السلام خور چي تر ده مشره وه یو کمر بند چي اسحاق علیه السلام به ملا په تړله د دې سره وو ولي دا مشره وه او د کمربند قانون دا وو چي د مشر عیال د اسحاق علیه السلام سره به وو، نو دې دا کمر بند چي یوسف علیه السلام بیده وو لاندي تر کالو یې وروتاړه، نو یوسف علیه السلام یې د یعقوب علیه السلام پر خوا را رهي کړی، وروسته یې اوازه ګډه کړه چي کمر بند د اسحاق ورک دی تلاشي چي یې وکړه د یوسف علیه السلام تر ملا وو، نو خور د یعقوب علیه السلام وویل چي یوسف علیه السلام په سبب د غلا د کمر بند به وماته تسلیمه وې لکه چي قانون د شریعت د یعقوب علیه السلام وو. یعقوب علیه السلام ورته وویل که یې دا کار کړی وي نو دی وتاته تسلیم دی. نو یوسف علیه السلام یې بېرته د خور په لاس ورکړی تر هغو د دې سره چي دا وفات سوه، نو

يوسف عليه السلام يعقوب عليه السلام کور ته را وستی. نو دغه غلا د يوسف عليه السلام د ورونړو مراد وه" ان يسرق فقد سرق اخ له من قبل.

# فَأَسَرَّهَا يُوسُفُ فِي نَفْسِهِ وَلَمْ يُبْدِهَا لَهُمْ

پټه يې وساتل مقالة د دوی فقد سرق اخ له الآية" يعني ځان داسي ښکاره کړی چي ما ستاسي خبره نه واورېدل. يوسف عليه السلام په خپل زړه کي او دوی ته يې ښکاره نه کړه چي ما واورېدل يعني لا قولا ولا عملا د جهت څخه د حلم د ده.

# قَالَ أَنْتُمْ شَرٌّ مَكَانًا وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا تَصِفُونَ ﴿۷۷﴾

دا جمله مستأنفه ده په جواب کي د سوال چي آخير يوسف عليه السلام دوی ته څه وويل فاجاب چي يوسف عليه السلام په خپل زړه کي دا وويل نه په ظاهره، تاسي شر یاست تر يوسف عليه السلام از روی منزلة لسرقتكم اخاكم من يعقوب عليه السلام چي د سرقې هيڅ توجيه نه وه ممكنه بخلاف سرقة يوسف عليه السلام فان لها وجه وجيه.

**درويش وايي:** چي وقد مر بيان سرقات يوسف عليه السلام مع توجيهها تها" راوي د قصې وايي چي يوسف عليه السلام چي بنيامين د ورونړو څخه وګرځاوه. نو ورونړو ته د يوسف عليه السلام ډېر درد ورغلی او اولاد د يعقوب عليه السلام چي درد به ورغلی هيڅ چا طاقت نه درلودی او روبيل په دوی کي چي په غضب سو د ده دغضب مقابله چا نه سوای کولای او چي ده به نعره وکړه پر حاملې ښځي چي د ده نعره به يې واورېده اسقاط د خپل حمل به يې کوله ومع هذا اذا مسه احد من اولاد يعقوب سكن غضبه. او راويان وايي چي دا صفت د شمعون وو من اولاد يعقوب فدخلوا دوی ورغله يوسف عليه السلام ته نو روبيل يا شمعون ورته وويل چي يا به زموږ ورور بنيامين په لاس راکوې يا به زه داسي چغه وکړم چي په مصر کي به هيڅ حامله ښځه پاته نه سي يعني چي آواز واوري مگر اسقاط حمل به کوي، او دوئه درد روبيل ته ورغلی چي تولہ وېښتيان د بدن يې جګ ودرېدل او تر کالو را ووتله، نو يوسف عليه السلام وخپل کشني زوی ته وويل چي ورسه د روبيل وخنګ ته ودرېږه چي دی چغه کوي ته لاس پر کښېږده او تر لاس يې ونيسه ماته يې راوله، نو د يوسف عليه السلام زوی هغه سي وکړه د روبيل غضب سوړ سو او د يوسف عليه السلام زوی تر لاس ونيوی پلار ته يې

راوستي، نو روبيل وويل "ان ههنا لبذر من بذر يعقوب"
**دروېش وايي**: چې دې ته په عربيت کې تجاهل العارف وايي" وروی چې روبيل ته بيا ورته درد ورغلی يوسف ﷺ ورو ولاړ سو په پښه يې وواهه او تر گرېوان يې ونيوی پر مځکه يې غوځار کړی اودا يې ورته وويل "انتم معشر العبرانيين تظنون ان لا اشد منکم، نو زامنو د يعقوب چې دا حالات ولېدله، نو يې په خپلو کې سره وويل چې بېله عجزه بله لار نسته.

قَالُوا يَا أَيُّهَا الْعَزِيزُ إِنَّ لَهُ أَبًا شَيْخًا كَبِيرًا فَخُذْ أَحَدَنَا مَكَانَهُ إِنَّا نَرَاكَ مِنَ الْمُحْسِنِينَ ۝

نو دوی ورته وويل ای عزيز مصر چې بنيامين پلار لري چې شيخ کبير السن دی او پر هغه پلار دا زوی ډېر گران دی او دی په دې زوی بنيامين سره د زړه تسلي کوي د هغه زوی چې هغه هالک سوی دی د مخه چې نوم يې يوسف ﷺ وو چې بنيامين په مور د هغه شريک وو، نو ته يو زموږ څخه په ځای کې د بنيامين وگرځوه موږ تا د محسنينو له ډلې څخه بولو چې تا زموږ سره ډېر احسانونه کړي دي کيل دې پوره راکړی دی او ښه مهمان نوازي دي زموږ کړې ده او په اول وار کې دې زموږ بضاعت موږ ته بېرته را رد کړی او دا وار دا احسان هم را سره وکړه چې يو زموږ څخه په بدل کې د بنيامين وگرځوه او دی پلاس راکړه چې موږ يې غم د ېده شيخ کبير السن پلار ته ورولو.

قَالَ مَعَاذَ اللَّهِ أَنْ نَأْخُذَ إِلَّا مَنْ وَجَدْنَا مَتَاعَنَا عِنْدَهُ إِنَّا إِذًا لَظَالِمُونَ ۝

يوسف ﷺ ورته وويل پناه په خدای ﷻ چې موږ به بندي کوو مگر هغه څوک چې متاع زموږ يعني صواع الملک موږ د هغه سره پيدا کړی يعني بنيامين، او که موږ داسي وکړو چې يو د بل په عوض کې بندي کړو، نو موږ به د ظالمانو څخه يو "في دينکم وفتواکم.

**فائده**: داسي يوسف ﷺ نه وويل الا من سرق متاعنا تحرزا عن الکذب.

فَلَمَّا اسْتَيْأَسُوا مِنْهُ خَلَصُوا نَجِيًّا

هغه وخت چې نااميده سوه ورونه د يوسف عليه السلام له ده څخه يعني چې بنيامين

نه راسره کوي، نو دوی له خلګو څخه ګوښه کښېنستل د مشورې لپاره.

**سوال**: "نجياً" خو مفرد دی، نو څرنګه يې حمل پر ضمير د جمع په "خلصوا" کې صحيح کېږي؟

**ځواب**: "نجياً" په اصل کې مصدر دی او په مصدر کې مفرد او جمع برابر دي نو "نجياً" د اعراب له لارې حال دی له ضمير څخه د "خلصوا"

قَالَ كَبِيرُهُمْ أَلَمْ تَعْلَمُوٓا۟ أَنَّ أَبَاكُمْ قَدْ أَخَذَ عَلَيْكُم مَّوْثِقًا مِّنَ ٱللَّهِ وَمِن قَبْلُ مَا فَرَّطتُمْ فِى يُوسُفَ

وويل هغه مشر ددوی يعني في الفضل والعلم لا في السن وهو يهودا، دا قول د ابن عباس رضي الله عنهما او د کلبي رحمه الله دی، او بعض مفسرين رحمهم الله وايي چې له کبير څخه کبير في السن دی وهو روبيل. وهو الذي نهی الاخوة عن قتل يوسف عليه السلام وهذا قول قتادة والسدي والضحاک رحمهم الله، او مجاهد رحمه الله وايي چې له کبير څخه شمعون مراد دی چې د ورونو رياست يې پر ذمه درلودی "الم تعلموا" تاسې نه ياست خبر "الاستفهام للتقرير" چې ستاسې د پلار يعقوب څخه مو وعده محکمه اخستې ده، په قسم د خدای سره چې بنيامين به راولئ، او د مخه تر دې يعني تر واقعې د بنيامين تاسې تفريط يعني تقصير کړی ؤ په باره کې د يوسف چې له پلاره مو جلا کړی او جب ته مو واچاوه او سره ددې چې تاسې پلار ته ويلي وه "وانا لناصحون، وانا له حافظون.

فَلَنْ أَبْرَحَ ٱلْأَرْضَ حَتَّىٰ يَأْذَنَ لِىٓ أَبِىٓ أَوْ يَحْكُمَ ٱللَّهُ لِى ۖ وَهُوَ خَيْرُ ٱلْحَٰكِمِينَ ۝٨٠

نو زه نه جلا کېږم له مځکې څخه د مصر تر هغو چې ما ته اجازه راکوي پلار يعني د مصر په پرېښودلو سره، او يا حکم راکوي د جلا کېدلو خدای پاک پر ژبه د يعقوب عليه السلام يعني چې خدای پاک ده ته وحې وکړي په وتلو سره زما له مصر څخه، او په ترک د بنيامين او يا په موت سره زما او يا په خلاصولو د بنيامين له لاسه د عزيز مصر، او خدای پاک خير د حاکمانو دی لا ن حکمه حق وعدل.

اِرْجِعُوْٓا اِلٰٓى اَبِیْكُمْ فَقُوْلُوْا یٰٓاَبَانَآ اِنَّ ابْنَكَ سَرَقَ

تاسي ولاړ سئ وپلار ته ستاسي او ورته ووایاست اې زموږ پلاره په تحقیق ستا زوی بنیامین غلا کړې وه یعني از روی ظاهر چي صواع الملک دده له بار ځخه را وه کښل سوه.

وَمَا شَهِدْنَآ اِلَّا بِمَا عَلِمْنَا وَمَا كُنَّا لِلْغَیْبِ حٰفِظِیْنَ

او موږ پر ده د غلا حکم نه کوو مگر نه له سببه ددې چي زموږ علم راغلی یعني صواع الملک دده له باره راووتل یعني دا زموږ شاهدي نه ده ستا پر زوی د غلا بلکې دا اخبار دی له حال ځخه ستا د زوی، ددوی غرض دا ؤ چي موږ په دې یقین نه لرو چي ستا زوی بنیامین دي خامخا غلا کړې وي لاحتمال انیکون هذه دسیسة من جانب ملک مصر . نو یعقوب علیه السلام ورته وویل چي دا سړی یعني ملک مصر په دې ځه خبر ؤ چي سارق مریی گرځول کیږي په سبب د غلا؟ الا بقولکم خو تاسي ملک مصر په دې شریعت زموږ خبر کړی، او موږ نه یو د پټ حال د بنیامین ساتونکي، له ابن عباس رضي الله عنه ځخه روایت دی چي ددوی مراد دا ؤ چي موږ د شپې او د ورځي ساتونکي ؤ او د تگ راتگ ساتونکي نه وو. نو هم احتمال د غلا سته او هم احتمال ددې سته چي بل چا دي د شپې دده په بار کي ایښی وي، وقال قتادة ومجاهد في ترجمة الآیة "ماکنا نعلم حین اعطیناک الموثق ان ابنک سیسرق ویصر الامر الی هذا وانک تصیب کما اصبت بیوسف . وانما قلنا ونحفظ اخانا مما لنا من الحفظ من سبیل.

وَسْـَٔلِ الْقَرْیَةَ الَّتِیْ كُنَّا فِیْهَا وَالْعِیْرَ الَّتِیْٓ اَقْبَلْنَا فِیْهَا ؕ وَاِنَّا لَصٰدِقُوْنَ

او ته اې پلاره سوال وکړه عن القریة ای اهل القریة والمراد بالقریة بلدة مصر یعني سړي درواستوه چي هغه د کشف الحال ستا د زوی پوښتنه وکړي. او داغه رنگه پوښتنه وکړه د هغه قافلې والا وو ځخه چي موږ په هغه قافله کي راغلي یو راوي وایي چي ددوی سره یوه قافله د کنعانیانو د همسایه گانو ځخه د یعقوب علیه السلام هم ملگرې وه. چي هغه هم د غلې راوړلو لپاره مصر ته تللي وه. او موږ له

رشتیا ویونکو څخه یو ستا د زوی د حال په بیانولو کي.

**فائده:** بغوي رحمه الله وايي چي څرنګه جائز وګڼل یوسف علیه السلام چي د خپل پلار یعقوب علیه السلام سره يې مذکوره معامله وکړه او پلار ته يې خپل ځان ور وه نه ښودی اولاً، او څرنګه ده ورور بنیامین له پلار څخه جلا په مصر کي بند وساته اوسره ددې چي یوسف علیه السلام په دې وپوهېدی چي د بنیامین په ساتلو کي په مصر کي پلار ته به مي ډېر غم او وجد پېښ سي، آیا په دې کار کي د یوسف علیه السلام به عقوق د پلار نه وي؟ آیا په دې کار کي به قطیعة الرحم او قلة الشفقة نه وي؟

بغوي رحمه الله وايي چي ددې سوالو په ځوابو کي علماؤ او مفسرینو ډېري خبري کړي دي، والصحیح چي یوسف علیه السلام دا ټول کارونه په امر د خدای پاک کړي دي وحکمت الله فیه ان یزید في بلا یعقوب علیه السلام فیضاعف له الاجر ویلحقه في الدرجة لابائه الکرام ای اسحاق وابراهیم علیهما السلام. راوي وايي چي د یوسف علیه السلام ورونه چي خپل پلار ته راغله غیر له کبیر څخه چي هغه په مصر کي پاته سوی ؤ، او پلار ته يې دا حالات بیان کړي، نو پلار يې ورته وویل:

**قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ أَنفُسُكُمْ أَمْرًا ۖ فَصَبْرٌ جَمِيلٌ ۖ**

یعني خبره خو داغسي نه ده بلکې ښائسته کړې دی نفس ستاسي و تاسي ته یو کار، د یعقوب علیه السلام دا غرض ؤ چي تاسي چي بنیامین درسره بېوی شاید چي نفع عاجل به مو پرده اخستې وي یعني پر ملک مصر به مو خرڅ کړی وي، والا فما ادری ملک مصر ان السارق یسترق بسرقته" فصبر جمیل" ای فامری صبر جمیل

**یوه سه:** چي "جمیل" ودې ته وايي چي شکایت و مخلوق ته نه کوي.

**درویش وايي:** چي ولنعم ما قال المصاب بالغموم والاهوال والمصائب من قرن الراس الی القدم.

صبرت وان الصبر خیر معول ....... و هل جزع یجدي فاجزع
صبرت علی مالو تحمل بعضه ....... علی جبال غرور اصبحت بتصدع
ملکت دموع العین حتی رددتها ....... الی ناظری فالعین في القلب تدمع

**درویش وايي:** چي ددې ابیاتو ویونکې یوه غمجنه ښځه وه، چي حکایت

يې په طول سره په روح البيان کې راغلې دي.

عَسَى اللَّهُ أَن يَأْتِيَنِي بِهِمْ جَمِيعًا إِنَّهُ هُوَ الْعَلِيمُ الْحَكِيمُ ﴿٨٣﴾

شايد چې خداى پاک به راولي تولـه يعني يوسف عليه السلام او بنيامين ، واخاهم المقيم بمصر ، په تحقيق خداى (ﷻ) خبر دى په حال زما او ددوى يعني د زامنو او حكمت لري په تدبير کې د مخلوق خپل. يعني چې زه يې په دومره بلاوو کې مبتلاً کړى يم. يعني فراق يوسف وفراق بنيامين وفراق ابنه المقيم بمصر حتماً په دې کې حكمت د خداى پاک سته.

**فائده:** علماً وايي چې بلا پر درې قسمه ده (١) تعجيل العقوبة للعبد لکه يوسف عليه السلام چې په بندي خانه کې تېر کړه جزاً للهم بالزنى كمامر تفصيله في تفسير قوله "ولقد همت به وهم بها" فتذكر واللبث في السجن بعد مضى مدة مديدة بقوله للساقي اذكرني عند ربک فانساه الشيطان ذکره ربه فلبث في السجن بضع سنين، ومثل ما نزل بيعقوب عليه السلام وبينوا سبب ابتلائه بوجوه. تر تولو صحيح داده چې ده يو وخت يوه مينځه راتيول سره د يوه کوچني زوى بيا يعقوب عليه السلام زوى ځنى خرڅ کړى فبكت على فراقه حتى عميت.

(٢) يو قسم امتحان دى ليبرز ما في ضميره فيظهر للخلق درجته بانه اين هو من ربه مثل ما نزل بايوب عليه السلام من انواع البلايا كما هو مذكور في موضعه فقال الله تعالى في شانه عليه الصلوة والسلام "انا وجدناه صابراً نعم العبد انه اواب" قسم يې كرامت دى ليزداد عنده تعالى قرباً وكرامةً مثل ما نزل بيحيى بن زكريا عليهما السلام مع انه لم يعمل خطيئة قط ولم يهم بها. نو بني اسرائيلو دا نبي ذبح کړى او سر مبارک يې د يوې زانيه ښځې من بغايا بني اسرائيل ور کړى چې په کوڅو کې يې بازى په کولې.

**درويش وايي:** چې د علماؤ اجماع پر دې ده چې په ټولو اقسامو مذکوره وو کې د بلا اجر او ثواب سته چې سړى صبر پر وکړي او جزع او شکايت ونه کړي.

**درويش وايي:** چې مظهري رحمه الله ددې آيت يو صوفيانه طويل بحث مشتمل پر څلورو صفحو پر لار اچولى دى، لا فائدة في نقله في هذا التفسير

لان فهمه مشکل علی الطلبة بل العلماً المدرسین وتبع في ذالک صاحب المکتوبات المجدد للالف الثاني قدس سره السامي.

**مسئله**: پوه سه! چي په دې آیت کي دلیل پر دې دی چي تأسف او ژړا رواده په نېز د مصیبت، چي نوحه یعني لوی بغاري او یا تندی په چیلاخو وهل یا گرېوان څیرل یا په خوله شکایت کول نه وي پکښې. ولي چي تأسف او حزن قلبي په اختیار دی د سړي، ولا تکلیف بما لیس للعبد فیه اختیار. ولي چي داسي صابر کسان ښخي لږ دي چي ځان، زړه او سترگي دي کنټرول کړي د مصیبت په وخت کي.

بخاري او مسلم له انس ﷺ څخه مروي حدیث داسي بیان کړی دی چي د علیه الصلوة والسلام اخیري زوی چي نوم يې ابراهیم ؤ او د مرضعې په کور کي مریض سو، نو علیه الصلوة والسلام سره د څو کسانو د پوښتنې لپاره ورغله او د ابراهیم ساه لنډه لنډه کېدله یعني چي علامه د زکندن وه، نو د علیه الصلوة والسلام تر مبارکو سترگو وښکې راتوی سوې، نو عبدالرحمن بن عوف ﷺ ورته وویل "وانت یا رسول الله؟!" یعني ته هم ژاړې؟ (د ابن عوف ﷺ گمان دا ؤ چي دا قسم ژړا به هم منهي عنه وي) نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل یا ابن عوف انها رحمة" یعني دا اوښکي له رحمت او شفقت څخه تویېږي، بیا د علیه الصلوة والسلام تر سترگو نوري اوښکي توی سوې، نو علیه الصلوة والسلام داسي زېبا الفاظ وویل "العین تدمع والقلب یحزن ولا نقول الا ما یرضی ربنا (یعني انا لله وانا الیه راجعون) وانا لفراقک یا ابراهیم لمحزونون.

بخاري او مسلم له حضرت اسامه بن زید ﷺ څخه روایت کړی دی چي علیه الصلوة والسلام ورغلی دده د لور د زوی پوښتنې ته چي هغه ساه شړل په غوتو غوتو یعني زکندن يې ؤ، نو د علیه الصلوة والسلام تر مبارکو سترگو اوښکې راتوی سوې، نو سعد ﷺ ورته وویل ما هذا یا رسول الله؟ فقال علیه الصلوة والسلام هذه رحمة جعلها الله في قلوب عباده فانما یرحم الله من عباده الرحماً.

بخاري ومسلم من حدیث ابن عمر ﷺ قال قال رسول الله ﷺ ان الله لا

يعذب بدمع العين ولا بحزن القلب يعني لعدم الاختيار فيها ولكن يعذب بهذا واشار الى لسانه او يرحم يعني كه يې په خوله په زوره بغاري وکړي يا يې جزع او فزع په ښکاره وکړه فيعذب به، او که يې وويل انا لله وانا اليه راجعون فيرحم بد.

بخاري او مسلم له ابن مسعود ﷺ څخه داسي روايت نقل کړی دی چي عليه الصلوة والسلام وويل ليس منا من ضرب الخدود "چي بارخو گان په چپلاخه وهي" وشق الجيوب "يا گرېوان څيري" ودعا بدعوى الجاهلية مثل واجبلاه وغيره.

## وَتَوَلَّىٰ عَنْهُمْ

اعراض وکړی يعقوب (عليه السلام) له زامنو څخه کراهةً ما سمع منهم. او په خونه د غم ننوتی او ملاقات يې د زامنو او نورو خلکو سره بند کړی. جامي قدس سره وايي:

رو ای همدم دربزم طرب بادوستان خوش ری
مرا بگداز تا تنها در ین بیت الحزن میرم

## وَقَالَ يَا أَسَفَىٰ عَلَىٰ يُوسُفَ

اې زما غمه راځه چي وخت دی پر يوسف.

**فائده:** د عربو دا قانون دی چي په وخت کي د سخت غم او تکليف داسي نعره کوي واويلاه. يا اسفی يا هلکتا وامثال ذالک. د "يا اسفی" اصل يا اسفي بيا الاضافة ؤ وروسته يې په يا په الف بدله کړه لمد الصوت. "الاسف" شدة الحزن او غم ته وايي.

## وَابْيَضَّتْ عَيْنَاهُ مِنَ الْحُزْنِ فَهُوَ كَظِيمٌ ۝

او سپيني سوې سترگي د يعقوب (عليه السلام) يعني تور يې ولاړل په سبب د ډېر غم او ژړا يعني په سترگو ړوند سو، مقاتل رحمه الله وايي چي شپږ کاله يعقوب عليه السلام په سترگو شی نه ليدی.

**درويش وايي:** چي بعض روات وايي چي يعقوب عليه السلام په سترگو نه دی ړوند سوی بلکې سترگې يې ضعيفه سوې هغه ليس بشيئ لما سياتي في القرآن الکريم "فارتد بصيراً" حسن بصري رحمه الله وايي چي زمانه په منځ کي د فراق د

یوسف علیه‌السلام له یعقوب علیه‌السلام څخه او بیا تر وخته پورې د اجتماع اتیا کاله وه چې په دې دوران کې د یعقوب علیه‌السلام اوښکې نه ودرېدلې مع لم یکن في زمانه اکرم علی الله من یعقوب علیه‌السلام.

"فهو کظیم" ای مملو من الغیظ علی اولاده لکن ممسک في قلبه لایظهره وقیل مملو من الحزن ممسک لایظهره، دا لفظ ماخوذ دی من کظم السقا اذا شده بعد ملئه، والحاصل چې د یعقوب علیه‌السلام خوله تړلې وه هیڅ چا ته یې شکایت نه کاوه، نو کظیم یا فعیل په معنیٰ د فاعل دی یا فعیل په معنیٰ د مفعول دی فتفکر فیما سبق.

**درویش وایي:** چې روح المعاني د ابن جریر او ابن ابي حاتم چې دوی له لیث بن ابي سلیم څخه روایت کړی دی چې جبرئیل علیه‌السلام وه یوسف علیه‌السلام ته په بندي خانه کې یوه ورځ ورغلی چې یوسف علیه‌السلام وپېژندی، نو یوسف علیه‌السلام ورته وویل ایها الملک الکریم علی ربه" ته پر حال د یعقوب علیه‌السلام حال لرې؟ جبرئیل ورته وویل نعم، یوسف علیه‌السلام ورته وویل ما فعل قال جبرئیل ابیضت من الحزن علیک یوسف علیه‌السلام ورته وویل چې څومره اندازه د حزن یې ده؟ جبرئیل ورته وویل چې د اوویا بورو ښځو! (بوره په پښتو هغه ښځه بولي چې ژب غلاندې زوی یې مړ سي) یوسف علیه‌السلام ورته وویل هل له علی ذالک من اجر؟ قال جبرئیل نعم اجر مائة شهید.

**قَالُوا تَاللّٰهِ تَفْتَؤُا تَذْكُرُ يُوْسُفَ حَتّٰى تَكُوْنَ حَرَضًا اَوْ تَكُوْنَ مِنَ الْهٰلِكِيْنَ**

زامنو یعقوب (علیه‌السلام) ته وویل قسم په خدای دی چې لا تفتؤا بحذف لا ای لاتزال یعني همېشه ته. والقرینة علی حذف لا النافیة داده چې کله چېرې اثبات وای لام د ابتدا او تاکید په نون ضروري ؤ نحو والله لتفعلن کذا ونحو ذالک یعني همېشه ته د یوسف ذکر کوې، چې ته به نژدې وهلاکت ته ګرځې بسبب المرض والحزن والحرض في الاصل. الفساد في البدن وفي المذهب وفي العقل من الحزن او العشق او الهرم کذا في القاموس، نو حرض مصدر دی ولذالک لایؤنث ولایجمع. دلته په معنیٰ د صفت دی، او یا به مړ سې.

**قَالَ اِنَّمَآ اَشْكُوْا بَثِّيْ وَحُزْنِيْٓ اِلَى اللّٰهِ**

یعقوب (علیه‌السلام) ورته وویل زه شکایت نه کوم د خپل د هر حزن او غم مګر

خدای ﷻ ته يعني لا الى واحد منكم فخلوني وشكايتي، ما وخپل شکايت سره پر پرېږدئ. بغوي رحمه الله وايي چي د يعقوب علیه السلام پوښتنې ته يو همسايه دده ورغلی او ده ته يې وويل چي ولي دومره ضعيف او شيخ فاني درڅخه جوړ سو. او سره ددې چي د پلار د عمر اندازې ته نه يې رسېدلی؟ يعقوب علیه السلام ورته وويل چي دا حالت چي ما ته پيښ دی په سبب د ما ابتلاني بفراق يوسف.

فاوحى الله تعالى اليه يا يعقوب. آيا ته زما څخه شکايت کوې و مخلوق ته يعقوب علیه السلام ورته وويل اخطأتها فاغفرها، زه خطاوتم په دې شکايت کي ته ما وه بخښه. وروسته چي به د يعقوب (علیه السلام) څخه چا پوښتنه وکړه ده به ورته ويل "انما اشكوا بثي وحزني الى الله تعالى انتهى قول البغوي رحمه الله.

**درويش وايي:** چي دا شان نزول مخالف دی له سياق څخه. ولي چي دا خبره انما اشكوا آه خو يعقوب علیه السلام په جواب کي د زامنو وکړه يعني قولهم تفتعوا الآية نه په جواب کي د بل چا فافهم، وكذا ما روی چي يو چا د يعقوب علیه السلام څخه پوښتنه وکړه چي څه شي ته په سترگو ړوند کړې او ملا يې لکه کمان دروگرځول؟ ده ورته وويل اذهب بصري بكائي على يوسف وقوس ظهري حزني على اخيه يعني بنيامين، فاوحى الله اليه اتشكوني وعزتي لا اكشف مابك حتى تدعوني، نو يعقوب علیه السلام وويل انما اشكوا بثي الآية فهذه الرواية ايضاً يخالف سياق الآية.

وَأَعْلَمُ مِنَ اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿٨٦﴾

يعقوب (علیه السلام) ورته وويل چي زه خبر يم له رحمت څخه د خدای ﷻ يعني چي خوأست کونکی نه نا اميده کوي، او چي خدای پاک ته پناه ورورې هغه نه شرې. او يا معنا دا ده اعلم من الله بنوع من الهام.

په يوه روايت کي راغلي دي چي ملک الموت د يعقوب علیه السلام ملاقات ته ورغلی. نو يعقوب علیه السلام ورته وويل ايها الملک الطيب ريحه الحسن صورته هل قبضت روح ولدي يوسف علیه السلام في الارواح قال لا. نو د يعقوب علیه السلام زړه خو ډاډه سو او طمع د رؤيت د يوسف علیه السلام چي هغه خوب ليدلی و يعني "اني رايت احد عشر كوكبا" هغه خوب خو تر اوسه عالم وجود ته دی راغلی. نو خا ما خا به هغه خوب به د يوسف علیه السلام

په ژوند کي تحقق پیدا کوي او سدي ؔ وايي چي څه وخت چي ورنږو د يوسف عليه السلام وړلار ته بنه اخلاق د ملک مصر بیان کړه یعقوب عليه السلام ته په زړه کي طمع پیدا سوه چي داغه به يوسف عليه السلام وي په هر حال يعقوب وزامنو ته وويل،

**يٰبَنِيَّ اذْهَبُوْا فَتَحَسَّسُوْا مِنْ يُّوْسُفَ وَاَخِيْهِ وَلَا تَايْـَٔسُوْا مِنْ رَّوْحِ اللّٰهِ ؕ**

ای زامنو ولاړ سئ مصر ته يعني د غلي راوړو لپاره او تاسي هوري معلومات کوئ د يوسف عليه السلام او د ده د ورور بنيامين. او تاسي په دې باب کي مه نا اميده کېږئ د رحمت څخه د خدای جل جلاله او يا ده خوشحالي څخه د جانب څخه د خدای جل جلاله.

**اِنَّهٗ لَا يَايْـَٔسُ مِنْ رَّوْحِ اللّٰهِ اِلَّا الْقَوْمُ الْكٰفِرُوْنَ ﴿۸۷﴾**

په تحقیق شان دا دی چي نه نا امیده کېږي د رحمت عامه بلا نهاية څخه د خدای جل جلاله مگر هغه قوم چي کافران وي. ولي چي خدای جل جلاله پېژني هغه په هیڅ حال کي د خدای جلت رحمته وعظمت قدرته نه نا امیده کېږي" کریمه" لا تقنطوا من رحمت الله.

**درويش وايي**: چي په تاريخ کي راغلي دي چي يو سړی چي په کښتی کي سپور ؤ کښتی په دریاب کي ماته سوه او دا سړی پر یوه تخته پاته سو چي باد کرار کرار بوورله یوې جزرې ته ورسېدی د تختې څخه چابک وغورځېدی جزېرې ته ورغلی سړی شاوخوا په جزيره کي وگرځېدی هیڅ انسان يې په نظر نه ورغلی، نو په حالت کي د نا امیدي د ملاقات څخه د اهل او عيال يې داسي وويل "اذا شاب الغراب اتيت اهلي "وصار القار كا اللبن الحليب" سروش غيب به دل نا ميد او بشارت چنين داد" عسى الكرب الذي امسيت فيه"يكون وراثه فرج قريب" فاذا هو بسفينة في البحر فركب فيها ووصل الى اهله. وفي المثنوي"گر گران وگرشتا بنده بود"انکه جوينده است يا ينده بود" در طلب زن دائما تو هر دو دست" که طلب در راه نيكو رهبر است.

روی ان يعقوب عليه السلام امر بعض اولاده، نو داسي يو مكتوب يې و يوسف عليه السلام ته نوشته کړی بسم الله الرحمن الرحيم من يعقوب عليه السلام اسرائيل الله (يعني

عبد الله) بن اسحاق ذبيح الله والمشهور ان الذبيح هو اسمٰعيل عليه السلام، او بعض محققين وايي چي ذبيح اسحاق عليه السلام دی. ابن ابراهيم خليل الله. الی عزيز مصر. اما بعد فانا اهل بيت موكل بنا البلاء (يعني الامتحان) اما جدي فانه ابتلی بنار نمرود، فصبر وجعل الله عليه النار برداً وسلاماً. واما ابی اسحٰق فابتلی بالذبح فصبر ففداه الله بذبح عظيم واما انا فابتلاني الله بفقد ولدي يوسف فبكيت عليه حتی ذهب بصري ونحل جسمي وقد كنت اتسلی بهذا الغلام (يعني بنيامين) الذي امسكته عندک وزعمت انه سارق وانا اهل بيت لا نسرق ولا نلد سارقاً. فان رددته علي فبها ونعمت والا دعوت الله عليک دعوة تدرک السابع من ولدک ای النسل السابع، او دا مکتوب يې و زامنو ته ورکړی او لږ قيمت د غلې لپاره څه وړی او يو څه غوړي وغير ذالک يې په لاس ورکړه مصر ته يې واستول، دوی چې مصر ته ورغله او د هغه وروړ سره چې هورې ؤ يعني من قال لا ابرح الارض الاية کمامر، او په ګډه د يوسف عليه السلام دربار ته روان سوه، او د يعقوب عليه السلام مکتوب يې ورته تسليم کړی او داسې يې ورته وويل.

فَلَمَّا دَخَلُوا عَلَيْهِ قَالُوا يَا أَيُّهَا الْعَزِيزُ مَسَّنَا وَأَهْلَنَا الضُّرُّ وَجِئْنَا بِبِضَاعَةٍ مُزْجَاةٍ فَأَوْفِ لَنَا الْكَيْلَ وَتَصَدَّقْ عَلَيْنَا إِنَّ اللَّهَ يَجْزِي الْمُتَصَدِّقِينَ ۝

چې دوی داخل سوه پر يوسف (عليه السلام) نو دوی ورته وويل اې عزيز يعني المصر موږ ته رسېدلې او زموږ کورنی ته سختنه لوږه او موږ راوړي دي په راس المال د ثمن د غلې چې بې کاره شی دی. ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې دراهم زيوف وه يعني کوټه ردي چې نه چلېدله په عمومي تجارت کې. او بعض مفسرين وايي چې د مزجات معنی قليل ده، او بعض مفسرين وايي چې د صحرايانو وړی وې او غوړي وه، او بعض مفسرين وايي چې څرمني او چوټې وې، اصل معنی د ازجات دفع ده، فيقال للدارهم للردية لانها تدفع ولا تؤخذ. نو پوره راکړه موږ ته کيل کما کنت تعطينا قبل هذا بالثمن الجياد او ته پر موږ احسان وکړه چې د ردي او د جيد فرق مه کوه. وقال الضحاک رحمه الله تصدق علينا برد اخينا بنيامين په تحقيق د خدای پاک خوښ دي متصدقين چې په دنيا او اخرت کې ښه ثواب ورکوي.

**فائده**: تصدق په عرف کي خاص دی چي غرض د متصدق رضا د خدای ﷻ وي او ثواب، نو د هم دې عرف پر بنا حسن بصري رحمه الله له یوه سړي څخه واورېدل اللهم تصدق علي، حسن رحمه الله ورته وویل ان الله لایتصدق انما یتصدق من یبتغي الثواب والله تعالی غني عن الثواب بل قل اللهم اعطني وتفضل علي.

**فائده**: د یوسف علیه السلام ورڼو ده ته نه وویل ان الله تعالی یجزیک، بلکي عمومي لفظ یې ووایه، یا له دې سببه چي دوی ته نه وه معلومه چي عزیز مصر به تصدق وکړي او که نه. وقیل انهم لم یعلموا دینه.

**مسئله**: له سفیان ثوري رحمه الله څخه چا پوښتنه وکړه چي یو نبي له انبیاؤ څخه سوی نبینا علیه السلام صدقه روا وه او که څرنګه؟ سفیان ثوري رحمه الله ورته وویل الم تسمع قوله تعالی وتصدق علینا الآیة. لکن دا دلیل د سفیان ثوري هلته صحیح کېږي چي نبوت د ورڼو د یوسف ثابت سي وفیه اختلاف عظیم بل الظاهر عدم نبوتهم لان الانبیا علیهم السلام معصومون عن الکبائر قبل النبوة وبعدها کما اثبتنا ذالک في رسالة للعبد الفقیر "کشف العظا عن عصمة الانبیا" وهذه الرسالة اجدی من تفاریق العصا.

**پوه سه**: چي جزا او ثواب په اخیرت پوري نه دی خاص بل قد یکون دنیویاً.

**درویش وایي**: چي پر دې تقدیر ان الله یجزي المتصدقین پر خپل ظاهر صحیح دی لان یوسف داخل فیهم کمایدل علیه سیاق الفظ الجمع الآیة کذا في روح البیان نمونه د ثواب دنیوي. له شیخ ابي ربیع رحمه الله څخه روایت دی چي ما واورېدل چي په بعضې قریو کي یوه ښځه ده چي یوه مېږ لري چي د لوشلو په وخت کي یې تر یوه تي شیدې راځي او تر بل تي یې عسل راځي. نو دی وایي چي زه د کشف الحال لپاره هغې قریې ته ورغلم نو هغه مېږه داغسي وه لکه چي ما اورېدلي وه، نو ما له هغې ښځي څخه سبب ددې و پوښتی، دې راته وویل چي موږ یوه مېږه درلوده چي موږ د خپل عیال قوت د هغې له شیدو څخه کاوه نو یوه ورځ موږ ته میلمه راغلی او موږ اکرام د میلمه خو په قرار د فرمودې د آنحضرت ﷺ مامور و، نو موږ هغه مېږ وارد میلمه ته ذبح کړه، نو خدای پاک په عوض کي د هغې مېږي دا مېږه راکړه.



Scanned by CamScanner

**فائده**: صدقه یوازې په مال پورې خاص نه ده بلکې هر معروف صدقه ده کالعدالة بین الاثنین، واعانة الملهوف والکلمة الطیبة للمؤمن والمشي الی الصلوة، واماطة الاذی عن الطریق ونحوها بل جمیع نوافل العبادات بلکې صدقه په انسانانو پورې هم نه ده خاصه، قال السعدي الشیرازي قدس سره:

یکی دربیابان سگی تشنه یافت .... برون از رمق در حیاتش نماند
کله دلو کرد آن پسندیده کیش .... چو حبل اندر آن بست دستار خویش
بخدمت میان بست وباز وکشاد .... سگی ناتوان را دمی آب داد
خبر داد پیغمبر از حال مرد .... که داور گناهان او عفوه کرد
کسی باسگی نیکوی گم نه کرد .... کجا گم شود خیر با نیک مرد
کرم کن چنان کیت برآید زدست .... جهانبان در خیر بر کس نه بست
به قنطار زر بخش کردن زگنج .... نباشد چو قیراطی ازدست رنج

راوي وايي چې څه وخت چې یوسف علیه السلام اظهار د مسکنت د ورونو وليدى د پر زره یې پروسو، او مکتوب د یعقوب علیه السلام ورونو پر یو ځای د تخت و یوسف علیه السلام ته کښېښنو، خط چې یې ووایه ژړا غلبه پر وکړه د ځان د پټ ساتلو واګې یې له لاسه ورکړې، او دوی ته یې وویل اې ورونو.

## قَالَ هَلۡ عَلِمۡتُم مَّا فَعَلۡتُم بِيُوسُفَ وَأَخِيهِ

آیا تاسي خبریاست په هغه ظلم چې تاسې پر یوسف وکړی من القائه في الجب کمامر او هغه چار چلند چې د مورنې ورور سره چې بنیامین ؤ ومو کړی چې د یوسف څخه مو جلا کړی ؤ او د ذلت په سترګو مو ورته کتل.

**پوښتنه**: د یوسف غرض له دې وینا څخه ورونو ته پېغور ورکول او ملامتیا پر ویل وه او که څرنګه؟

**ځواب**: تول مفسرین په یوه خوله وایي چې آیت او قول د یوسف علیه السلام ورونو ته د قبیلي د ذکر ملزوم وارادة اللازم ای هل تبتم مما فعلتم بیوسف واخیه من الظلم فان التوبة لازمة علی الظالم من ظلمه پېغور نه دی، بدلیل قول یوسف لهم. کریمه لا تثریب علیکم الیوم بلکې باعثه کول دي پر توبه ولا عاتبة فیه کما لا یخفی.

**درویش وایي:** چي مظهري رحمه الله د کلبي رحمه الله یوه قول را نقل کړی دی چي ضعیف دی غایة الضعف او هیڅ مفسر اشاره نه ده ورته کړې، نو د منلو وړ نه دی ان شئت فارجع الی تفسیر المظهري.

## إِذْ أَنتُمْ جَاهِلُونَ

چي تاسي ناخبره واست په قبح سره د ما فعلتم فلذالک اقدمتم علیه. او یا معنی د آیت داده چي تاسي جاهلان واست په مآل د یوسف علیه السلام د حال.

په روایت کي راغلي دي چي یوسف علیه السلام چي مکتوب د پلار ووایه ډېر یې وژړل او جواب یې داسي ورته نوشته کړی.

بسم الله الرحمن الرحیم: الی یعقوب اسرائیل الله من ملک مصر.

اما بعد: ایها الشیخ فقد بلغني کتابک وقرائته واحطت به علما وذکرت فیه ابائک الصالحین وذکرت فیه انهم کانوا اصحاب البلایا فانهم وان ابتلوا لکن صبروا وظفروا. فاصبر کما صبروا...... والسلام

دا مکتوب جوابي چي زامنو و یعقوب علیه السلام ته قرائت کړی. نو ده وویل والله ما هذا کتاب الملوک ولکنه کتاب الانبیاء ولعل صاحب الکتاب هو یوسف انتهی.

## قَالُوا أَإِنَّكَ لَأَنتَ يُوسُفُ

ورونو و یوسف (علیه السلام) ته وویل آیا ته یوسف یې استفهاماً، بعض مفسرین وایي چي دا پوښتنه دوی په قرینه د خبرو د یوسف توهماً وکړه.

او عطاء رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنهما څخه داسي روایت کړی دی چي د یوسف ورونو خو دی هیڅ نه پېژندی چي دی یوسف علیه السلام دی. لکن چي یوسف علیه السلام تاج له سره لېري کړی، نو دده په سر مبارک کي یوه د تپ علامه وه چي د یعقوب علیه السلام په سر کي هم دوی لیدلې وه او د اسحاق علیه السلام په سر کي هم هغه علامه وه او د ساره رضي الله عنها په سر کي هم دا علامه وه فعرفوه وقالوا ائنک لانت الآیة، وقیل غیر ذالک.

## قَالَ أَنَا يُوسُفُ وَهَٰذَا أَخِي ۖ قَدْ مَنَّ اللَّهُ عَلَيْنَا ۖ

یوسف (علیه السلام) ورته وویل زه یوسف یم او دا یعني بنیامین مي ورور دی

يعني سكه ورور، خداى پاک زموږ سره احسان كړى دى چي موږ يې په صحت او عافيت او خوشالۍ سره يو ځاى كړو.

# إِنَّهُۥ مَن يَتَّقِ وَيَصۡبِرۡ فَإِنَّ ٱللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجۡرَ ٱلۡمُحۡسِنِينَ ﴿٩٠﴾

څوک چي له خداى ﷻ څخه وبېرېږي بأداء الفرائض والواجبات وترک المنهيات او صبر وكړي پر مصائبو او ازار د خلګو له خوا. په تحقيق خداى ﷻ نه ضائع كوي اجر او ثواب يعني په دنيا او اخرت كي د احسان كوونكو.

**پوښتنه**: اجرهم" يې نه وو ايه بلكي محسنين يې وو ايه؟

**ځواب**: لپاره د تنبيه پر دې چي محسن هغه څوک دى چي جمع په منځ كي د تقوى او صبر وكړي.

# قَالُواْ تَٱللَّهِ لَقَدۡ ءَاثَرَكَ ٱللَّهُ عَلَيۡنَا وَإِن كُنَّا لَخَٰطِـِٔينَ ﴿٩١﴾

ورونو يې وويل د عذر د اظهار لپاره والله. نو لام موطئه د قسم محذوف دى يعني جواب دقسم محذوف دى. ته مختار كړې خداى پاک پر موږ بحسن الصورة وكمال السيرة وسائر الفضائل الدنيوية والاخروية.

**پوه سه**: چي "ان" مخفف د مثقل اسم يې ضمير شان محذوف دى. والواو للحال والمعنى الحال شان دادى چي موږ وو د خطاوتلو په ډله كي ستا و ستا د ورور بنيامين په باره كي يعني د ګناه كارانو په ډله كي چي ته مو و جب ته واچولې او له پلار څخه د دروغو په بهانه مو جلا كړې او ستا ورورته په مو د ذلت په سترګو كتل.

**فائده**: خطأ ته خطأ هلته ويل كېږي چي په قصد ګناه وكړي او اخطأ هلته ويل كېږي چي بې قصده ګناه وكړي.

# قَالَ لَا تَثۡرِيبَ عَلَيۡكُمُ ٱلۡيَوۡمَۖ يَغۡفِرُ ٱللَّهُ لَكُمۡۖ وَهُوَ أَرۡحَمُ ٱلرَّٰحِمِينَ ﴿٩٢﴾

يوسف (عليه السلام) ورته وويل چي هيڅ منت او ملامتيا نسته پر تاسي باندي نن ورځ يعني زه پر سر قدرت يم او په تاسي هر څه كولاى سم فضلاً عن سائر الايام. پښتانه وايي كړه غاړه توره نه پرېكوي، ستاسي د ټولو ګنهو چي زما او

ورور په بار کي تاسي کړي، ولي ما و بخښلاست اوسره ددې چي زه مظلوم او بخيل وم په ماظنکم بالغني الغفور فانه يغفر الصغائر والکبائر ويتفضل على التائب.
بيضاوي رحمه الله وايي چي له کرم څخه د يوسف عليه السلام دا ؤ چي ورونه يې سهار او مابنام کور ته غوښتل د ډوډۍ لپاره. نو ورونو يې ورته ويل چي موږ ستا څخه شرمېږو چي موږ ستا په باره کي تر حد بالا غلطي کړې ده. يوسف عليه السلام ورته وويل چي اهل مصر ماته په هغو سترګو ګوري لکه اول چي يې کتل ولقد شرفت بکم وعظمت في عيونهم حيث علموا انکم اخوته ومن ولد ابراهيم عليه السلام. راوي وايي چي وروسته چي يوسف عليه السلام و ورنو ته ځان ور وښووی. نو د خپلا ر يعقوب عليه السلام پوښتنه ځني وکړه مافعل ابي بعدي، دوی ورته وويل چي هغه ستا د فراق له سببه په سترګو ړوند سو، يوسف عليه السلام ورته وويل:

**اِذْهَبُوْا بِقَمِيْصِيْ هٰذَا فَاَلْقُوْهُ عَلٰى وَجْهِ اَبِيْ يَاْتِ بَصِيْرًا**

يوسئ قميص زما دغه (چي دا هغه ورېښمين قميص ؤ چي ابراهيم عليه السلام ته په اور کي د نمرود جبرئيل عليه السلام راوړی ؤ له جنت څخه او اخيراً و يعقوب عليه السلام ته په ميراث رسېدلی ؤ او يعقوب عليه السلام د تعويذ پر ډول د يوسف عليه السلام په غاړه کي ځړولی ؤ او هغه قميص تر حال حاضره پوري د يوسف عليه السلام په لاس کي ؤ) او دا قميص واچوئ زما د پلار پر مخ چي په برکت د جنتي قميص به په سترګو بنا سي. حسن بصري رحمه الله وايي چي يوسف عليه السلام چي دا خبره وکړه "يات بصيراً" تر وحي الهي وروسته يې وکړه. والا فکيف علم يوسف عليه السلام باتيانه بصيراً بالقا القميص على وجهه اذ ليس للعقل الى هذا سبيلاً کما لايخفى.

**فائده:** جا في الحديث النبوي ﷺ چي عليه الصلوة والسلام چي فتح د مکې وکړه نو د کعبې مکرمې په دروازه کي ودرېدی نو قريشو ته يې وويل چي ستاسي څه خيال دی چي زه به ستاسي سره څه وکړم؟ قالوا اخ کريم وان اخ کريم فقال رسول الله ﷺ اقول لکم ما قال اخي يوسف يعني لاخوته لاتثريب عليکم اليوم. سعيد شيرازي قدس سره السامي وايي:

نه يوسف كه چندان بلا ديد وبند .... چو حكمش روان گشت وقدرش بلند
گنه عفو كرد آل يعقوب را.... كه معنى بود صورت خوب را
بكردار بد شان مقيد نه كرد .... بضاعات مزجات شان رد نه كرد
زلطفت همين چشم داريم نيز .... برين بى بضاعت ببخش اى عزيز
بضاعت نياوردم الا اميد .... خدايا ز عفوم مكن نا اميد

## وَأْتُونِي بِأَهْلِكُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٩٣﴾

او راولئ تاسي او ستاسي عيال ټوله مصر ته.

**پوه سه**: چي اهل ښځو، اولادو، مريانو، مينځيانو، اقارب او اصحابو ټولو ته وايي. راوي وايي چي يهودا قميص واخستى او دا يې وويل چي ما پلار غمجن کړی دی په حمل د هغه قميص چي په وينو ککړ ؤ چي دا د يوسف قميص دی، نو زه يې هم نن خوشاله کوم لکه غمجن کړی چي مي ؤ، نو يهودا لڅي پښې او لڅ سر له مصر څخه کنعان ته رهي سو او اووه پټيري يې ورسره واخستلې او هغه يې ټولي ونه خوړلې چي کنعان ته يې ځان ورساوه وكانت المسافة بين مصر وكنعان ثمانين (۸۰) فرسخاً.

## وَلَمَّا فَصَلَتِ الْعِيرُ

هغه وخت چي كافله د ورونو د يوسف (عليه السلام) جلا سوه له مصر څخه او تر ابادۍ د مصر تېره سوه، مراد له قافلې څخه هغه ده چي قميص د يوسف عليه السلام پکښې ؤ لکه يهودا چي د يوسف عليه السلام د قميص وروړل وپلار ته پر ذمه واخستل كمامر عنقريب.

## قَالَ أَبُوهُمْ إِنِّي لَأَجِدُ رِيحَ يُوسُفَ

وويل پلار ددوی يعقوب عليه السلام و حاضرينو ته چي لمسيان مرېندي او نور قريبان وه، زه پيدا کوم بوی د يوسف. مظهري وايي چي په دې کي دليل پر دې دی چي دا بوی د جنت د خوا دی له يوسف عليه السلام څخه بالذات ومن قميصه بالعرض والا لقال ريح قميص يوسف. مجاهد رحمه الله وايي چي يعقوب عليه السلام ته

بوی د يوسف عليه السلام د درو ورځو لاري څخه محسوس سو. له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چي "من مسيرة ثماني ليال" وقال بينهما ثمانون فرسخاً. او بعض وايي چي باد راوالوتی او د قميص بوی یې راورساوه فوجد ريح الجنة. نو دی پوه سو چي په مخکه کي خو ريح الجنة نسته الا من ذالك القميص فلذالك قال اني لاجد ريح يوسف.

## لَوْلَآ اَنْ تُفَنِّدُوْنِ ﴿۹۴﴾

که تاسي نسبت د پند و ماته نه کوئ. والفند نقصان العقل من غاية الهرم. او كريمه: ثم رددناه اسفل سافلين الآية.

**فائده:** چونکه فند حالت عارضي دی من كبر السن. نو داسي نه ویل کېږي عجوز مفندة لان نقصان عقل النسا ذاتي كما ورد في الحديث النبوي الصحيح ما رئيت من ناقصات عقل ودين الحديث.

## قَالُوْا تَاللّٰهِ اِنَّكَ لَفِيْ ضَلٰلِكَ الْقَدِيْمِ ﴿۹۵﴾

حاضرانو و يعقوب (عليه السلام) ته وویل چي قسم په خدای دی چي ته خلاف الحق روان یې له قديم څخه په سبب د افراط في محبة يوسف وكثرة ذكره وتوقع لقائه.

## فَلَمَّآ اَنْ جَآءَ الْبَشِيْرُ

پس هغه وچي راغلی زیری کونکی د يوسف عليه السلام يعني دده د ژوند. وكونه عزيز مصر وسائر احواله. ابن مسعود رضي الله عنه وايي من بين يدي العير. يعني په نېز د حضور د قافلي يعني بشير او عير دواړه یو ځای راورسېدله. او ابن عباس رضي الله عنه او سدي رحمه الله وايي چي بشير يهودا وچي تر عير دمخه یې پیاده ځان راورساوه كما مر سابقاً.

## اَلْقٰىهُ عَلٰى وَجْهِهٖ فَارْتَدَّ بَصِيْرًا ۚ

واچاوه هغه بشير قميص د يوسف (عليه السلام) پر مخ د يعقوب (عليه السلام) نو وګرځېدی لیدونکی بعد ما كان اعمى وعادت قوته بعد الضعف وشبابه بعد الهرم كذا قال المظهري.

**درويش وايي:** چي وعلى هذا بطل قول المناطقة والحكما ان قول القائل ليت الشباب يعود تمنى للمحال فافهم، د روح البيان بيان هم د مظهري د بيان سره سمون خوري.

قَالَ أَلَمْ أَقُل لَّكُمْ إِنِّي أَعْلَمُ مِنَ اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿٩٦﴾

يعقوب (عليه السلام) و زامنو او حاضرينو ته چي ما نه وه درته ويلي چي زه خبر يمه د خداى پاک له خوا په هغه شي چي تاسي نه ياست په خبر يعني من حيوة يوسف وان الله يجمع بيننا، يا دا قول اني لاجد ريح يوسف، بغوي رحمه الله وايي چي وروسته يعقوب عليه السلام له بشير څخه پوښتنه وکړه كيف كان يوسف قال البشير انه ملك مصر، يعقوب عليه السلام ورته وويل چي ملک مصر څه کوم يعني ددې پوښتنه مي نه ده درڅخه کړې بل على اى دين تركته قال على الاسلام، يعقوب عليه السلام وويل چي اوس تام سو نعمت د خداى جل جلاله پر ما باندي.

قَالُوا يَا أَبَانَا اسْتَغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا إِنَّا كُنَّا خَاطِئِينَ ﴿٩٧﴾

زامنو د يعقوب (عليه السلام) و خپل پلار ته وويل اې زموږ بابا موږ ته طلب د بخښې وکړه زموږ د گنهو يعني په باره کي د يوسف چي له تا څخه مو په مکر او هيله جلا کړی وفعلنا به ما فعلنا، او په باره کي د بنيامين چي غلامي ته مو وسپاره په تحقيق موږ خطاوتلي وو چي ستا په حق مو څه وکړه يعني ته مو له غمه د فراق د يوسف وڅاه ته د غم په سپارلې، او د يوسف په حق کي مو څه وکړه، يعني زموږ توبه ده ته له خداى جل جلاله څخه زموږ بخښنه و غواړه.

قَالَ سَوْفَ أَسْتَغْفِرُ لَكُمْ رَبِّي إِنَّهُ هُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ ﴿٩٨﴾

ژر دى چي زه به بخښنه وغواړم ستاسي لپاره له رب څخه خپل.

**درويش وايي:** چي په ځنډولو کي د دعا د زامنو لپاره د يعقوب عليه السلام څه مراد دی (۱) بعض مفسرين وايي چي د يعقوب عليه السلام مطلب دا ؤ چي ددوی امتحان وکړي چي توبه ددوی د صدق قلبي ده او که څرنگه (۲) شعبي رحمه الله وايي چي د يعقوب عليه السلام مطلب دا ؤ چي زه د يوسف عليه السلام حال معلوم کړم چي هغه تاسي ته



Scanned by CamScanner

عفو کوي او که نه، او که يوسف عفو درته کوي، نو زه په هم طلب د مغفرت ستاسي لپاره وکړم فان عفو المظلوم شرط لمغفرة الله تعالى.
(۳) وهب بن منبه رحمه الله وايي چي يعقوب عليه السلام هره شپه د جمعې څه بالا شل کاله د زامنو لپاره دعا غوښتله (۴) په حديث شريف کي راغلي دي چي يعقوب عليه السلام د زامنو لپاره دعا تر سدس اخير پوري د شپې يعني بعيد صلوة التهجد وځنډول، نو چي يعقوب عليه السلام به د خپل ورد او تهجد څخه فارغه سو، نو به يې لاس پورته کړی او خدای جل جلاله ته به يې داسي ويل اللهم اغفرلي جزعي على يوسف وقلة صبري، واغفر لاولادي ما فعلوا بيوسف. فاوحى الله تعالى اليه قد غفرت لك ولهم اجمعين (۵) اکثره مفسرين پر دې مسلک دي چي دعا د يعقوب عليه السلام تر ثلث اخير د شپې ددې لپاره وځنډول چي دا وخت د اجابت دی کما في الحديث المتفق عليه من حديث ابى هريرة رضي الله عنه ينزل ربنا تبارك وتعالى كل ليلة الى السماء الدنيا حين يبقى ثلث الليل الاخير يقول من يدعوني فاستجب له ومن يسئلني فاعطيه من يستغفرني فاغفرله.
**درويش وايي:** چي بعض ظاهر الفاظ ددې حديث له متشابهاتو څخه دي، نو پر مذهب د متأخرينو دي تأويل وکړل سي او پر مذهب د سلفو دي تفويض د علم و خدای عزوجل ته وکړل سي.
**درويش وايي:** چي راويان وايي چي يوسف (عليه السلام) ټوله کار سازي د سفر و پلار ته ور استولي وه چي په هغه کي دوه سوه اوښان وه او ورته ليکلي يې وه چي د اهل سره مصر ته را روان سه. يعقوب عليه السلام هم د سفر تياري مصر ته وکړه شاعر خجندي وايي.
کرد شرين دهن ما خبر يار عزيز ........ که زمصرت اگر اينک شکری می آيد
نو يعقوب عليه السلام سره د ټول اهل او اقاربو پر اوښانو باندي راهي سو، چي مصر ته نژدې سو يوسف عليه السلام ته خبر ورسېدی، نو د پلار استقبال يوسف عليه السلام او ملک مصر ريان په څلورو زرو عسکرو وکړی او درې زره د آسانو سپاره او مشران او رئيسان د مصر ټوله او د هر سپاره سره د آس د سپرو د سپينو زرو او د

سرو زرو بيرق، نو په صحرا کي د مصر پیاده سوه او صفونه يې بسته کړه او تو له مریان د یوسف عليه السلام هم وه. نو پر غونډۍ چي يعقوب عليه السلام سره د اولاده راپه رته سوه وصحرا ته چي يې وکتل په سوو اسان ولاړ دي، نو يعقوب عليه السلام ودې تعجب آوره اجتماع ته حيران پاته سو. نو جبرئيل عليه السلام راغلـه ورتـه وه يې ويل انظر الى الهوا فان الملائكة قد حضرت سرورا بحالكم. يعقوب عليه السلام و سپرو ته د اسانو وکتـل او وه يې ويـل چي زما زوی یوسف کوم يو دی جبرئيل عليه السلام ورته وويل چي هغه سړی دی چي پر سر يې سايه وان نيولي دی. نو له ډېره عشقه څخه له اوښه را کښته سو او پياده روان سو چي پر يهودا يې تکيه کړې وه. جبرئيل عليه السلام و یوسف عليه السلام ته وويل چي پلار دي پياده سو ته هم پياده سه. او هر يو يعني يعقوب او یوسف عليهما السلام يو وبل ته په څغاستا را روان وه. چي سره نژدې سوه یوسف عليه السلام غوښتل چي پلار ته سلام ورواچوي جبرئيل عليه السلام ورته وويل پر پرده دی افضل دی چي تاته سلام درواچوي. نو يعقوب عليه السلام په بلند اواز ناري کړې السلام عليک يا مذهب الاحزان...... بيت:

چه جورها که کشیدند بلبلان از دی ...... ببوی آنکه دگر نوبهار باز آید

نو پلار او زوی لاسونه يو د بل په غاړو کي سره واچول او دواړه په ژړا سوه د خوشالۍ له کبله وبکت ملائكة السموات او آسانو شپشنی شروع کړی او ملکو تسبيح شروع کړې او ملکي نغارې وژغول سوې او حسب المعمول د خوشالۍ ډولونه وږغول سوه فصار صحرا مصر كانه يوم القيامة.

چه خوش حالیست روی یار دیدن ........ پس از عمری بیک دیگر رسیدن

## فَلَمَّا دَخَلُوا عَلَىٰ يُوسُفَ

چي داخل سو يعقوب (عليه السلام) و اهله پر یوسف (عليه السلام) باندي.

**سوال:** دمخه په بيان کي د قصې د ملاقات د يعقوب او د یوسف عليهما السلام داسي وويل سوه چي زوی او پلار يو وبل ته ورځغاستل ملاقات يې وکړی او دلته لفظ د دخول راغلی، او دخول په يو اطاق يا خونه يا خيمه کي وي؟

**ځواب:** هغه چي تېر سو هغه ملاقات شخصي د يقعوب او یوسف عليهما السلام و

لکن یوسف علیه السلام قبلاً په دغه صحرا کي یو قصر جوړ کړی ؤ چي په هغه قصر کي یې یو تخت هم ایښی ؤ په هغه قصر کي ملاقات عمومي د یعقوب علیه السلام او تولهٔ خاندان اولاد او لمسیانو او د یوسف علیه السلام انجام سو فلهذا قال فلما دخلوا آه.

## اٰوٰٓی اِلَیۡهِ اَبَوَیۡهِ

یوسف (علیه السلام) ضم کړل و ځان ته مور او پلار.

**پوښتنه**: د یوسف علیه السلام مور راحیل خو په نفاس کي د بنیامین وفات سوې وه نو څرنګه لفظ د "ابویه" راوړل سو؟

**ځواب**: اکثره مفسرین پر دې دي چي مراد له ابویه څخه پلار د یوسف علیه السلام او خاله دده ده چي لیا یې نوم ؤ لان الخالة بمنزلة الام کما جا في الخبر. وهذا کما اطلق الاب علی العم في قوله تعالی "ابائک ابراهیم واسماعیل واسحاق" او بعض مفسرین وایي چي یعقوب وروسته تر وفات د راحیل ددې خور لیا په نکاح کړې وه چي د یوسف علیه السلام میره کېږي او میرې ته هم په عرف کي مور ویل کېږي. او حسن رحمه الله وایي چي مراد حقیقي مور د یوسف علیه السلام ده هغه نه وه مره بلکي ژوندۍ وه، او بعض مفسرین وایي چي د یوسف علیه السلام مور خدای پاک ژوندۍ کړه او د یعقوب علیه السلام سره مصر ته راغله.

**درویش وایي**: چي دا دوه قوله شاذ دي.

**پوه سه**: چي په وخت کي د ملاقات د یوسف او پلار یعقوب علیهما السلام ده پلار ته وویل یا ابت بکیت علي حتی ذهب بصرک الم تعلم ان القیامة یجمعنا؟ یعقوب علیه السلام ورته وویل بلی په هغه خو خبر وم یا بني لکن خشیت ان تسلب دینک فیحال بیني وبینک في یوم القیامة.

## وَقَالَ ادۡخُلُوۡا مِصۡرَ اِنۡ شَآءَ اللّٰهُ اٰمِنِیۡنَ ﴿۹۹﴾

یوسف (علیه السلام) وروسته تر ملاقات د بیابان د پلار او ورېنو سره، نو دوی ته یې وویل چي داخل سئ و مصر ته ان شا الله د امن په ژوند تېرولو کي له قحط څخه او له نورو مکارهو څخه، او یا معنا داده چي بیا جواز یعني پاسپورټ ته ضرورت نسته لکه دمخه چي بې له جوازه د حکومت مصر د خوا څوک مصر ته نه سوای داخلېدای.

**يوه سه:** چي كلمه د "ان شآ الله" په دخول "آمنين" سره تعلق لري قدمت على آمنين للتبرك قبل تمام الكلام او لمراعات الفواصل كما في قوله تعالى لتدخلن المسجد الحرام ان شآ الله آمنين.

وَرَفَعَ أَبَوَيْهِ عَلَى الْعَرْشِ وَخَرُّوا لَهُ سُجَّدًا

او كښېښول يوسف (عليه السلام) مور او پلار پر تخت باندي، والرفع النقل.

**يوه سه:** چي چي يوسف عليه السلام مور او پلار تعظيماً لهما پر تخت كښېښول او ورونه يې يوه درجه لاندي كښېښول.

**درويش وايي:** چي د "وخروا له سجدين" په معنى كي د مفسرينو رحمهم الله لوى اختلاف دى، روح البيان وايي چي بر روى در افتادند پدر يعقوب عليه السلام وخاله وبرادران مر اورا. وروسته وايي چي سجداً حال مقدرة دى لان السجود بعد الخزور اى حال كونهم ساجدين تحية وتكرمة له فانه كان السجود عندهم جارياً مجرى التحية والتكرمة كالقيام والمصافحة وتقبيل اليد ونحوها من عادات الناس في التعظيم انتهى من تفسير الجزء الثالث عشر ص (٣٢)

**درويش وايي:** چي دا عبارت نص په دې كي چي مراد له سجدې څخه سجده متعارفه ده يعني وضع الجبهة على الارض وان ذالك كان جائزاً في دينهم على وجه التعظيم، دون العبادة، او زموږ په شريعت كي د سجود پر وجه متعارفه نهي راغلي دي لغير الله تعالى.

ومعنى الآية ولوېدل پلار د يوسف او خاله دده او ورونه دده حال كونهم ساجدين ليوسف على الوجه المتعارف للتعظيمه لا لعبادته، ويدل عليه ظاهر القرآن في رؤيا يوسف في حالة صغره "اني رئيت احد عشر كوكباً والشمس والقمر رئيتهم لي ساجدين" او روح المعاني په تفسير كي د ديارلسم جزء ص (٥٨) كي وايي اى على الجباه كما هو الظاهر، وهو كما قال ابو البقا ان سجداً حال مقدرة لان السجود يكون بعد الخرور وكان ذالك جائزاً عندهم آه، او قتاده وايي كان السجود تحية الملوك عندهم و اعطى الله هذه الامة السلام عليكم تحية اهل الجنة كرامة منه تعالى لهم انتهى، او بعض مفسرين وايي چي "خرو"

په معنی د رکوع بالغ دی دون وضع الجبهة علی الارض آه. او مظهري د دیارلس جزء په تفسیر کي ص (۲۰۲) کي وايي لم یرد بالسجود وضع الجباه علی الارض انما هو الانحنا التواضع یعني تواضعوا لیوسف.

**درویش وايي:** چي دا توجیه مخالفه ده له ظاهر څخه د قرآن یعني وخروا له سجداً کما لایخفی ثم رجع و اورد توجیه روح البیان وقال قیل وضعوا الجباه علی لارض وکان ذالک علی طریقة التحیة والتعظیم لا علی طریق العبادة وکانت تحیة الناس یومیئذ السجود وکان ذالک جائزاً في الامم السابقة فلنسخت في هذه الائمة یعني وجعلت تحیهم السلام علیکم انتهی.

**درویش وايي:** چي تولو مفسرینو رحمهم الله له ابن عباس رضي الله عنهما څخه داسي نقل کړی دی ان معنی الآیة خرو الله سجداً وشکراً بین یدي یوسف. والضمیر في له راجع الی الله تعالی.

**درویش وايي:** چي ددې قول د ابن عباس رضي الله عنهما معنی داده چي یوسف علیه السلام يې صرف قبله ورته وګرځاوه سجده د خدای عزوجل لپاره وه وذالک باذنه تعالی تعظیماً لیوسف کالکعبة لنا. وکما جعل آدم علیه السلام قبلة لسجود الملائکة حین امروا فالسجود له.

**درویش وايي:** وهذا التحقیق تفسیر الآیة بقدر الوسع والطاقة.

**پوښتنه:** ستا عادت خو حواله و تفاسیرو ته ده خصوصاً مع ذکر النمرة الصفحة نه وه. نو دلته دي ولي خلاف العادة کار وکړی؟

**جواب:** دا مقام مزلة الاقدام وو ولهذا نسبت کل قول الی قائله او یل د حاسدانو پر خولو مي مهر د سکوت ولګاوه بالغیبة والبهتان.

## وَقَالَ يَٰٓأَبَتِ هَٰذَا تَأۡوِيلُ رُءۡيَٰيَ مِن قَبۡلُ قَدۡ جَعَلَهَا رَبِّي حَقّٗاۖ

یوسف علیه السلام وویل چي دا سجده يې ولېدل ای پلاره دغه وو تاویل او تعبیر د خوب زما یعني په ایام کي د کوچني والي مي لیدلی ؤ. یعني "اني رئیت احد عشر کوکبا والشمس والقمر رئیتهم لي ساجدین" چي خدای وګرځاوه هغه زما خوب حق او ثابت او رشتیا.

**درويش وايي:** چې په اول کي تفسير د دې سورة بيان د دې خوب تير سو.

**وَقَدْ أَحْسَنَ بِيٓ إِذْ أَخْرَجَنِي مِنَ ٱلسِّجْنِ**

او زما سره احسان کړی دی يعني خدای ﷻ چې زه را وسيستم د بندي خانې څخه.

**پوه سه:** چې کلمه د با په معنی د علی ده.

**پوښتنه:** يوسف ولي د جب حال چې ورونړو دی ور اچولی وو او سره د دې چې د جب حال سخت وو تر سجن پلار ته يې نه کی بيان؟

**جواب:** دپاره د اکرام د ورونړو چې دوی خجل نه سي او سره د دې چې يوسف عليه السلام دوی ته ويلي وه "لا تثريب عليكم اليوم" او په زړه پوري جواب دا دی چې نعمت د خدای ﷻ پر يوسف عليه السلام بعد الخروج من السجن اعظم وو تر نعمت د اخراج من الجب ولي چې يوسف عليه السلام بعد الخروج من الجب صار الى العبودية والرق لقطفير زوج زليخأ، او په مکر د زلېخا اخسته سو چې اخيره نتيجه يې دخول السجن سوه، او وروسته تر خروج د بندي خانې ملک مصر وګرځېدی، کمامر تمام هاتين القصتين فيما بيان تفسير الآيات السابقة

**وَجَآءَ بِكُم مِّنَ ٱلْبَدْوِ**

او تاسي را وستاست د صحرا څخه.

**فائده:** بدو هغه فراخه ځکي ته وايې چې اهل مواشي په کښي اوسېږي او يعقوب عليه السلام او زامن هم اهل المواشي باديه نشينان وه.

**مِنۢ بَعْدِ أَن نَّزَغَ ٱلشَّيْطَٰنُ بَيْنِي وَبَيْنَ إِخْوَتِيٓ ۚ إِنَّ رَبِّي لَطِيفٌ لِّمَا يَشَآءُ ۚ**

وروسته تر دې چې شيطان فساد کړی وو په مابين کي زما او په مابين د درو ورنړو زما بالحسد والتباغض، په تحقيق زما رب تدبير کوي د هغه شي چې هېڅ سخت کار نسته مګر مشيت د خدای په هغه کي دخيل دی او په آساني يې بدلوي اذا شأ.

**إِنَّهُۥ هُوَ ٱلْعَلِيمُ ٱلْحَكِيمُ ﴿١٠٠﴾**

په تحقيق خدای په هر شي خبر دی او په هر کار کي حکمت لري.

**درویش وایي:** چي د حکمت څخه دخدای چي ښه خوب چي سړی وويني زمانه د وقوع یې اوږده وي الا یری ها، چي یوسف ﷺ چي ده په کچنی والي دا خوب لیدلی وُ "رئیت احد عشر کوکبا" وروسته تر اتیا کاله دا خوب رښتیا سو حکمت دادی چي زمانه د خوشحالۍ درازه او ډیره سي، او د بدو خوبو اثر ژر ښکاره کوي حکمت یې دادی چي زمانه د حزن او غم د مؤمن لنډه سي، راوي وایي چي یوسف ﷺ پلار تر لاس ونیوی پر خزائنو دمصر یې وګرځاوه (۱) خزائن الورق یعني سپین زر (۲) خزائن الذهب یعني د سرو زرو (۳) خزائن الحلي یعني زیورات (۴) خزائن الثیاب یعني د جامو تو کرانو (۵) خزائن السلاح یعني جنګي الات (٦) خزائن القراطیس ده کاغذانو خزانه. چي اول صانع او واضع د کاغذانو یوسف ﷺ وو. نو پلار ګله ورته وکړه چي دونه کاغذان دي درلوده ماته دي یو مکتوب د خپل حال نه کی نوشته او زما او ستا تر مابین (۸) مزله وه... بیت:

صد بار شد از عشق تو ام حال دګر ګون
یک بار نه ګفتی که فلان حال تو چون شد

قال امرني جبرئیل بذالک یعني چي پلار ته خط مه استوه پلار ورته وویل چي ته د جبرئیل څخه پوښتنه نه کوي چي ولي دي ماته دا امر راکاوه، یوسف ﷺ ورته وویل چي ته تر ما د جبرئیل سره ډیر شناخته یې ته پوښتنه څنې وکړه قال جبرئیل امرني ربي بذالک بسبب قولک اخاف ان یاکله الذئب نهلا خفتني، تاریخ خبر راکوي چي یوسف ﷺ د راعیل یعني زلیخاڅخه "افرایم" میشا" او حمة" چي د ایوب ﷺ کور ودانه وه او د افرائیم څخه نون پیدا سو او ده څخه یوشع ﷺ فتی موسی ﷺ یعقوب چي قصر یوسف ﷺ ته ورغلی د یوسف ﷺ اولاد ورته راغله مخ ته یې ودریدل یعقوب ﷺ په خوشحاله سو او مچ یې کړه او یوسف ﷺ پلار ته د زلیخا حال بیان کړی او دا حال چي دې زما سره څه وکړه ماد دې سره څه، او ورته وې ویل چي دا زما عیال د دې څخه دی، او زلیخا راغله د خسر لاس یې ور مچ کړی، او ورته وې ویل چي ته زموږ په کور کي اوسیږې یعقوب ﷺ ورته وویل چي زه

ستاسي په قصور او بنگلو کي نه اوسېږم بلکه وماته يوه د لرگو خونه راجوړه کړئ لکه په کنعان کي چي زما وه. د يوسف ﷺ په امر هغه سي خونگی یې ورجوړه کړه. نو يعقوب ﷺ په هغه کي په خوشحالئ او سرور د خپل خدای عبادت کاوه. جامي رحمه الله وايي:

چي خوش باشد كه بعد از انتظاري ...... باميد رسد اميد واري

بغوي وايي چي اهل تاريخ قديم وايي چي يعقوب ﷺ د يوسف ﷺ سره (۲۴) کاله ژوندی وو په ښه ژوند کي او په خوشحاله زړه عمر يې (۱۴۷) کاله ته ورسېدی بیا یې په مصر کي داعي الاجل ته لبيک ووايه او وفات سو چي وخت د وفات يې نژدې سو يوسف ﷺ ته يې وصيت وکړی چي زما مړی به کنعان ته ورې او د خپل پلار اسحاق ﷺ د څنگه سره به يې ښخه وې، نو يوسف ﷺ هم داغسي وکړه ومضى به حتى دفنه بالشام ثم انصرف الى مصر، تاريخ وايي چي سعيد بن جبير وايي چي يعقوب ﷺ په تابوت کي د ساج بيت المقدس ته يوړه سو اتفاقا په دغه ورځ عيص چي د ده ورور ؤ او د يوه بطنه زوکړي وه هم وفات سوی ؤ. نو په يوه قبر کي يې دواړه دفن کړه.

**درويش وايي**: چي بغوي رحمه الله گاهي وايي چي يعقوب ﷺ يې په کنعان کي دفن کړی او گاهي وايي چي په شام کي دفن کړی او گاهي وايي چي په بيت المقدس کي دفن کړی ولا منافات بين هذه العبارات كما لا يخفى فافهم.

**درويش وايي**: چي څه وخت يوسف ﷺ ته خدای ﷻ ټولـه نعمتونه د دنيا ورکړه او په دې پوهېدی چي نعيم د دنيا دائمي نه دي. ....... بيت:

همه ملک ونعمت پذيرد زوال ...... بجز ملک فرماندهي لايزال

نو يې سوال د حسن عافيت وکړی د خدای ﷻ څخه، نو داسي وويل.

رَبِّ قَدْ اٰتَيْتَنِىْ مِنَ الْمُلْكِ وَعَلَّمْتَنِىْ مِنْ تَاْوِيْلِ الْاَحَادِيْثِ

تا ماته راکړی بعض د سلطنت يعني د مصر ونواحيه، نو کلمه د من د پاره د تبعيض ده، ولي چي د ټولې دنيا ملک خو ده ته نه ؤ ورکړل سوی. او ماته دي

راښولي دي بعض تعبيرونه د خبرو يعني د خوبو، دلته هم كلمه د "من" لپاره د تبعيض ده، ولي چي د ټولو خوبونو تعبير خو ده ته نه ؤ ښوول سوی، ولي چي بعض خوبونه د دنيا د خلگو دده په زمانه كي ده ته د تعبير لپاره نه وه وړاندي سوي، البته ملكه يعني استعداد د تعبير د ټولو خوبونو خدای ﷻ ورکړی ؤ.

**بوه سه**: چي د ملک فراخي دي قدرت او د سیاست لمن وي و هو اهل التدبير.

**بوه سه**: چي ما لفظ د بعض ووايه اشاره ودې ته ده چي كلمه د من دالته هم دپاره د تبعيض ده "اذ فوق كلّ ذي علم عليم.

## فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ اَنْتَ وَلِيّٖ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ

ای خالق د اسمانو او مځكي "بوه سه: چي فاطر منصوب دی بحذف حرف الندا".

ته مالک او متصرف یې زما د کارو په دنیا او آخرت کي.

## تَوَفَّنِيْ مُسْلِمًا وَّ اَلْحِقْنِيْ بِالصّٰلِحِيْنَ

زما روح قبض كړې وخت ته حال كوني على ملة الاسلام او ما ملگری كړې وروسته تر قبض روح د صالح بندگانو سره یعني الانبياء ﷺ ولي چي کمال د صلاح په عصمت سره ده وهي مختصة بالانبياء ﷺ قتاده رحمه الله وايې چي هېڅ نبي خواست د مرگ نه دی کړی بېله یوسف ﷺ مظهري وايې وفيه نظر فان النبي ﷺ قال حين مرضه اللهم الرفيق الاعلى (ای اطلب الرفیق الاعلى وهو الله ﷻ) او بل په صحیح حدیث د عائشي ﷺ راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام وويل چي هېڅ نبي نه مري تر څو چي ده ته اختيار ورکړه کېږي په مابين كي د حيوة الدنيا ولقاء الله ﷻ. وفي الحديث الموت تحفة المؤمن. ولي چي دنیا د مؤمن كامل دپاره بندي خانه ده وفي المثنوي:

بس رجال از نقل عالم شادمان ....... وزبقايش شادمان اين كودكان.

**درېش وايي**: چي حسن رحمه الله وايي چي يوسف علیه السلام وروسته تر دي دعا ډېر كلونه ژوندی وو، او نور علماء قاطبة وايي وروسته تر دې دعا يوه هفته ژوندی وو بيا وفات سو، بعض علماء وايي چي جای نشین یې يهودا وگرځاوه او بعض وايي

چي خپل زوی افرایم یې ځای ناستی وګرځاوه، بغوي رحمه الله وایې چي په مده کې د
فراق د یوسف علیه السلام د یعقوب څخه د علماؤ اختلاف دی، کلبي رحمه الله وایې (۲۲)
دوویشت کاله وه او بعض وایي (۴۰) څلویښت کاله وه، او حسن وایې چي
یوسف علیه السلام چي یې څاه ته واچاوه د (۱۷) کالو ؤ، او د پلار څخه غائب ؤ (۸۰)
کاله وهو الاشهر او یوسف علیه السلام وروسته تر لقا د یعقوب (۲۳) کاله ژوندی ؤ او
ټوله عمر یې (۱۲۰) کاله ؤ، او په یو روایت کي وایې (۱۱۰) کاله ؤ، او د
یوسف علیه السلام د زلیخا څخه دری عیاله سوي وه، افرایم، او میشار او د افرایم د
اولاده څخه یوشع بن نون او بله یې لور وه رحمته چي زوجه د ایوب علیه السلام وه.

**فائده:** عکرمه وایې چي اول یوسف علیه السلام په راسته غاړه کي د رود نیل دفن
سو، نو دا غاړه ښه سر سبز او شاداب وه او د قحط څخه په امان وه او هغه بله
غاړه وچه او په قحط مبتلا وه بیا یې نقل کړی وجانب ایسر ته بیا جانب ایسر په
خفب او ښه کلي کي وه او جانب ایمن د قحط سره دست ګریبان و، آخیر اتفاق د
دواړو جانبو پر دې وسو چي د ده صندوق چي له مرمر څخه جوړ وو یعني تابوت
یې د رود نیل په مابین کي ښخ کړی فاخصب الجانبان ببرکته وامنا من القحط
الى ان اخرج تابوته موسى علیه السلام من قعر النیل فدفنه مع ابائه بالشام.

**درویش وایي:** چي وفیه قصة طویلة" او پر مصر عمالیقه وو چي د یو قوم
جبار نوم دی وروسته تر یوسف علیه السلام قبضه وکړه چي فرعون د موسی د دغه قوم
څخه وو، او بني اسرائیل د عمالقه وو تر لاس لاندي وه او لکه مریان یې وه او پر
لاس د موسی علیه السلام فرعون سره د ټوله قوم عمالقه ؤ په دریاب کي غرق سو، او
قدرت بېرته بني اسرائیلو ته په لاس ورغلی ثم وثم.

ذٰلِكَ مِنْ اَنْبَآءِ الْغَيْبِ نُوْحِيْهِ اِلَيْكَ ۚ وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ اِذْ اَجْمَعُوْٓا اَمْرَهُمْ وَهُمْ يَمْكُرُوْنَ ﴿۱۰۲﴾

دا قصه د یوسف علیه السلام چي په قرآن کي ذکر سوه د اخبارو څخه د غیب ده
یعني ته ای محمد ﷺ نه وې ورته حاضر موږ وحي وکړې وتاته یا محمد ﷺ او
ته یا محمد ﷺ نه وې په نیز د اولاد د یعقوب علیه السلام هغه وخت چي دوی اتفاق

وکړې چې يوسف علیه السلام به غيابة الجب ته اچوو، او دوی مکر کاوه چې يوسف علیه السلام د پلار څخه جلا کړي.

**پوه سه**: چي دا دليل دی پر نبوت د عليه الصلوة والسلام او پر صدق د قرآن چي من عند الله دی، يعني ستا پر مکذبينو من قريش وغيرهم پوشيده نه ده چي ته خو په واقعاتو د يوسف علیه السلام او ورڼرو حاضر نه وې او نه ستا ملاقات سوی دی د هغه چا سره چي په دې قصه خبر وي. نو معلومه سوه چي دا قصه په ذريعه د وحي تا ته معلومه سوې ده "وانک لمن المرسلين" بغوي رحمه الله وايي چي يهودانو او قريشو په اتفاق د رسول الله ﷺ دا قصه د يوسف علیه السلام طلب کړې وه او د ايمان راوړو وعده يې ورسره کړې وه، نو چي عليه الصلوة والسلام دا قصه موافق د تورات سره ورته وکړه او بيا هم دوی ايمان نه راوړی، نو انحضرت ﷺ ډېر غمجن سو. نو دا آيت نازل سو.

وَمَآ أَكْثَرُ ٱلنَّاسِ وَلَوْ حَرَصْتَ بِمُؤْمِنِينَ ۝

نه دي ډېر انسانان که څه هم ته ډېر حرص پر ايمان د دوی لري ايمان راوړونکي لعلمه تعالی الازلي باستمرارهم علی الکفر والضلال وان لا ينفعهم النصح والاتدار.

وَمَا تَسْـَٔلُهُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ ۚ إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعَٰلَمِينَ ۝

او ته نه غواړې د خلکو څخه پر انبا مذکور او يا پر قرآن من زائد دی د پاره د استغراق د نفي يو مزدوري، نه دی قرآن مگر ذکر او نصيحت د پاره د عالميانو، او حجت علی من لم يومن به او بصيرة او رحمت دی لمن آمن به.

**مسئله**: پر تعليم د قرآن يا د احاديثو يا د علوم شرعيه لکه فقه او اصول د متاخرينو پر فتوی اجرت اخستل روا دی في شرح الوقاية لظهور التواني في الامور الدينية لکن بيا هم اولی دا ده چي اجرت وانه خلي اقتداً بسنن جميع المرسلين علیهم السلام لکن دا اجرت متاخرين هم هلته روا بولي چي يو عالم د تعليم لپاره متعين نه وي يعني بل څوک نه وي او که بل عالم وي. نو موجود عالم ته اجرت اخستل حرام دی وعلی فقس غسل الميت وقبر الميت وغير ذالک يعني من فروض الکفاية.

وَكَأَيِّنْ مِّنْ آيَةٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ يَمُرُّونَ عَلَيْهَا وَهُمْ عَنْهَا مُعْرِضُونَ

او ډېرې نخښې دي په اسمانو کې من الکواکب والشمس والقمر وغیر ذالک او په ځمکه کې من الحیوانات والنباتات والجواهر الغالیات في الجبال الشامخات چې کفار تیرېږي پر هغو باندې یعني په مشاهده یې وینې او پر دې هم علم لري چې دا آیات باهرات في الارض والسموات په خپله له کتم څخه د عدم و عرصه ته د وجود نه دي راغلي بلکې خالق لري ذو قدرة تامة على الايجاد مگر حال د کفارو دادی چې دوی له دغو آیاتو څخه اعراض کونکي دي یعني په نظر د عبرت نه ورته گوري او فکر نه پکښې وهي حتی چې جمادات بتان ددغه خالق مقتدر خدای سره په عبادت کې شریکان بولي، او یا دهریه نسبت د دغو عجائبو د قدرت و دهر او زماني ته کوي، ويقولون ما يهلكنا الا الدهر.. ع برین عقل ودانش باید گریست.

**درویش وایي**: چې تحقیق د "كأين" على ما بينه المحقق الجامي رحمه الله في شرح الكافيه دا دی من الکنایة لفظ کاین وانما بني على السكون لان حرف التشبيه چې کاف دی پر اي داخل سو او اي معرب کلمه وه لکنه انمحى عنهما معناها الافرادي وجعل كلاهما كاسم مفرد بمعنى كم الخبرية وصار كانه اسم مبني على السكون آخره نون ساكنة كما في من لا تنوين تمكن ولهذا يكتب بعد اليا نون ساكنة مع ان التنوين التمكن لا صورة لها في الخط كما في زيد في الحالات الثلثة، الرفع نحو جائني زيد . والنصب نحو ضربت زيداً والجر نحو مررت بزيد . والمعنى اى عدد شئت من الدلائل على وجود الصانع وقدرته وتوحيده وكمال قدرته.

وَمَا يُؤْمِنُ أَكْثَرُهُمْ بِاللَّهِ إِلَّا وَهُمْ مُشْرِكُونَ

او ایمان او اقرار نه کوي اکثره د مشرکانو په خدای عزوجل سره یعني په وجود د خدای پاک او په خالقیت د خدای پاک في حال من الاحوال (فالاستثنا مفرغ) مگر په حال کې د اشتراک ددوی په عبادت کې بتان . ولي ددوی څخه چې به چا پوښتنه وکړه من خلق السموات والارض قالوا "الله" او چې له دوی څخه به چا پوښتنه وکړه من نزل من السماء ماء؟ قالوا! "الله" الى غير ذالک ومع ذالک یعبدون الحجارة اى الاصنام، له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی چې دا آیت په تلبیه کې د مشرکینو نازل سوی دی چې دوی به داسې تلبیه د حج یا د عمرې

ویله اللهم لبیک لبیک لا شریک لک الا شریکاً هو لک تملکه وما ملک.

عطا رحمه الله وايي چي دا آيت په دعا کي د مشرکانو نازل سوی دی چي په وخت کي د رخا به يې لات او عزی ته ناري وهلې او د سختی په وخت کي به يې خاص خدای عزوجل ته زاری کولې. کريمه: حتى اذا رکبوا في الفلک واحاطبهم الموج دعوا الله مخلصين له الدين (ای الدعا) فاذا نجاهم الى البر اذا هم يشرکون"

بلکې د تعجب خبره داده چي دوی به په کښتی کي د سفر اراده وکړه يو خدای به يې ورسره واخستی چي کښتی به طوفاني سوه هغه خدای بې دریاب ته وغورځاوه ودعوا الله مخلصين له الدين.

او بعض مفسرين وايي چي معنا د آيت داده "الا وهم مشرکون باتخاذ الاحبار ارباباً مطاعاً في خلاف ما امر الله به" او يا په نسبت د زوی وخدای پاک ته کما قال اليهود العزير ابن الله وقال النصارى عيسى ابن الله. يا بعض مشرکين وايي الملائکة بنات الله.

**درويش وايي**: چي محمد بن عبدالوهاب النجدي چي پېشوا د وهابيانو د ډلې دی وايي چي امت د عليه الصلوة والسلام وروسته تر سنه (٦٠٠) ټوله مشرکان واجب القتل دي. او ټوله هغه آيتونه چي په باره کي د مشرکينو د مکې راغلي دي لکه آيت مذکوره پر امت مرحومه وروسته تر (٦٠٠) هجري تطبيق کوي او دی يعني محمد بن عبدالوهاب ځېل ځان مجدد الدين معرفي کوي او اتباع دده هم دده ته مجدد الدين وايي، نه پوهېږم چي د عليه الصلوة والسلام دين خو تام او کامل دی. کريمه "اليوم اکملت لکم دينکم" نو د تجديد دين څه معنا ده، که دده مراد دا وي چي زه د دين احمدي ﷺ توضيح کوم نوی دين منځ ته نه راوړم يعني ځېل ځان رسول نه بولم، نو بايد دده داسي محتمل يعني مجدد الدين نه وای ويلی بلکې ځان ته يې لقب د موضح الدين الاحمدي وامثاله ورکړی وای.

**درويش وايي**: چي زما يوه رساله په نامه د "البيانات الصادقة في احوال الوهابية" چي هم دا اوس سره د بلې رسالې چي نوم يې "سيف القندهاري على عنق السلفي" ده دواړې رسالې يو ځای سره چاپ سوي دي.

**تنبيه**: د درويش دا وظيفه نه ده چي پر يو چا چي دعوه د اسلام کوي حکم د

كفر وكړي كما توهمه بعض الجهلة من اتباع الوهابية والسلفية، بلكې درويش صرف اقوال د معتبره محدثينو او مفسرينو كثرهم الله ﷻ رانقل كړي دي. وفرق عظيم بين نقل القول بكفر احد من الناس من كتاب معتبر في التفسير والحديث وبين حكم الناقل بالكفر عليه والجهلة لايفرقون بين النقل والحكم.

**سوال:** امام رباني مصنف د مكتوبات ځان مجدد الف ثاني بولي؟

**ځواب:** مجدد الف ثاني شيخ احمد السرهندي رحمه الله ځان مجدد الدين نه بولي، بلكې د طريقت د تصوفو ځان مجدد بولي ولا عاقبة فيه.

## اَفَاَمِنُوْٓا اَنْ تَاْتِيَهُمْ غَاشِيَةٌ مِّنْ عَذَابِ اللّٰهِ

يعني انسوا فامنوا، آيا دوى هېروي، نو بېغمه سوه له دې ځخه چې راښي دوى ته يو عقوبت چې تولو ته به شامل وي كائنة من عذاب الله لكه اسماني تكي او يا نور عذابونه.

**درويش وايي:** چې "انسوا" معطوف عليه د "فامنوا" دى كمامر مراراً في هذا التفسير، په "امنوا" كې ضمير راجع دى و مشركينو او كافرانو ته.

## اَوْ تَاْتِيَهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ۝

يا به راسي دوى ته قيامت چې مشتمل پر عذاب د جهنم دى ناببره، يعني دوى ته به علم نه وي او نه به علامه پر تعين د وخت وي، دوى شعور او علم نه لري پر راتګ د قيامت چې ځان ورته چمتو كړي يعني بالايمان.

**فائده:** استفهام په آيت كې لپاره د انكار دى يعني نه ښايي دوى لره دغه نسيان او امن، ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې اسرافيل به شپېلى پوه كړي او خلګ به په بازارو كې د دنيا په كاروبار اخته وي وهذا معنى بغتة.

## قُلْ هٰذِهٖ سَبِيْلِيْٓ اَدْعُوْٓا اِلَى اللّٰهِ

ته ووايه يا محمد (عليه السلام) دغه يعني دعوت و توحيد ته او ځانونه چمتو كول و قيامت ته زما لار او طريقه ده، زه بولم او دعوت وركوم خلګو ته يعني عموماً (فالمفعول محذوف) وخداى ته يعني الى الايمان بوجوده ووحدانيته و اتصافه بجميع

صفات الكمال والجلال، او وتنزته د خدای پاک عن جميع صفات النقص والزوال.

**فائده:** د "سبيل" لفظ مذکر او مؤنث دواړه مستعملیږي وانث في هذه الآیة.

**عَلٰى بَصِيْرَةٍ اَنَا وَمَنِ اتَّبَعَنِيْ ۗ وَسُبْحٰنَ اللّٰهِ وَمَآ اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ**

پر یقین یم او اتکلي او له خپل ځانه څخه بیان نه کوم بل هو وحي من الله ﷻ زه او هغه کسان چي زما متابعت کوي په دين کي.

**پوه سه:** چي لفظ د "انا" تاکید دی د ضمیر مستتر په "ادعوا" کي او "من" تبعیضي په "من المشرکین" کي پر عطف دی.

**پوه سه:** چي "وسبحان الله" عطف دی پر "ادعوا" یاندي یعني انزته تنزیها من الشرکا.

**سوال:** "ادعوا" خو جمله ده نو څرنګه عطف د "سبحان الله" چي مفرد مضاف دی پر صحیح دی؟

**خواب:** سبحان الله هم په معنی کي جمله ده اذ الاصل اسبح الله سبحاناً، او نه یم زه له مشرکینو څخه.

**درویش وايي:** چي ورروسته فعل د "اسبح" حذف سو تخفیفاً لکثرة الاستعمال، او مصدر چي سبحاناً مضاف سو و لفظ ته د الله فصار سبحان الله اوس نو اظهار د فعل بې نا جائز دی یعني داسي ویل اسبح سبحان الله او دا حذف هم قیاسي دی کما في الکافیة وشرحها للجامي قدس سره. او قاضي محمد مبارک په شرح کي د سلم العلوم للمحقق البهاري في بیان قول المصنف سبحانه ورته بیان کړی دی.

**سوال:** تاخو مره تفسیر د آیت مذکوره عمیق وکړی؟

**خواب:** ودي تفسیر ته ضرورت ؤ په بیان کي د عطف مذکور.

**پوه سه:** مشرکانو به علیه الصلوة والسلام ته په رد کي د نبوت دده داسي ویل لو شآ ربنا لانزل ملا ئکة. یعني که اراده وای د خدای ﷻ زموږ د لارښوونې نو به یې نازلي کړي وای ملکې. فنزل هذه الآیة في رد قولهم.

**وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ اِلَّا رِجَالًا نُّوْحِيْٓ اِلَيْهِمْ مِّنْ اَهْلِ الْقُرٰى ۗ**

او موږ نه دي رالستولي یعني رسولان تر تا دمخه یا محمد مګر نه نران د انسانانو لا ملائکة. چي موږ و هغو ته وحي کړي دي لکه تاته چي مو وحي کړي دي.

**فائده**: د رجال لـه لفظ څخه دا معلومه سوه چي ښځه نبي نسته، د "رجال" لفظ عام وٚ. نو په نوحي اليهم تخصيص وسو له عمومي خلګو څخه.

**درويش وايي**: چي قرى جمع د قريه ده او قريه په عرف عام كي كلي ته وايي يعني مقابل د ښار، لكن په عرف كي د قرآن مجيد په معنى د ښارو دى. ولي چي ښارو والا خلګ عاقلان او عالمان او حلم والا وي تر باديه نشينانو لغلظهم وجفائهم كما ثبت بالتجربة. ځكه وهابيان د وهابيت تخم اول په صحرايانو كي پاشي چي هغه جهال محض وي. حسن رحمه الله وايي نظراً له دې آيت څخه دا معلومه سوه چي د اهل بدو يعني صحرايانو څخه خداى پاک نبي نه دى را استولى.

**درويش وايي**: چي په بل ځاى كي د قرآن مجيد رد د قول د كفارو داسي خداى جل جلاله كړى دى "قل لو كان في الارض ملئكة يمشون مطمئنين لنزلنا عليهم ملكاً رسولاً"

**اَفَلَمْ يَسِيْرُوْا فِى الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ**

آيا سېر نه كوي په مځكه كي دغه مشركان چي تكذيب د رسلانو او آياتو كوي او دوى وګوري په نظر د عبرت اخير كار د هغو كسانو چي تكذيب د رسولانو او د آياتو يې كړى وٚ يعني قوم ثمود او قوم لوط وقوم شعيب وغيرهم يعني د هغو عاقبت هلاک او استيصال وٚ. نو له هغو څخه به عبرت واخلي. او دوى يعني كفار مكه به ستا اې محمد (عليه السلام) له تكذيب څخه به ډډه وكړي.، سعدي شيرازي رحمه الله داسي وايي:

پند گير از مصائب ديگران .......... تا نگيرند ديگران زتو پند
نرود مرغ سوى دانه فراز .......... چو ديگر مرغ بيند اندر بند

**وَلَدَارُ الْاٰخِرَةِ خَيْرٌ لِّلَّذِيْنَ اتَّقَوْا ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿۱۰۹﴾**

او هر آئينه دار د اخيري حالت، او يا دار د ساعة الآخرة او يا حيوة آخيره، ښه دى د هغو كسانو لپاره چي ځانونه يې له شرک او معاصيو او تكذيب الرسل والآيات څخه ساتلي وي، چي د هغو حال دخول الجنان او رضي الرحمن الى ابد

الاباد. آیا تاسي خپل عقول پر کار نه اچوئ تا چي وپوهیږئ؟ چي دار اخیره خیر دی للذین یتقون الشرک؟

**حَتّٰى اِذَا اسْتَايْئَسَ الرُّسُلُ وَظَنُّوْا اَنَّهُمْ قَدْ كُذِبُوْا**

غاية لما دل علیه وما ارسلنا من قبلك الا رجالاً. ای فتراخي نصرهم حتی نا امید به سوه رسولان له نصرت الهي څخه.

**پوه سه:** چي قرائت د کوفیانو او د ابو جعفر رحمه الله د "کذبوا" په تخفیف د ذال دی، نو د آیت معنا داده ظنوا ای الرسل انهم قد کذبوا ای کذبتهم انفسهم حین حدثتهم انهم ینصرون. او یا معنا داده چي کذبهم القوم بوعد الایمان او یا معنی داده وظنوا ای المرسل الیهم انهم ای الرسل قد کذبوا واخلفوا فیما وعد لهم من النصر وخلط علیهم الامر.

**فائده:** عائشه رضي الله عنها له قرائت څخه د تخفیف منکره وه، ددې رضي الله عنها په خیال کي دا وه چي معنا د آیت داسي ده چي د رسل به دا ظن سو چي خدای جل جلاله زموږ سره وعده د نصر خلاف کړه، نو څکه دې رضي الله عنها به ویل معاذ الله ان یظن الرسل ذالک بالله ای خلف الوعد. لکن قرائت د تخفیف متواتر دی که څه هم حضرت عائشه رضي الله عنها د علیه الصلوة والسلام څخه نه دی اورېدلی او نه هم په تواتر ورته رسېدلی دی، لکن معنی د تخفیف هغه سي نه ده لکه چي دې فهمولې وه بالنظر الی الظاهر بلکې معنی د آیت په صورت کي د تخفیف هغه ده چي موږ بیان کړه آنفاً.

**درویش وایي:** چي مظهري او بیضاوي او روح البیان ورته بیان کړی دی په صورت کي د تخفیف، او روح المعاني هم د معنی مذکور په صورت کي د تخفیف تائید کړی دی.

**درویش وایي:** چي غیر له قراؤ څخه د کوفې په تشدید د ذال یې وایي کما هو المختار لسیدتنا عایشة رضي الله عنها والمعنی وظنت ای ایقنت الرسل ان القوم قد کذبوهم فیما اوعدهم من العذاب في صورة عدم الایمان تکذیباً لا یرجی ایمانهم بعد. کذا قال قتادة رحمه الله. او بعض مفسرین وایي چي معنی د آیت په صورت کي د تشدید داده حتی اذا استیئس الرسل ممن کذبهم من قومهم وظنوا

ان من امن بهم من القوم قد كذبوهم وارتدوا من ايمانهم لشدة المحنة والبلاء عليهم وتاخير النصر الموعود.

**درویش وايي:** چي تحقيق او تفصيل د تفسير د آيت مذكوره في صورتي التخفيف والتشديد حتى الوسع والطاقة وعليك بالتأمل العميق فيما نقلنا من المفسرين المعتبرين رحمهم الله.

## جَآءَهُمْ نَصْرُنَا ۙ فَنُجِّيَ مَنْ نَّشَآءُ ؕ

راسي ورسولانو ته زموږ مرسته (يعني عذاب مكذبينو ته) نو موږ نجات وركوو هغه چا ته چي زموږ اراده ورته وسي يعني النبي والمؤمنون.

**سوال:** خداى پاک څه حكمت لري چي نبي او مؤمنان يې په لفظ مبهم د نشآ راوړه او تعين يې نه وكړى؟

**ځواب:** تنبيه پر دې ده چي اهل نجات هم دوى دي ولا يذهب الوهم الى غيرهم.

**درويش وايي:** چي ددې مثال داسي دى لكه په يو كور كي چي مثلاً يو زيد بل عمر او بل بكر وي، نو په لفظ مبهم سره نحو يا رجل هيڅ څوک رغ نه ورته كوي تر څو چي تعين ونه كړي، او كه په كور كي يو سړى موجود وي، نو په لفظ مبهم سره نحو يا رجل هم رغ ورته كوي.

## وَلَا يُرَدُّ بَأْسُنَا عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِيْنَ ﴿۱۱۰﴾

او نه رد بېږي عذاب زموږ له هغه قوم څخه چي مجرمين او كافران وي يعني چي عذاب پر نازل سي لانه لامرد لحكمه وقضائه.

## لَقَدْ كَانَ فِيْ قَصَصِهِمْ عِبْرَةٌ لِّاُولِي الْاَلْبَابِ ؕ

په تحقيق سره په قصو كي د انبياؤ (عليهم السلام) او د امتو، يا په قصه كي د يوسف (عليه السلام) او دده د ورونو عبرت دى خاوندانو لره د عقولو (لام موطئه د قسم دى) يعني عقول سليمه چي له كفر څخه خالي وي، انبياً عليهم السلام او امتيانو ته به يې خداى پاک نجات وركړي او كافران به د هلاک وكندي ته وسپاري وفي

هذه عبرة عظيمة لمن له عقل سليم، او په قصه کي د يوسف عليه السلام دا عبرت دی چي يوسف عليه السلام خدای عزوجل له غيابة الجب څخه ونهاية الحب ته ورساوه ومن حصير السجن الى سرير ملک مصر، نو پای د صبر چي يوسف عليه السلام وکړی سلامت او کرامت او پای د ورونو چي پرده يې ډېري خوارۍ، تېري کړي رسوايي او ذلت او ندامت سو، ع ..... وهكذا يذهب الزمان على العبر.

مَا كَانَ حَدِيثًا يُفْتَرَىٰ وَلَٰكِن تَصْدِيقَ الَّذِي بَيْنَ يَدَيْهِ

نه دی قرآن وما فيه من القصص، يوه خبره چي له ځانه جوړه سوې وي، يعني چي عليه الصلوة والسلام يې له ځانه جوړ کړی وي لکه قريشو چي به دا ويل، بلکې قرآن او قصص د قرآن تصديق د هغو کتابو کوي چي تر قرآن دمخه دي يعني تورات، انجيل او زبور.

وَتَفْصِيلَ كُلِّ شَيْءٍ

او بيان مفصل پکښي سته د هر شي يعني چي بندګان په ديني او دنيوي چارو کي ضرورت ورته لري، امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله ته دا بيت منسوب دی:

جميع العلم في القرآن ........... لكن تقاصرت عنه افهام الرجال

**درويش وايي:** چي احکام شرعيه چي د قرآن مجيد له نص څخه يعني عبارت النص او اشارة النص او دلالة النص او مقتضى النص څخه فهمېږي هغه قرآني احکام، وتفصيل تلک الاحکام والامثلة لها في کتب اصول الفقة. او هغه احکام چي په سنت نبوي سره ثابت وي په هغه هم قرآن کريم ته بالواسطه راجع دي، قال الله تعالى اطيعوا الله واطيعوا الرسول ﷺ، وقال ما اتاکم الرسول فخذوه وما نهاکم عنه فانتهوا وامثال ذالک" او چي په اجماع سره د امت مرحومه ثابت وي هغه هم قرآن کريم ته راجع دي بالواسطه قال الله تعالى ومن يشاقق الرسول الى ان قال ويتبع غير سبيل المؤمنين نوله ما تولى الآية، او متابعت د سبيل جميع المؤمنين هو متابعة الاجماع، او که په قياس سره د مجتهد ينو د دين ثابت وي هغه هم راجع دی و قرآن عزيز ته بالواسطه. قال الله تعالى فاعتبروا يا اولى الابصار، وبيان ذالک في کتب اصول الفقة.

﴿وَهُدًى وَرَحۡمَةٗ لِّقَوۡمٖ يُؤۡمِنُونَ﴾ ﴿١١١﴾

او قرآن كريم عين لاربنوونه ده له كفر او اضلال څخه، او عين رحمت دى چې خير د دنيا او اخرپه ده كي ستنه. فحمل الهدى والرحمة مبالغة كما في زيد عدل د هغه قوم لپاره چي مؤمنان وي. تخصيص د مؤمنين يې وكړى لانهم هم المنتفعون باحكام القرآن وان كان القرآن هدى للناس كما جا في موضع من القرآن.

شيخ ابو منصور ماتريدي رحمه الله وايي چي د يوسف عليه السلام او دده د ورنړو په قصه كي باعثه كول دي پر صبر او تحمل د رسول الله ﷺ پر ازار د قريشو. گويا خداى پاک و عليه الصلوة والسلام ته وايي چي ورونه د يوسف عليه السلام سره ددې چې دوى سره موافق وه په دين كي او زامن د يوه نبي يعقوب عليه السلام وه بيا هم د يوسف عليه السلام سره هغه كيد او مكر وكړى چي دمخه تېر سو. او دوى په دې پوهېدل چي دا كارچي مورد يوسف عليه السلام سره كوو داله محظوراتو څخه د دين دى. او يوسف عليه السلام پر هغه صبر وكړى او عفوه يې ورته وكړه كما قال لا تثريب عليكم اليوم. فانت يا رسول الله ﷺ احق ان تصبر على اذى قومک مع انهم كفار جهال لا يعلمون قبح اذاهم لک.

**فائده:** وهب بن منبه رحمه الله وايي چي خداى پاک نه دى نازل كړى يو كتاب چي په هغه كي دي قصه د يوسف عليه السلام پوره نه وي كما في القرآن والله اعلم.

**درويش وايي:** الحمدلله والصلوة والسلام على نبيه وآله وصحبه اجمعين.

زه په ورځ د جمعې تخميناً دوولس بجې د جمادى الاول شل سنه (١٤٢٩) هـ ق له تفسير څخه د سورت يوسف فارغ سوم. وما توفيقي الا بالله عليه توكلت واليه انيب. وروسته د سورت رعد تفسير شروع كېږي ان شا الله تعالى. اوس د عذر او التجا لاس پورته كوم او وايم:

الهى يا الهى يا الهى .......... ندارم جز اميدت تكيه گاهى
ندارم طاعت مقبول درگاه .......... بجز اشک ندامت آه آهى
شفيع اورده ام روى محمد .......... مرا از ذنب خود كن عذر خواهى
زكن موجود كردى جمله عالم .......... كرم كن بر من گم كرده راهى
ندارم توشه راه قيامت .......... بجز شرمندگى و رو سياهى

حافظ شیرازي قدس سره چه خوش میسر اید ومیگوید:

الا یا ایها الساقي ادر کاسا وناولها[۱]
که عشق آسان نمود اول ولی افتاد مشکلها[۲]
مرا در منزل جانان چه امن و عیش چون هردم
جرس فریاد میدارد که بربندید محملها
شب تاریک وبیم موج گرداب چنین هائل
کجا دانند حال ما سبکسا ران ساحلها
همه کارم زخود کامی به بدنامی کشید آخیر
نهان کی ماند آن رازی کزو سازند محفلها
حضور گرهمی خواهی ازو غائب مشو حافظ
متی ما تلق من تهوی "ع الدنیا واهملها

**سوال:** ددې فارسي ابیاتو چې بعض یې ډېر دقیق دي عوام خو څه کوي طالبان هم نه په پوهېږي؟

**ځواب:** طالبان ولې علوم مروجه په دورو وایي، مثلاً یو ملا اعلان کوي "دوره صرف" یعني ټولـه په دوې میاشتي درتـه وایم وهکذا "دوره نحو و دوره منطق" اخیر باید چې طالبانو د یو ماهر عالم سره د فارسي یو څو کتابه هم زده کړي، مثلاً پنج کتاب، گلستان، بوستان سعدي او کتاب د حافظ شیرازي او یو دفتر فقط د مثنوي چې دا ټولـه تخمیناً په یوه کال کې بلکې کم تر کال بنـه زدکېږي، نو د افصح الالسنة بعد العربي چې فارسي ده په مزایا به یې پـوه سـئ، نو اصل علت د ناپوهی په طالبانو کې دی په دروېش کې نسته.

بیت: تو گوی آنچه دانی سخن سودمند ...... اگر هیچ کس را نیاید پسند

[۱] مراد له "کاس" څخه پیاله ده د شرابو د محبت الهي.
[۲] لکه عشق د یوسف علیه السلام د خدای پاک سره، څو مره مشکلات یې ورالدي درلوده.

سُوۡرَةُ الرَّعۡدِ مَدَنِيَّةٌ وَهِيَ ثَلَاثٌ وَّاَرۡبَعُوۡنَ اٰيَةً وَّسِتُّ رُكُوۡعَاتٍ بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

**درویش وايي**: چي مظهري وايي چي سورة الرعد ميكه واياتها (۴۳). او روح البيان وايي چي شروع ددې سورت د تفسير يې په (۱۱۰۳ هـ ق) كړې ده وايي چي سورة الرعد مدنية، وقيل مكية الا قوله تعالى "ولا يزال الذين كفروا" وقوله تعالى "ويقولون الذين" او آياتونه يې پينځه څلوېښت بللي دي، او روح المعاني دا اختلافات په دقيقه توګه سره څېړلي دي. دی وايي چي مجاهد رحمه الله له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت كړی دی چي دا سورة مكيه دی، بيا ده ويلي دي وفي الاتقان يؤيد القول بانها مدنية. وروسته روح المعاني ويلي دي والذي يجمع به الاختلاف انها مكية الا آيات منها فانها مدنية. او روح المعاني وايي چي ددې سورت آياتونه په كوفي قرآن كي درو څلوېښت دي، او په مدني قرآن كي څلور څلوېښت دي او په بصري قرآن كي پينځه څلوېښت دي او په شامي قرآن كي اووه څلوېښت دي. والله اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب.

الٓمّٓرٰ تِلۡكَ اٰيٰتُ الۡكِتٰبِ ؕ وَالَّذِيۡۤ اُنۡزِلَ اِلَيۡكَ مِنۡ رَّبِّكَ الۡحَقُّ

الله اعلم بمراده في "الٓمّٓرا" يعني دا هم لكه نور مقطعات قرآنية له متشابهاتو څخه دي چي لا يعلم تأويله الا الله كما هو رائ السلف رحمهم الله.

دغه آيت د كتاب دی. اضافت په معنی د "من" ده او له كتاب څخه يا مراد دا راتلونكی سورت يا قرآن كريم دی. او "تلك" اشاره ده و آياتو ته د سورت يا د قرآن. والمعنی تلك ايات السورة او القرآن.

**پوه سه**: چي "الذي" محلاً مجرور دی عطف دی پر كتاب او مراد له "الذي انزل" څخه ټوله قرآن دی. نو كه مراد له قرآن څخه سورت سي، نو دا عطف د عام پر خاص دی. او كه كتاب په معنی د قرآن وي، نو عطف د يو صفت د قرآن يعني الذي انزل اليک پر بل صفت چي كتاب دی. "الحق" خبر د مبتدأ محذوفي دی ای هو الحق الثابت الذي لا ريب فيه.

**سوال**: په نحو كي وايي چي مبتدأ او خبر چي دواړه معرفه وي حصر د خبر

چې الحق دی په مبتدا چې "هو" دی چې راجع و قرآن ته دی مع ان السنة النبوية واجماع الامة المرحومة وقياسات المجتهدين كل واحد منهما حق يفيد الحق؟

**ځواب**: مراد له "ما انزل" څخه عام دی که منزل صراحةً وي او که ضمناً چې منزل صراحةً په اتباع سره د هغه امر کړي فيشمل الكل فتأمل.

## وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُوْنَ ۝

لکن ډېر خلګ پر حقيقت د قرآن ايمان نه لري، ولې چې دوی صحيح نظر او فکر د قرآن کريم په اعجاز، بلاغت، قصص او مثالو کې نه دی کړی.

**درويش وايي**: چې دا رد دی د هغه قول د مشرکينو چې دوی به ويل چې محمد ﷺ قرآن له ځانه جوړوي، په وروسته آيتو کې خدای پاک دلائل د توحيد خپل بيانوي:

## اَللّٰهُ الَّذِىْ رَفَعَ السَّمٰوٰتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا

خدای (ﷻ) هغه ذات يګانه دی چې پورته کړي يې دي يعني لوړ يې پيدا کړي دي اسمانونه، يعني داسي نه وه چې دمخه کښته وه بيا يې پورته کړل، نو لفظ الله مبتدأ ده او "الذي رفع السموات" يې خبر دی "بغير عمد" يعني بېله تمبو او ميلانو.

**بوه سه**: چې "عمد" جمع د عماد ده لکه اهب جمع د اهاب ده او بغير عمد په تقدير د متعلق حال دی له سمواتو څخه ای حال كون السموات متلبسة بغير عمد "ترونها" جمله د صفت د عمد ده، او نفي متوجه وقيد او مقيد دواړو ته دی يعني نه عمد سته او نه يې تاسي وينئ.

**بوه سه**: چې دا دليل دی پر وجود د صانع حکيم ولې چې ارتفاع د سموات على غيرها كالجبال والارض مع كونها متساوية كلها في حقيقة الجسمية لابد ان يكون من مخصص ليس بجسم ولا جسماني خص بعض الاجسام بالارتفاع وبعضها بالانخفاض وهو الله القادر المتعال.

## ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ

بيا غالب سو خدای (ﷻ) يعني پيدا يې کړی عرش، وهو من المتشابهات

وقد مر تمام البحث في هذا الاستوا في تفسير سورة يونس، او منقاد يې ګرځولي دي لمر او سپوږمۍ لما اراد منهما من الحركة السريعة او البطيئة لنفع الحوادث اليومية.

**پوه سه**: چي "ثم" په دې ځای کي د تراخي زماني لپاره نه دی، ولي چي خلق د عرش تر اسمانو دمخه دی بالاجماع. بلکي "ثم" لپاره د تفاوت بين الخلقين دی ای خلق السموات العرش.

## كُلٌّ يَّجۡرِيۡ لِاَجَلٍ مُّسَمًّى

هر یو د لمر او سپوږمۍ روان دي په خپل اسمان کي تر يو اجل معلومه پوري وهو وقت فنا الدنيا.

## يُدَبِّرُ الۡاَمۡرَ يُفَصِّلُ الۡاٰيٰتِ لَعَلَّكُمۡ بِلِقَآءِ رَبِّكُمۡ تُوۡقِنُوۡنَ ۝

کار سازي کوي د خپل مخلوق په خپل امر سره من الايجا والاعدام، والاحيا والامانة وغيرها من المقدورات التي لا تخفى "يفصل الأيت" ای ينزلها او بينها مفصل که مراد آيات قرآنيه وي او يحدث دلائل القدرة واحدا بعد واحد که مراد له آياتو څخه دلائل د قدرت او توحيد وي، شايد تاسي به په ملاقات د رب ستاسي يقين وکړي.

**پوه سه**: چي مراد له ملاقات څخه د رب ملاقات د جزا دی في يوم القيامة وهذا الترجي انما يكون بالتفكر په علوياتو او سفلياتو کي او تاسي به پوه سئ ان القادر على خلك هذه الاشيا قادر على الاعادة والجزا.

## وَهُوَ الَّذِيۡ مَدَّ الۡاَرۡضَ وَجَعَلَ فِيۡهَا رَوَاسِيَ وَاَنۡهٰرًا

او خدای (جل جلاله) هغه ذات دی چي غوړولې يې ده مځکه يعني په داسي شان چي حرکت پر ممکن دی او د انسانانو او حيواناتو بود وباش پر امکان پذير دی، او خدای پاک پيدا کړي دي په مځکه کي غرونه ثابت پر ځای ولاړ، او رودونه.

**پوه سه**: چي رواسي جمع د راسية ده.

**سوال**: رواسي خو جمع مونث ده نو د تانيث سبب يې څه دی؟

**ځواب**: تانیث یې په سبب ددې چي موصوف په اجبل جمع د جبل ده، ابن عباس رضي الله عنهما وایي چي اول غر چي پر ځمکه ایښوول سوی دی جبل ابي قبیس دی په مکه کي، او افضل د غرونو جبل احد دی کما قاله الحسن رح لقوله عليه السلام احد جبل یحبنا ونحبه.

**فائده**: غرونه او رودونه یې سره یو ځای کړل او تر یوه فعل لاندي یې دواړه راوړل له دې کبله چي غرونه اسباب دي د دریابو یعني رودو، تجربه شاهده ده چي د هر رود منابع غرونه دي.

## وَمِن كُلِّ الثَّمَرَٰتِ جَعَلَ فِيهَا زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ

او له هر قسم میوو څخه خدای پاک پیدا کړي دي په ځمکه کي دوه دوه قسمه یعني جید او ردي، خوږ تریو، لوی کوچنی، ګردی اوږد الی غیر ذالک من التفاوت.

**پوه سه**: چي ادنی مرتبه د میوو دوه قسمه ده ورنه د بعض میوو لکه انګور، سېب وغیرهما اقسام متعدده سته بکثرة "او اثنین" تاکید دی د "زوجین"

## يُغْشِى الَّيْلَ النَّهَارَ

پټوي خدای پاک په شپه ورځ یعني شپه په خپلو تاریکیو سره خدای پاک راولي ضوء د ورځي په پټ کړي یعني وبالعکس ایضاً. یعني چي د ورځي په ضیا ظلمت د شپي خدای جل جلاله پورته کوي.

## إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ۝٣

په تحقیق سره په مذکوره تحویلاتو کي ډېر دلائل دي د قدرت الهي او د صانع مدبر د کارنامو چي هغه ددغو کارو اسباب مهیا کوي.

## وَفِى الْأَرْضِ قِطَعٌ مُّتَجَٰوِرَٰتٌ

او په ځمکه کي توټې د ځمکي سته چي یوه قطعه د بلې سره نژدې دي ومع هذا بعض قطعې خوږې دي او بعض بنره او ترخې دي. او بعضې د بریښني ځمکي دي او بعض پستې ځمکي دي، او بعض ځمکي د کښت صالح وي او د درختو نه وي وبالعکس، او بعض قطعې ښه حاصلات کوي او بعض لږ حاصلات کوي، نو

په دې قطعو کې د مځکې که قدرت د صانع متعال کار فرما نه وايي، نو به يې ولې دا اختلافات واقع کېدلای، ولې چې طبعيت د مځکې يو دی او اسباب سماويه هم يو دي نو نتيجه داده چې دا اختلافات د صانع قادر له خوا دي.

**فوائد شتی:** (۱) حکماً وايي چې تول غرونه چې په اووه اقليمه کې موجود دي يو سل او اته اوويا (۱۷۸) دي. او بعض حکماً وايي شپږ زره شپږ سوه درې اوويا (۶۶۷۳) دي سوی التلول. د بعضې غرو طول شل فرسخه دی او بعض غرونه په طول سره سل فرسخه دي. او د بعضې غرونو طول زر (۱۰۰۰) فرسخه. او تر تولو لوړ غر جبل نهاوند دی چې په منځ کې د رې او طبرستان دی کما في شرح الچغميني (۲) په کتاب الملکوت کې وايي چې خدای ﷻ پر مځکه باندې بارانونه و اوروي، نو مځکه يې نوش کړي فيصير عيوناً في عروق الارض. بيا مځکه وچوي په هغه ځای کې چې د خدای ﷻ ورته اراده وي نو دا اوبه پر منځ د مځکې جاري سي لپاره د نفع د بندګانو والملک الموکل بذالک ميکائيل واعوانه.

(۳) له لويو رودو څخه فرات دی چې د کوفې رود دی او دجله چې د بغداد رود دی. او سيحان چې د مصيصې رود دی، او سيحون رود چې په هند کې دی او جيحان چې رود دی په بلادو کې د ارمنستان. او جيحون چې رود دی د بلخ او نيل رود مصر. او رود هلمند په افغانستان کې.

**درويش وايي:** چې دا شمېر رودونه او غرونه د په خواني سياحانو تلاش ؤ په اوسنې زمانه کې نور ډېر غرونه او رودونه پر بالا سوي دي، و التفصيل في ذالک طويل. والحق انه لا يعلم جنود ربک الا هو.

**وَجَنّٰتٌ مِّنْ اَعْنَابٍ وَّزَرْعٌ وَّنَخِيْلٌ صِنْوَانٌ وَّغَيْرُ صِنْوَانٍ يُّسْقٰى بِمَآءٍ وَّاحِدٍ**

(عطف علی قطع) يعني په مځکه کې باغونه دي د انګورو او د خورما درختي دي چې ېېخونه يې يو وي يا يې ېېخونه سره جلا وي، چې په يوه اوبو دواړه اوبېږي.

**درويش وايي:** چې اوولس (۱۷) قسمه د انګورو تخميناً په قندهار کې ما ليدلي او خوړلي دي، او په مځکه کې کښت هم سته.

**پوه سه:** چي زرع يې مفرد راوړې ولې چي مصدر دی او مصدر لا يثنى ولا يجمع "صنوان" هغه درختو ته وايي چي بېخ يې يو وي او تنې يې درې يا دوې وي "صنوان" جمع د صنو دی لکه قنوان جمع د قنو دی او تثنيه او جمع يکښې برابر دي، والفرق بين التثنية والجمع دادی چي نون د مثنى په مکسور دی بې تنوينه او په جمع منون، قال رسول الله ﷺ في العباس رضي الله عنه ان عم الرجل صنو ابيه يعني لکه صنو النخل چي بېخ يې يو وي، يعني د پلار د سړي او د اکا دده پلار يو دی.

**فائده:** عاصم، ابن عامر او يعقوب رحمهم الله دا لفظ په تأنيث وايي. ولې چي ضمير راجع و جمع ته دی په تأويل د جماعت. او نور قرأ يې په يا وايي على التذكير په تأويل د ما ذكر. والمقصود من هذه الآية ان الارض واحدة والماء ايضاً واحد فلم يكون بعض النخيل صنوان وبعضها غير صنوان فعلم ان الاختلاف مبني على حكمة الله العزيز الجبار.

## وَنُفَضِّلُ بَعۡضَهَا عَلٰى بَعۡضٍ فِى الۡاُكُلِؕ

او موږ بالا کړي دي بعضې مېوې که انګور وي او که خورما پر نورو د هغه جنس په مېوه کي يعني رنګ يې جلا وي او خوند يې جلا وي او مقدار او بوی يې هم سره جلا وي بلکې په قيمت کي يې هم فرق وي، مثلاً سپين کشمش انګور تر نورو اقسامو د انګورو قيمت يې بالا وي ثم وثم. او د عجوه خورما قيمت تر نورو خورما د پر بالا دی ثم قيمت البرني ثم وثم. له ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی په تفسير کي د اکل چي عليه الصلوة والسلام وويل "الدقل والفارسي، والحلو والحامض، مجاهد رحمه الله وايي چي کمثل بني آدم صالحهم وخبيثهم وابوهم واحد، روى عن الحسن رحمه الله هذا مثل ضرب الله لقلوب بني آدم ولې چي مځکه يوه خته وه په تصرف کي د خدای نو خدای په خپل قدرت سره وغوړول لويه مځکه يې ځندي جوړه کړه فصارت قطع متجاورات، او بيا خدای جل جلاله له اسمان څخه پر دغه لويه مځکه اوبه واورولې، نو له يوې قطعې څخه قسم قسم مېوې او ګلان پيدا سوه، او د بل قسم او قطعه مځکه تروه بنره ترخه پيدا سوه وکل تسقى بماء واحد، كذالک خلق الله الناس من آدم بغير وسط او

بوسط بل بوسائط . نو خدای پاک پر دې انسانانو نازل کړه کتابونه پر رسولانو يعني په وساطت د رسولانو . فرق وخشع بذالک قلوب بعض وقسی قلوب بعض قال الحسن رحمه الله ماجالس احد القرآن الا قام منه بزيادة او نقصان . قال الله عزوجل وننزل من القرآن ما هو شفآ ورحمة للمؤمنين ولا يزيد الظالمين الا خساراً.

**درويش وايي:** چې حمل د قرآن د دغو آيتو پر خپل ظاهر اولی او احسن دی تر حمل پر ضرب مثل لکه حسن رحمه الله چې وايي كما لا يخفى على ذوى النهى . الا ان يقال ان قول الحسن مبني على ان لكل آية ظهر وبطن كما ورد في الخبر . فلأخذ بالظاهر مسلک علمآ الظاهر والاخذ بالبطن مشرب اهل الباطن من الاوليآ تأمل.

## اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ﴿۴﴾

په تحقيق په ما ذکر کې د اختلافاتو د مځکو او د میوو دلائل د قدرت او د صانعيت او د وحدانيت د ايزد متعال دی د هغه قوم لپاره چې عقل لري او په دې آياتو کې له عقل سليم څخه من العناد والحسد والكبر كار واخلي . سعدي وايي:
برگ درختان سبز درنظر هوشيار ..... هر ورقی دفتریست معرفت کردگار

## وَاِنْ تَعْجَبْ

که ته تعجب کوې يا محمد (ﷺ) د تکذيب د مشرکانو تا لره په دعوه کې د رسالت وروسته تر دې چې دوی ستا معجزات باهره او آيات ظاهره وليدل او بيا هم دوی عبادت کوي د داسې شيانو چې نه ضرر رسولای سي و هغه چاته چې ددوی عبادت نه کوي او نه نفع رسولای سي و هغو کسانو ته چې ددوی عبادت وکړي لکونها جمادات وحجارة.

## فَعَجَبٌ قَوْلُهُمْ

نو د تعجب وړ خبره خو دا قول ددوی دی . (يوه سه: چې "قولهم" مبتدأ ده او "عجب" يې خبر دی قدم الخبر لان المقام مقام التعجب)

## ءَاِذَا كُنَّا تُرٰبًا ءَاِنَّا لَفِيْ خَلْقٍ جَدِيْدٍ ۬ۚ

آيا چې مونږ خاورې سو يعني بعد الموت . يعني مونږ به بيا ژوندي کېږو .

وحاصل الاية چي دا انكار ددوی د بعث بعد الموت څخه د تعجب ور خبره ده، ولي چي دوی خو اقرار کوي چي خالق ابتدا ً زموږ خدای دی. کريمه: ولئن سئلتم من خلقهم ليقولن الله" او عادت خو دا دی چي اعاده خو اهون ده تر ابتدا ً فكيف ينكرون الاعادة مع اقرارهم بابتدا ً الخلق من الله ﷻ وهذا هو محل التعجب.

## أُولَٰٓئِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ ۖ وَأُولَٰٓئِكَ الْأَغْلَٰلُ فِيٓ أَعْنَاقِهِمْ ۖ

دغه کسان يعني چي د اعاده بعد الموت څخه منکر دي هغه کسان دي چي کافران دي په رب سره ددوی. يعني بقدرة ربهم على الاعادة مع انها سهل في العادة من الابتدا ً. او دغه کسان دي چي طوق د ضلال به ددوی په غاړه کي وي چي ددې طوق د ضلال د خلاصي امکان نشته يعني په دې دنيا او يغلون يوم القيامة.

**پوه سه:** چي اغلال جمع د غُل بالضم ده چي معنی يې قيد ده.

## وَأُولَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ النَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ۝

او دوی دي اصحاب او ملازمين د اور يعني د دوږخ چي دوی به په اور کي همېشه وي تر ابده. لا يرجوا خلاصهم منها.

**فائده:** ضمير فصل يعني "هم" يې لپاره د حصر تابيد في النار په دوی پوري دون المؤمنين وان کانوا عاصين کل العصيان وفيه خلاف المعتزلة. دوی وايي چي مرتکب د کبيرې گناه چي بې توبې مړ سي ځای يې ابدي دوږخ دی لکه د کافر. والاول هو مذهب اهل السنة والجماعة.

## وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِالسَّيِّئَةِ قَبْلَ الْحَسَنَةِ

او دوی يعني کفار مکه طلب د ژر راتلو څخه کوي له تا څخه د عذاب دمخه تر عافيت ولي چي کفارو د مکې به استهزاءً ورسول الله ﷺ ته ويل چي پر موږ دي عذاب موعود ستا اوس اوس نازل سي، حيث يقولون. کريمه: "اللهم ان كان هذا هو الحق فامطر علينا الحجارة من السما ً اوئتنا بعذاب اليم.

**فائده:** درويش وايي چي دا سوال غايت استهزا ً وه د کفارو د مکي په انذار سره د عليه الصلوة والسلام دوی لره بالعذاب الاليم.

وَقَدۡ خَلَتۡ مِن قَبۡلِهِمُ ٱلۡمَثُلَٰتُۗ

او حال دادی چي تیري سوې دمخه تر دوی یعني کفارو عقوبات د خدای جل جلاله یعني في الامم الماضیة. نو دوی ولي له هغو څخه عبرت نه اخلي او پر ځانو ورته عذاب روا نه بولي وقد وقع الخسف والمسخ والرجفة والغرق في البحر في الامم الماضیة. فما لهم لا یعتبرون: سعدي شیرازي قدس سره وایي:

برادر ز کار بدان شرم دار .......... که درروی نیکان شوی شرمسار

ترا خود بماند سر از ننگ پیش .......... که گردت برآید عملهای خویش

**پوه سه:** چي مثلات جمع د مثله ده چي معنی یې عقوبت دی لانها مثل الفعل المعاقب علیه.

وَإِنَّ رَبَّكَ لَذُو مَغۡفِرَةٖ لِّلنَّاسِ عَلَىٰ ظُلۡمِهِمۡۖ وَإِنَّ رَبَّكَ لَشَدِيدُ ٱلۡعِقَابِ ۝٦

او په تحقیق ستا خدای لرونکی د مغفرت دي د خلکو لپاره سره د ظلم ددوی یعني پر خپلو ځانو بالکفر والمعاصي، او انکار ددوی د بعث بعد الموت څخه. او په تحقیق ستا خدای هر آئینه سخت دی عذاب دده، یعني عذاب الهي چي پر چا واقع سي د هیڅ چا د طاقت دفع یې نسته.

**فائده:** مراد له مغفرت څخه معنا متعارفه نه ده بلکې مراد ځني امهال دی یعني ان الله یمهل والکفار مع ظلمهم وکذالک لم یعذبهم مع طلبهم العقوبة کمامر.

**درویش وایي:** چي قد سمعت تفسیر المغفرة بالامهال وان الآیة في حق الکفار، لکن سدي رحمه الله وایي چي وان ربک لذو مغفرة للناس علی ظلمهم" په حق کي د مؤمنین دی خاصة، او دا ډېر د امید ایت دی په قرآن کي، ولي چي په دې آیت کي وعده د مغفرت سره د ظلم. نو له دې آیت څخه دا معلومه سوه چي عفو بې توبې هم کېدای سي لان التائب لیس علی ظلم لان التائب من الذنب کمن لا ذنب له، رواه عن ابن مسعود رضي الله عنه مرفوعاً. او سدي رحمه الله وایي چي وان ربک لشدید العقاب په باره کي د کافرانو دی، او بعض مفسرین لکه روح البیان وایي چي دواړه آیته په حق کي د مؤمنانو دي لکن مقید په مشیت سره یعني یغفر لمن یشاء المغفرة له ویعذب من یشاء تعذیبه.

**درویش وايي:** چي له دې څخه دا مسئله معلومه سوه چي د مؤمن ایمان باید بین الخوف والرجا وي پیدا کیږي... ابیات:

زحق مي ترس تا غافل نه گردی .......... مشو نومید تا بزدل نه گردی
پس پرده بیند عملهای بد .......... هم او پرده پوشد بلای خود
گر بمحشر خطاب قهر کند .......... انبیا را چه جای معذر تست
پرده از روی لطف گو بردار .......... که اشقیا را امید مغفرت است

**فائده:** علما وايي چي سړی ځوان او په صورت جوړ وي خوف پې باید غالب وي حتی یجتهد في الطاعات ویجتنب المعاصي فاذا مرض او ضعف وعجز عن العمل کان الرجا له افضل حتی لا یضعف قلبه بالخوف الکثیر في تلک الحالة او یزداد مرضه فافهم.

**وَيَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْلَا أُنزِلَ عَلَيْهِ آيَةٌ مِّن رَّبِّهِ**

او وايي هغه کسان چي کافران دي ولي نه نازل کړه کیږي پر محمد ﷺ یو دلیل او حجت د نبوت دده له جانب څخه د خدای دده دا خبره دوی یا له دې سببه کوله چي آیات منزله ته دوی هیڅ اعتبار نه ورکاوه مثلاً معجزه د شق القمر یا کلمه ویل د شګو په لاس کي د ابو جهل وغیر ذالک من الآیات والمعجزات الباهرات. او دوی تعنتاً وعناداً نوري معجزات غوښتلې لکه د صفا غر دي سره زر سي او یا دي د مکې غرونه لیرې کړل سي وغیر ذالک.

**إِنَّمَا أَنتَ مُنذِرٌ**

خدای پاک و علیه الصلوة والسلام ته وايي نه يې ته مګر بیرونکی د خلګو له عذاب څخه د خدای پاک پر کفر او معاصیو، یعني پر تا ایتان په معجزاتو ددوی د خواهشاتو سره موافق نسته. او نه د خلګو مجبوره کول پر ایمان.

**وَلِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ ﴿٧﴾**

او هر قوم لره لارښوونکی سته وهو الله ﷻ قادر دی پر هدایت د هر قوم، کریمه "یهدي من یشا الی صراط مستقیم" او یا معنا چي محمد ﷺ چونکه

نبوت يې په يو قوم دون قوم پوري خاص نه دی، نو هادي دی د هر قوم من العرب والعجم بل الجن ايضاً. نو د هدايت معنا ارائة الطريق ده لانها وظيفة النبي. کريمه"وما ارسلناک الا بشيراً ونذيراً" دون الايصال الى المطلوب لانه مختص به تعالى جل مجده. او يا معنا داده "لكل قوم من الامم الماضية نبي يدعوهم الى الله بما اوتوا من المعجزات لا بما اقترحوا استهزاءً وعناداً.

**فائده**: رافضيه قبحهم الله وايي چي حضرت عثمان ﷺ چي د قرآن جمع کوله لفظ د علي يې حذف کړی حسداً. نو په دې قول ددوی تفضيل د علي ﷺ پر عليه الصلوة والسلام لازمېږي، ولې چي معنى د آيت ددوی پر قول داسې کېږي "انما انت منذر ولست بهادٍ لكن علي هاد لكل قوم" وهذا كفر بواح هذا ما قال المظهري رحمه الله ولم اجد في تفسير غير تفسيره.

**تنبيه**: په وروسته آيتو کې خدای پاک خپل کمال علم او قدرت بيانوي وشمول قدرته وقضائه. ددې فائدې لپاره چي خدای ﷻ قادر دی چي ما اقترحوه دې نازل کړي لكن چي نه يې کړی نازل له دې کبله چي خدای ﷻ علم درلودی چي ددوی اقتراح له جهته د عناد وه دون طلب الرشد والهداية. نو وايي:

اَللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تَحْمِلُ كُلُّ اُنْثٰى وَمَا تَغِيْضُ الْاَرْحَامُ وَمَا تَزْدَادُ

خدای پاک خبر دی په حمل د هري ښځي (نو کلمه د ما مصدريه ده) او يا په هغه شي چي په رحم کې د هري ښځي وي (نو کلمه د ما موصوله ده) په هر صورت خدای پاک علم لري پر ذکورت او انوثت د حمل د هري ښځي، تام الاعضا به وي يا ناقص الاعضا، سعيد به وي يا شقي. واحد به وي يا متعدد.

**پوهنه**: چي روح المعاني وايي چي هر يو د "تغيض" و "تزداد" لازم او متعدي دواړه راغلي دي، بلكې روح المعاني دعوه د اجماع د اهل سنت پر دغه کړې ده او روح البيان هم دعوه د لزوم او تعديه په دواړو کې کړې ده او مظهري هم ويلي دي چي دواړه لازم او متعدي راغلي دي، او امام قرطبي هم ورته دعوه کړې ده، في القاموس غاض الماء غيضاً قل ونقص وغاض ثمن السلعة نقص، وغاض الماء وثمن السلعة نقفهما كاغاض، وازداد القوم على عشرة وتزداد كيل بعير.

نو کـه دواړه لازمي سي فکلمة ما مصدرية، والمعنى الله يعلم التفاض الارحام و ازديادها والاسناد الى الارحام مجاز دى لان فاعل ذالک هو الله تعالى يعني ينتقص ما في الارحام في الجثة والمدة والعدد، او يزداد وان کانا متعديين فکلمه ما يحتمل انتکون موصولة او مصدرية والمعنى الله يعلم ما تنقصه الارحام وما تزداده في الجثة والمدة والعدد.

**پوه سه**: چي په "مدة" کي حمل زيادت او نقصان دادی چي ادنی مدت د حمل شپږ مياشتي دی بالاتفاق، په يو روايت کي راغلي دي چي يو سړي يوه ښځه په نکاح کړه هغه پر شپږ مياشتي لنګه سوه. نو عثمان ﷺ د هغې د رجم اراده وکړه، يعني دده په ګمان دا ولد الزنی وه. نو ابن عباس ﷺ ورته وويل چي که دا ښځه ستا سره دعوی په کتاب الله سره وکړي پر تا به غالبه سي يعني په قرآن به ستا څخه ځان له رجم څخه خلاصه کړي. ابن عباس ﷺ ورته وويل قال الله تعالى "وحمله وفصاله ثلثون شهراً. وقال في موضع آخر وفصاله في عامين فلم يبق للحمل الا ستة اشهر" نو عثمان ﷺ ښځه له رجم څخه خلاصه کړه.

ابن الهمام رحمه الله په فتح القدير کي وايي چي په دې مسئله کي د درء الحد د عثمان ﷺ هيڅ چا مخالفت ونه کړی فکان اجماعاً.

**درويش وايي**: چي په تجربه سره ثابته ده چي د شپږو مياشتو مولود بقا کړې ده، او اکثره مده د حمل دوه کاله ده په نيز د امام اعظم رحمه الله، د حضرت عائشې ﷺ په صحيح اسنادو دا ثابته ده چي دې وويل "ماتزيد المرئة في الحمل على سنتين ولو بظل مغزل" او دا ښکاره خبره ده چي دا وينا د عائشې ﷺ له عقل څخه نه ده اذ لا طريق للعقل الى تعيين اکثر مدة الحمل فهو محمول على السماع من رسول الله ﷺ. او د امام شافعي رحمه الله په نيز اکثره مده د حمل څلور کاله ده. او په نيز د امام مالک رحمه الله پينځه کاله ده. حماد بن سلمه وايي چي هرم بن سنان په د مور په رحم کي څلور کاله ؤ ولهذا سمي بالهرم.

**درويش وايي**: چي مبنی د څلورو يا د پينځو کالو پر رواياتو او حکاياتو دی دا احتمال سته چي د ښځي څلور کاله يا پينځه کاله وينه د حيض بنده وي. لکن دا خو نه ده لازمه چي دا څلور يا پينځه کاله به دې حمل درلودی، ولي چي ښايي

چې دا ښځه دې ممتدة الطهرة وي دوه کاله یا اکثر دې ددې طهر ؤ وروسته دې حمل اخستی وي. واذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال.

**سوال:** که دا ښځه د څلورو یا پینځو کالو څخه په حرکت د حمل ددې په نس پوهېدله. نو څو دا یقین سو چې دا د څلورو یا پینځو کالو څخه حمل لري؟

**ځواب:** دا حرکت هم قطعي دلیل د حمل د څلور یا پینځو کالو را ایسته نه دی، ولي چې احتمال سته چې دا حرکت د بل سببه وي. په تاریخ کې راغلي دي چې یوه ښځه وه چې نهه میاشتي یې حرکت د ولد په رحم کې محسوساوه او وینه یې هم نهه میاشتي بنده وه او نس یې ډېر غټ ؤ لکه د حاملې ښځې. او دې ته درد د زېږېدلو د ولد هم ورپېښ سو، او دایي یې د لنګېدلو لپاره راوستل. نو هره پلا چې به دې ته درد ورولاړ سو له فرج څخه به یې اوبه راووتلې وهكذا شيئاً فشيئاً الى ان انضم بطنها یعني د نس پاړسوب یې ولاړی نس یې سره تېول سو، نو له دایي څخه ولاړه سوه بېله ولادته. حاصل دا چې دا حکایت معارض نسي کېدای د صحیح حدیث مروي عن عائشة رضي الله عنها كمامر.

**سوال:** د امير المؤمنين عمر رضي الله عنه په زمانه کې یوه ښځه وه چې ډېر کلونه یې مېړه غائب ؤ چې دی راغلی ماینې یې حمل درلودی، نو عمر رضي الله عنه ددې د رجم اراده وکړه یعني چې ښځې معلومداره زنا کړې ده، نو معاذ بن جبل رضي الله عنه وویل ان كان عليها سبيل الرجم لا سبيل لک على ما في بطنها فتركها حتى ولدت ولداً چې د مخ غابونه یې راغلي وه او په رنګ وپلار ته سوی ؤ. نو سړي چې ولد ولیدی قال ولدي ورب الكعبة. نو عمر رضي الله عنه ښځه په رجم نه کړه او سره ددې چې زنا د ښځې خو یقیني وه؟

**ځواب:** په فقه کې دا مسئله ده چې فراش قائم یعني طلاق منځ ته نه وي راغلی او مېړه دعوی د ولد وکړي. كما في المسئلة المذكورة رجم له ښځې څخه ساقطېږي. اختلاف په عدد کې د ما في الحمل الواحد.

**یوه سه:** چې امام اعظم رحمه الله وایي چې نهایت عدد د یوه حمل څلور دی. او شافعي رحمه الله وایي چې ماته یو شیخ وویل په یمن کې چې زما ماینه څو واره لنګه سوې ده په هر وار یې پینځه عياله راوړي دي.

**درویش وايي**: چي والله اعلم بصحة رواية الشيخ اليمني. او تر دې عجبه لا داده چې د يو قاضي مايني په ديارو كې د شرق الهند په يوه وار لنګېدلو كې په يوه بچه دان سل اولاده راورل تېوله هم ژوندي پاته سوه، والله اعلم.

بغوي رحمه الله وايي چې اهل تفسير وايي چې غيض الارحام دادی چې ښځې ته چې حمل لري وينه ورپيداسي چې داوينه چونكه غذا د ولد وه د مور په رحم كې. نو چې دا وينه راووځي نو ولد كمزوری كېږي، او چې وينه نه راوځي په مدت كې د حمل، نو ولد قوي كېږي. فالنقصان نقصان خلقة الولد بخروج الدم والزيادة زيادة خلقة الولد بسبب عدم خروج الدم الذي هو غذائه. او حسن رحمه الله وايي چې غيض الارحام د مخه تر نهه مياشتې وضع الحمل ده. والزيادة زيادتها على تسعة اشهر، وقيل غير ذالک يعني ان النقصان هو السقط والزيادة تمام الخلق.

وَكُلُّ شَيْءٍ عِنْدَهُ بِمِقْدَارٍ ﴿٨﴾

او هر شی په نېز د خدای حد معين لري لا يجاوز ولا ينقص.

عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْكَبِيرُ الْمُتَعَالِ ﴿٩﴾

خبر دی خدای پاک په غيب عن الناس او په حاضر عند الناس چې دی كبير دی په رتبه كې او هر شي تر ده كم دی او غالب دی په قدرت سره پر هر شي.

سَوَاءٌ مِّنْكُمْ مَّنْ أَسَرَّ الْقَوْلَ وَمَنْ جَهَرَ بِهِ وَمَنْ هُوَ مُسْتَخْفٍ بِاللَّيْلِ وَسَارِبٌ بِالنَّهَارِ ﴿١٠﴾

برابر دی له تاسي ځنې يعني في علم الله كه خبره د ځانه سره وكړي او كه جهر يعني اظهار وكړي وبل سړي ته، او هغه څوک چې طالب د اخفا د ځان وي په شپه كې او هغه څوک چې ښكاره ګرځي د ورځې او هر څوک يې ويني يعني علم د خدای پاک شامل دی سر او جهر پېتوالی د شپې او ښكاره والی فرق نه پكښې لري كما في علم الناس.

**اعراب**: "من اسر" مبتدا ده سره د ما عطف عليه، او "سوا" يې خبر دی په معنی د مستو او "منكم" حال دی له ضميره د "مستو"

**سوال**: سواء خو مفرد دی او مبتدا وي يې څلور دي فكيف يصح الاخبار عن المتعدد بالمفرد؟

**ځواب**: سواء که څه هم په معنی د مستو دی لصحة الحمل لكن لفظ مصدر دی په مصدر کي اخبار په مفرد او متعدد کي فرق نه لري كما تقرر في علم النحو او امام قطيبي رحمه الله وايي چي سارب بالنهار هغه څوک دی چي په خپلو حوائجو او کاروبار کي اخته وي د ورځي. دا عطف دی پر "من" او که يې پر "مستخف" عطف کړي، نو "من" په معنی د دوه کسه دی يعني سواء منكم اثنان مستخف وسارب. او ابن عباس رضي الله عنه ددې آيت په تفسير کي وايي چي د مستخف بالليل څخه مراد صاحب د زنی دی د شپې، او د سارب څخه مراد هغه زاني د شپې دی چي د ورځي ځان بري من الزنی ښکاره کوي، نو دا عطف دی پر مستخف. نو د "من" مراد يو سړی دی چي موصوف په دوه صفتونه سره دی.

## لَهٗ مُعَقِّبٰتٌ

بعض مفسرين وايي چي ضمير د "له" راجع دی و خدای جل جلاله ته. او بعض وايي چي راجع دی "ومن اسر القول ومن جهر آه" په تأويل د ما ذكر (روح المعاني)

او معقبات جمع د معقبة ده تاء يې لپاره د مبالغه ده د تانيث نه ده لان الملائكة لاتوصف بالذكورة والانوثة فهي كتاء العلامة (روح البيان) له معقبات څخه مراد ملائكة الليل والنهار دي چي په تعاقب سره يعني يو تر بل وروسته راځي يعني په تعاقب سره راځي ملکي د شپې او ورځي. اذا صعدت ملائكة الليل جائت في عقبها ملائكة النهار واذا صعدت ملائكة النهار جائت في عقبها ملائكة الليل (مظهري)

**درويش وايي**: چي بغوي رحمه الله وايي چي له ابو هريره رضي الله عنه څخه په صحيح روايت ثابته ده چي تاسي ته په نوبت راځي ملکي د شپې او د ورځي او دوی سره جمع کېږي د سهار په لمانځه کي، نو د شپې ملکي ځي او د ورځي دا پاتېږي او بل د مازديگر په لمانځه کي بيا د ورځي ملکي ځي او د شپې دا پاتېږي او بيا د شپې او د ورځي د ملكو څخه خدای پاک پوښتنه کوي كيف تركتم عبادي. نو

که سرې د سهار لمونځ او د مازديګر لمونځ په جماعت کاوه نو ملکې خدای پاک
ته وايي چې موږ چې ورغلو دوی پر لمونځو ولاړ وه او چې راتلو هم پر لمونځو
باندې وه (پای ته ورسېدې په اختصار سره)

مِّنۢ بَيۡنِ يَدَيۡهِ وَمِنۡ خَلۡفِهِۦ يَحۡفَظُونَهُۥ مِنۡ أَمۡرِ ٱللَّهِۗ

د مخ له خوا څخه او د شا له خوا څخه. يعني من جوانبه كلها.

**پوه سه:** چې "من بين يديه" صفت دی د معقبات ای کائنة من بين يديه ومن
خلفه، ضمير د "به" راجع دی و "من" ته يعني بنده ساتي له آفاتو او بلياتو او
دښمنانو څخه که انسي وي او که جني او که من جنس الحشرات الموذية، په امر
د خدای ﷻ چې تقدير د خدای پاک نه وي رسېدلی، او چې تقدير د خدای پاک
ورسېږي، نو ملائکه بنده او تقدير الهي سره پرېږدي.

**درويش وايي:** چې په عدد کې ددې ملکو لوی اختلاف دی چې په روح
البيان او روح المعاني کې مذکور دی وغيرهما فليطالع ثمة.

**درويش وايي:** چې د نوادرو تفاسيرو څخه ددې آيت دا تفسير دی چې ضمير
د "له" راجع و عليه الصلوة والسلام ته دی يعني لمحمد ﷺ معقبات يعني
ساتندوی سته د خدای ﷻ له خوا څخه من بين يديه ومن خلفه چې دی ساتي له
شر څخه د شياطين الانس والجن وطوارق الليل والنهار.

**پوه سه:** چې دا تفسير هم مقيد دی په دې سره چې تقدير د خدای پاک نه وي
رسېدلی، ولې د احد په غزا کې د عليه الصلوة والسلام سر مبارک په ډبره د
عبدالله بن قمية ټپي سو او يو رباعي غاښ مبارک يې مات سو.

**درويش وايي:** چې روح المعاني، روح البيان او مظهري په ګډه وايي: چې دا
آيت په روايت د عبدالرحمن بن زيد وغيره نازل سوی دی په عامر بن الطفيل او
په اربد بن ربيعه کې او د دوی قصه چې روايت يې ابن عباس ﷠ کړی دی چې
عامر بن الطفيل او اربد بن ربيعه چې دواړه د بني عامر د قبيلې وه مدينې ته
راغله په قصد د ملاقات د عليه الصلوة والسلام، په داسې حال کې چې عليه
الصلوة والسلام په مسجد کې ناست و سره د څو کسو اصحابو ﷡، نو دوی

دوه چي مسجد ته داخل سوه، نو خلگو يعني صحابه كرامو ﷺ سرونه پورته
كړه و بنائست ته د عامر يې كتله كه څه هم په يوه سترگه ړوند ؤ وكان من اجمل
الناس. فقال رجل يا رسول الله هذا عامر بن الطفيل ستا و خوا ته را روان دی.
عليه الصلوة والسلام وويل چي پرېږ يې ږدئ فان يرد الله به خيراً يهديه. نو
عامر راغلی و عليه الصلوة والسلام ته ودرېدی او داسي يې وويل مالي ان
اسلمت؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل لك ما للمسلمين وعليك ما على
المسلمين. عامر ورته وويل چي كه ته نبوت او امريت ماته سپارې ستا تر مرگ
وروسته نو زه به مسلمان سم؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل ليس ذالك الي
انما ذالك الى الله ﷻ يجعله حيث يشأ. بيا عامر بن طفيل ورته وويل چي ما پر
اهل وبر مقرر كړه يعني پر باديه نشيانانو او ته يې پر كلي والو. عليه الصلوة
والسلام ورته وويل يا! عامر بن طفيل وويل چي ماته نو څه شی راكوې؟ عليه
الصلوة والسلام ورته وويل چي واگي د اسانو په لاس دركوم چي ته به غزا پر
كوې. عامر بن طفيل وويل چي دا خو زما په قبضه كي دي تر ننني ورځي پوري،
عامر بن طفيل وويل چي ته زما سره ولاړ سه زه خبري درسره كوم. عليه الصلوة
والسلام ورسره ولاړ سو (عامر بن طفيل دمخه لا اربد ته ويلي وه چي ته چي
ووينې چي زه د محمد سره خبري كوم. ته د شا له خوا راسه په توره يې ووهه) نو
عامر د عليه الصلوة والسلام سره په بحث اخته ؤ چي اربد د شا له خوا ورغلی
چي په توره يې ووهي. يوه لوېشت چي يې توره وكښل توره بنده سوه له تېكي
څخه يې نسوای ايستلای. او عامر اشاره ورته كول چي وهه يې. نو عليه
الصلوة والسلام چي وكتل اربد يې تر شا ولاړ ؤ او توره يې كشول چي له تېكي
څخه يې وباسي. فقال عليه الصلوة والسلام اللهم اكفينهما بما شئت. نو خدای
پاك پر اربد په سپينه ورځ چي نه وريخ وه نه باد تكه د اور راشوه كړه او اربد يې
پاك وسو. او عامر بن طفيل وتښتېدی او عليه الصلوة والسلام ته يې د
تښتني په وخت كي دا پېش رو وكړی چي تا ستا خدای ته خواست وكړی او اربد
زما انډيوال دي را مړ كړی. قسم په خدای دی چي زه به پر تا مدينه ډكه كړم
بخيل جرد وفتيان مرد يعني هغه اسان چي ببر نه وي چي دا د ښه آس علامه ده،

او خوانان چي ډېري نه لري، علیه الصلوة والسلام وویل یمنعک الله من ذالک او خوانان د اوس او خزرج چي دوې قبیلې د انصارو دي. نو عامر د بوډي بد کارې رنډۍ سلولیه په کور کي ؤ چي سهار سو خپله سلاح یې پر ځان راټوله په هنداره کي چي یې وکتل رنګ یې ډېر متغیر ؤ. نو دښتې پر آس سپور سو صحرا ته ووتی ویقول ابرز یا ملک الموت او داسي یې ویله واللات والعزا که زه رسېدلی وای ومحمد ته او ده و صاحب ته یعني ملک الموت ته وار به مي په نېزه پیولی وای. نو خدای پاک یوه ملکه ورته راواستول چي په وزر یې وواهه په خاورو کي ولوېدی. او پر ز‌نګانه یې دستي غټه دانه راپورته سوه. نو بېرته د سلولیه کور ته ورغلی. وروسته یې د ځان سره وویل غدة کغدة البعیر وموت في بیت السلولیة. آس یې راوغوښتی پر سپور سو د آس پر شا مردار سو.

**فائده:** د علیه الصلوة والسلام ښېرا قبوله سوه یعني ما قال اللهم اکفنیهما آه، چي پر ارید تکه راشوه سوه او عامر د طاعون په غدة مړ سو. نو دا آیت نازل سو. له ای لرسول الله ﷺ معقبات الی اخیر الآیة نازل سو.

**درویش وایي:** چي دا قصه د هغه نادر تفسیر تائید کوي والله اعلم بالصواب

إِنَّ اللَّهَ لَا يُغَيِّرُ مَا بِقَوْمٍ حَتَّىٰ يُغَيِّرُوا مَا بِأَنفُسِهِمْ ۗ

په تحقیق خدای تغیر نه ورکوي هغه حال ته چي د یو قوم سره وي من الصحة والعافیة والنعمة، تر هغو چي تغییر ور نه کړي هغه قوم و هغو حالت ته چي په دوی مربوط وي یعني احوال جمیله خپل په احوال قبیحه وو سره بدل نه کړي.

وَإِذَا أَرَادَ اللَّهُ بِقَوْمٍ سُوءًا فَلَا مَرَدَّ لَهُ ۚ وَمَا لَهُم مِّن دُونِهِ مِن وَالٍ ۝

او چي اراده وکړي خدای پاک و قوم ته یعني دوی ما بانفسهم بدل کړي وسوء ته یعني و عذاب یا هلاکت بالاستیصال. نو ردونکی د هغه نسته (نو مرد مصدر میمي دی په معنی د فاعل یعني لا راد له) او نسته دوی لره ماسوا له خدایه یو متصرف د امورو ددوی چي هغه سوء ځني دفع کړي.

**فائده:** په نېز د اهل السنة والجماعة خلاف د ارادې د خدای ﷻ محال دی، معتزله وايي چي خلاف د ارادې د خدای ﷻ جائز دی بلکي واقع دی، دوی وايي چي خدای ﷻ وکافر ته د ايمان اراده کړې ده لکن شيطان يې و مراد ته د خدای نه پرېږدي يعني الايمان، يو معتزلي ملا وايي چي ما ته هيڅ چا الزام نه دی راکړی لکه يو مجوسي چي راکړی، ما يو مجوسي ته په طور د وعظ وويل چي ايمان راوړه، ده راته وويل چي د خدای اراده وسي زه به ايمان راوړم، ما ورته وويل چي خدای ﷻ خو ستا د ايمان اراده کړې ده لکن شيطان دي و مراد ته د خدای نه پرېږدي، ده راته وويل فاکون مع الشريک الاغلب يعني د اغلب شريک ملګری کېږم چي شيطان دی چي په اراده کي کفر زما پر خدای غالب سو، ولي چي خدای خو زما د ايمان اراده کړې وه فترکت مذهبي يعني الاعتزال بقول المجوسي.

**پوه سه:** چي اصل د "وَالٍ" والي ؤ لانه من الولاية چونکه ضمه پر يا ثقيله وه، ضمه يې حذف کړه بيا التقا د دوو ساکنو راغله چي يا ساکنه او تنوين دی، نو يا يې حذف کړه وال پاته سو، لکه په "قاض" کي چي اهل صرف ورته اعلال کوي.

هُوَ الَّذِىْ يُرِيْكُمُ الْبَرْقَ خَوْفًا وَّ طَمَعًا وَّ يُنْشِئُ السَّحَابَ الثِّقَالَ ﴿۱۲﴾

**درويش وايي:** چي خدای پاک بعض دلائل د قدرت او توحيد په دې آيتو کي بيانوي او وايي چي خدای هغه مقتدر ذات دی چي ويني په تاسي سره پېلبو يعني په وريځ کي د بېري په صورت کي يعني د تکي رالوېدلو څخه او يا د ضرر د ډېر باران وکښتو ته او يا وکورو ته په بعض وختو کي او په بعض ځايو کي او په صورت کي د طمع د باران نافع و کښت ته، او يا د ګرمی، د دفع لپاره په ډېره ګرمو ورځو کي، او خدای ( ﷻ ) پيدا کوي وريځي درنې يعني په اوبو د باران.

**پوه سه:** چي سبب د نصب د خوفاً او طمعاً يا بناً پر دې دی چي مفعول له د "يريکم" دي په تقدير د مضاف ای ارادة خوف او طمع او يا حال دی له برق څخه ای حال کونه ذو خوف او طمع او يا حال دی له ضمير څخه "يريکم" ای حال کونکم ذو خوف وطمع، او يا خوفاً وطمعاً په معنی د فاعل يا د مفعول دی مبالغةً فتدبر في هذه العبارات والاعرابات.

**پوه سه:** چي مظهري رحمه الله وايي چي "سحاب غربال الماً" وريځ د اوبو غلبېل ده. كذا قال البغوي رحمه الله.

**درويش وايي:** چي حكما وايي چي د لمر ګرمي چي ډېره سي، نو د لندو ځمكو او دريابو څخه اجزاً لطيفه مائيه جلا سي چي په ذريعه د هوا الوږ ولاړ سي. دا اجزاً چي طبقه زمهريري ته د هوا ورسېږي چي ډېره يخه طبقه ده هغوږي يخي سي او را ايله سي، نو پر ځمكه د باران يا د واوري يا د ږلۍ پر شكل بيرته اوري.

**درويش وايي:** چي ددوی دا خبره د اسلام قانون نه مني. ولي چي په تجربه سره ثابته ده چي بارانونه ګاهي غټ غټ څاڅكي وي او ګاهي واړه واړه وي. او كله باران ډېر دوام داره وي او كله ژر ودرېږي الى غير ذالك من اختلاف احوال الامطار مع ان طبيعة الارض واحدة وكذا طبيعة الشمس المسخنة للبخارات واحدة. نو بايد په بارانو كي مذكوره اختلافات نه واى. نو دا ظاهره ده چي په دې اختلافاتو كي قدرت د قادر متعال كارفرما دی.

او بل په تجربه سره دا ثابته ده چي د بارانو د قحط په صورت كي عجز او زاري د مؤمنانو ډېر لوی تاثير لوبوي. ولذا كانت صلوة الاستسقاً مشروعة مندوبة. نو موږ په دې پوه سولو چي په بارانو كي طبعيت او خاصيت لغوه دی بلكي صرف او صرف قدرت د ايزد متعال موثر حقيقي دی.

## وَيُسَبِّحُ الرَّعْدُ بِحَمْدِهٖ

او تسبيح وايي تنا (تالنده) متلبة بحمده يعني يقول سبحان الله وبحمده.

**پوه سه:** چي ترمذي او نسائي د ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت كړی، چا پوښتنه وكړه د عليه الصلوة والسلام څخه چي دا رعد څه شی دی؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي رعد ملك مؤكل بالسحاب. يعني دا اواز د تنا چي موږ يې اورو د هغې ملكې د سوق رغ دی الى اخير الحديث.

**درويش وايي:** چي په روح المعاني صفحه (۱۱۸) كي وايي: هو اسم الصوت المعلوم يعني چي پښتانه يې تنا بولي والكلام على حذف المضاف اى سامعوا رعد او الاسناد مجازي من باب الاسناد للسبب وهو الصوت. وروسته

صاحبِ د روح المعاني وايي اخرج احمد والترمذي وآخرون عن ابن عباس ﷺ چې يوې ډلې د يهودانو پوښتنه وکړه له عليه الصلوة والسلام څخه. فقالوا ته موږ ته خبر راکړه ما هذا الرعد فقال عليه الصلوة والسلام ملك من الملائكة الله مؤكل بالسحاب بيديه مخراق من نار (په دوارو لاسونو کې يې غمچينه د اور وي) يزجر به السحاب ويسوقه حيث اراد الله تعالى، قالوا فما هذا الصوت الذي نسمع؟ قال عليه الصلوة والسلام صوته فقالوا صدقت.

**درويش وايي**: چې له دې حديث څخه دا معلومه سوه چې لفظ د رعد ملکي ته هم وايي او صوت د هغې ملکي هم وايي فلا يرد مايتوهم فافهم هداک الله وروسته روح المعاني ډېر ورد بيان کړي دی لا يليق بهذ التفسير المختصر ولا بحال المتعلمين له.

**فائده**: تنا او پېلبو په اکثرو اوقاتو سره يو ځای وي لکن تلازم نه سره لري بلکې ګاهې تنا وي او پېلبو نه وي ورسره او ګاهې پېلبو وي او د تنا هيڅ اثر نه وي. کما دل على التجربة.

**درويش وايي**: چې د احادثو مبارکه ؤ څخه چې په باب کې د رعد او برق راغلي دي هم تلازم نه فهمېږي.

## وَالْمَلٰٓئِكَةُ مِنْ خِيفَتِهٖ ۚ

او ملکي هم تسبيح وايي د بېرې د خدای ﷻ.

**پوه سه**: چې مراد له دې ملکو څخه اعوان د رعد دی يعني د خدای ﷻ د ملکي چې په نامه د رعد د ملکي اعوان ګرځولی دی چې هغه اعوان خائفون او خاضعون او طائعون د خدای ﷻ دی. له ابن عباس ﷺ څخه روايت دی که چا صوت د رعد واورېدی او داسې يې وويل "سبحان الذي يسبح الرعد بحمده والملائكة من خيفته وهو على كل شيئ قدير فان اصابته صاعقة فعلى ديته" له عبدالله بن الزبير ﷺ څخه روايت دی چې ده به صوت الرعد واورېدی خبرې به يې قطع کړې او دا به يې ويله "سبحان من يسبح الرعد بحمده والملائكة من خيفته ويقول ان هذا الوعيد لاهل الارض لشديد"

له ابي هريره ﷺ څخه روايت دی قال قال رسول الله ﷺ قال ربکم "که چېرې زما بندګانو زما اطاعت کولای یعني په امر او نهي کي، نو به ما باران پر اورولای د شپې او د ورځي به مي لمر پر راخېژاوه او ما په دوی نه اورېدای صوت رعد (رواه احمد بسند صحيح)

**وَيُرْسِلُ الصَّوَاعِقَ فَيُصِيبُ بِهَا مَنْ يَشَاءُ وَهُمْ يُجَادِلُونَ فِي اللَّهِ**

او خدای ﷻ را استوي تکي، نو رسول کوي په دغو تکو سره هغه چا ته چي د خدای اراده د هلاک ورته وسي.

**پوه سه:** چي صواعق جمع د صاعقة او صاعقة په لغت کي هر عذاب مهلک ته وايي لکن دلته مراد په قرينه د مقام هغه تېز اور دی چي د پېلبو سره پيدا کېږي او پر شي که انسان وي او که حيوان وي او که درخته وي هغه خو پاکي سوځي "وهم يجادلون في الله" او کفار مکه بې ځايه بحث کوي د رسول الله ﷺ سره د خدای ﷻ په توحيد کي او په کمال قدرت او علم کي د خدای ﷻ والبعث بعد الموت والمجازات بالجنة او النار. وامثال ذالک من الامور الدينية. بغوي رحمه الله وايي چي محمد بن علي الباقر ﷺ وايي چي صاعقه مسلم او غير مسلم دواړو ته رسېږي مګر مسلم ذاکر ته نه رسېږي، او نسائي او بزار له انس بن مالک څخه روايت کړی دی چي عليه الصلوة والسلام يو صحابي و يو غټ کافر ته د جاهليت ور واستاوه چي دعوت د توحيد د خدای ﷻ ورته وکړي. نو هغه کافر ورته وويل ايش ربک الذي تدعوني اليه امن حديد هو او من نحاس او من فضة او ذهب (پوه سه: چي ايش مخفف دی د ای شيئ څخه) څه شی دی ستا خدای چي ته موږ وربولې، آيا د وسپني څخه جوړ دی يا له ميسو څخه يا د سپينو زرو د سرو زرو څخه. هغه سړی راغلی د هغه کافر حال يې و عليه الصلوة والسلام ته ذکر کړی، عليه الصلوة والسلام دوهم وار ورواستاوه د کافر هغه مخکنی جواب ورکړ دريم وار يې ور واستاوه کافر چي بيا هغه مخکنی ځواب ووايه سمدستي تکه پر را ايله سوه پاک يې وسوځي، ونزلت هذه الآية "ويرسل الصواعق فيصيب بها من يشآ الى اخير الآية" د حسن رحمه الله په شان نزول کي ددې آيت

قریب و هغه دمخه مذکور روایت ته یې روایت سوی دی، لکن په اخیر کې داسي عبارت دی چي په دریم وار کي چي کافر هغه خپل ویٺا تکرار کړه، نو ددوی پر سرو یوه وریځ را پورته سوله. نو تناوې شروع سوې او پېلبو هم شروع سوه او تکه را شوه سوه کافر مکابر یې وسو. او اصحاب د علیه الصلوة والسلام ناست وه. نو دوی میدان کړه چي علیه الصلوة والسلام ته زیږی ورسوي. ددوی په مخه نور صحابه ورغله. دوی ورته وویل چي احرق صاحبکم چي هغه کافر چي تاسي د تبلیغ لپاره ورغلي واست هغه خو په تکه وسو. واقعي لیدونکو صحابه وو ورته وویل چي تاسي چا خبر کړلاست. هغو ورته وویل چي خدای ﷻ و علیه الصلوة والسلام ته وحي را واستولې او دا آیت یې ورته تلاوت کړی "ویرسل الصواعق فیصیب من یشأ وهم یجادلون في الله"

## وَهُوَ شَدِيدُ الْمِحَالِ ۝

الضمیر راجع الی الله. بغوي رحمه الله وایي چي حسن وایي چي د محال معنی حقد دی، یعني بغض مضمر وفیه ان الحقد لایلیق بشانه تعالی کما لایخفی او مجاهد وایي شدید القوة او ابو عبیدة وایي شدید العقوبة. په قاموس کي وایي المحال ککتاب الکید وروم الامر بالحیل والتدبیر والمکر والقدرة والجدال والعذاب والعقاب والعداوة والقوة والشدة والهلاک والاهلاک.

**درویش وایي**: چي په دغو معانیو کي فکر ووهه چي هره معنی چي انسب د ذات الهي سره وه پر هغه یې حمل کړه.

## لَهُۥ دَعْوَةُ الْحَقِّ

او خاص خدای (ﷻ) لره دی دعوت مقبول او یا معنی داده چي خدای ﷻ حقدار ددې دی چي عبادت یې وکړل سي. او خلګ وبلل سي وعبادت ته دده، او سوال د حوائجو ځني وکړل سي لانه تعالی مستحق للعبادة وقادر علی قبول دعأ الناس، نو حق ضد د باطل دی. مظهري رحمه الله وایي چي ظاهره داده چي اضافت د دعوت و حق ته من اضافة د موصوف وصفت ته ده، فیؤل علی طریقة مسجد الجامع ای مسجد الوقت الجامع وجانب الغربي، نو دلته یې تاویل دادی

دعوة المدعوا الحق، ولي چي څوک چي دعا وکړي خدای ﷻ ته په اخلاص سره خواست يې قبلېږي، علي رضي الله عنه وايي چي دعوة الحق توحيد دی او ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي دعوة الحق شهادة ان لا اله الا الله. نو پر دې دوو تفسيرو توحيد او شهادة تفسير د حق دی. نو اضافت د دعوت وتوحيد ته حقيقت ده. والمعنى لله الدعوة الى التوحيد والشهادة. والمراد من الجملتين وعيد الكفرة على مجادلة رسول الله ﷺ باجابة دعوة الرسول ﷺ او بيان ضلالهم وفساد رأيهم كما اجيب دعوته ﷺ على بن عامر بن الطفيل واربد.

**درويش وايي:** چي مفصله قصه يې نژدې تېره سوه.

**وَالَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِهِ لَا يَسْتَجِيبُونَ لَهُم بِشَيْءٍ**

او هغه کسان چي عبادت کوي پرته له خدای (ﷻ) چي بتان دي او د خپلو حاجاتو خواست ورته کوي، نو پر دې تقدير مفعول چي اصنام دی محذوف دی، لدلالة قوله من دونه عليه. نو قبلونه نه کوي دغه اصنام دوی لره د هيڅ شي لكونهم جمادات لايستطيعون نفعاً ولا ضراً. نو ضمير د لايستجيبون راجع دی و بتانو ته.

**إِلَّا كَبَاسِطِ كَفَّيْهِ إِلَى الْمَاءِ لِيَبْلُغَ فَاهُ وَمَا هُوَ بِبَالِغِهِ**

مگر نه لکه استجابت د هغه چا چي ډېر تږی وي او د څاه پر غاړه ناست وي او لاس يې اوبو ته نه رسېږي، او اوبو ته وايي چي زما تر خولې پوري خو راسئ چي زه تږی يم او حال دادی چي دا اوبه خو دده دعوت نه قبلوي او نه يې خولې ته راځي، ولي اوبه خو جماد شی دی نه دده په بلنه پوهېږي او نه دده تر خولې رسېدل يې په قدرت پوري دی. والحاصل لکه څرنگه چي دغه اوبه خو دده خولې ته نه راځي او نه دده په دعوت پوهېږي، دغه رنگه خدايان د مشرکانو چي هغه جمادات دي نه ددوی په دعوت پوهېږي او نه قدرت لري پر اجابت ددوی. نو اضافت د استجابت محذوف و باسط ته اضافت د مصدر و مفعول ته ده، والی هذا المعنى ذهب مجاهد، وروی مثله عن علي رضي الله عنه وعطاً وقيل غير ذالک.

مَا دُعَآءُ الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِيْ ضَلٰلٍ ﴿۱۴﴾

نه ده د كافرانو دعا يعني عبادت د بتانو او طلب د حاجاتو د بتانو څخه مګر نه په خسران او ضياع او بطلان کي ده.

وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ طَوْعًا وَّكَرْهًا وَّظِلٰلُهُمْ بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ ﴿۱۵﴾

(دا آيت د سجدې دی) يعني الملائكة في السموات والمؤمنين في الارض په خپله خوښه بدون الجبر والاكراه او بېرې له کبله كالمنافقين والكافرين الذين اكرهوا على السجود بالسيف. او يا دا چي کافران په حال کي د شدت او ضرورت سجده کوي لكن مع كراهتهم ذالك.

**پوه سه:** چي نصب د طوعاً او کرهاً بناً دی على كونهما مفعول له اى لاجل الطوع والكره، نو طوع او کره پر خپله معنا پاته دی او يا بناً پر حاليت د من في السموات والارض څخه اى حال كونهم طائعين او كارهين.

**پوه سه:** چي "غدو" جمع د غدوة ده چي د صبح صادق څخه تر لمر راختو وخت ته وايي او اصال جمع د اصل ده چي له مازديګر څخه تر غروب د لمر وخت ته وايي.

**پوه سه:** چي "بالعدو والآصال" ظرف د "يسجد" دی.

**درويش وايي:** چي تخصيص د دغو دوو ختو په سبب د فضيلت دی و الا فالمقصود منه الدوام على السجود يعني في اوقات الصلوة كلها فافهم.

**درويش وايي:** چي روح البيان په تفسير کي ددې آيت داسي وايي حقيقةً وهو وضع الجبهة على الارض آه، نو د تعجب وړ خبره داده چي د سجدې معنی چي په دې آيت کي وضع الجبهة على الارض وي نو په من في السموات کي څرنګه جوړېږي يعني ملکي خو سجده کوي په اسمانو کي لكن لا على الارض فافهم.

**پوه سه:** چي په ظلالهم کي روح البيان وايي على حذف الفعل انتهى.

**درويش وايي:** چي حذف د فعل څه ضرورت سته وظلالهم دي عطف وي پر من في السموات آه بانډي تر يسجد مذكور دي لاندي وي. ولهذا لم يتعرض احد من المفسرين لحذف الفعل فتدبر.

**پوه سه**: چي مراد له سجدې څخه د ظلال سجده تبعاً لذي الظل ده.

**سوال**: من في السموات لره خو ظلال نسته، ولې چې ظلال خو كثيف جسم لره وي؟

**ځواب**: روح المعاني وايي: وتنقاد له تعالى ظلال من له ذالک اى الظل وهم الانس فقط او ما يعمهم وكل كثيف من الاشجار وغير ذالک لكن اظلال د غير د انس من الاجسام الكثيفة في كلمة من نظر لانها مختصة بذوى العقول بالاجماع وروسته روح المعاني زياته كړې ده او يحمل على التغليب. او په حواشي شهابيه وو كي وايي ينبغي ان يرجع الضمير لمن في الارض لان من في السماً لا ظل له. او مظهري رحمه الله وايي چي دا هم احتمال سته چي له سجود څخه دي حقيقت سجده نه وي مراد بلكې مراد ځني انقياد وي د حكم د خداى فيشمل كل من في السموات والارض بلا تكلف. يعني چي من في السموات والارض منقادون لما اراده الله منهم شاؤ او كرهوا انتهى. او يو له انقيادو څخه د اظلال طول او تنقيص ددوى دى يعني په وخت كي د طلوع الشمس سايه د ذى الظل نهايت اوږده وي چي لمر راپورته كيږي سايه مخ پر كمېدلو وي الى ان ينتهى الشمس الى نصف النهار فيندم الظل بالكلية كما في خط الاستوا ويقلل جداً كما في الافاق المائلة ثم يزداد الظل الى جانب المشرق ثم وثم.

## قُلْ مَنْ رَّبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ

ته ورته ووايه يا محمد كفارو ته د مكې څوک دى خالق او مدبر د اسمانو او د مځكي.

**پوه سه**: چي دا استفهام د تقرير لپاره دى يعني حملهم على الاقرار، ولي كفارو هم دا منله ان الله خالقهم وخالق السموات والارض.

## قُلِ اللّٰهُ ؕ

يعني كه دوى نه وايي تعنتاً ته ورته ووايه چي الله دى اذ لا جواب غير ذالک وفي الحقيقة لا جواب لهم غير ذالک يا معنى داده چي ته تقلين د جواب ورته وكړه، وروسته الزاماً ودوى ته ووايه.

## قُلْ اَفَاتَّخَذْتُمْ مِّنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَآءَ

قانون وروسته تر حرف استفهام چي يو د حروف د عطف راسي هغه معطوف پر مقدر باندي دی مناسب للمقام وذالک لان حرف الاستفهام يقتضي صدارة الکلام فلا يکون ما بعده معطوفاً على ماقبل الاستفهام. والتقدير هذا اقررتم بربوبيته تعالى للعالمين فاتخذتم.

**ترجمه**: ته ورته ووايه چي آيا تاسي گرځوئ معبودات خپل ماسوی د خدای ﷻ يعني الاصنام وهذا بعيد من العقل ثم وصف الاوليا بقوله.

## لَا يَمْلِكُوْنَ لِاَنْفُسِهِمْ نَفْعًا وَّلَا ضَرًّا

چي توان نه لري د ځانو لپاره جلب د نفع او يا دفع د ضرر لکونها جمادات. نو به تاسي ته څه نفع را جلب کړي که يې تاسي عبادت وکړئ او يا څه ضرر به درورسوي که يې تاسي عبادت وه نه کړئ. او المعنى کيف يستطيعون ايصال الخير اليکم، او دفع ضرر عنکم.

**پوه سه**: چي دوهم دليل دی پر ضلال ددوی والاول اخذهم اوليا فافهم.

## قُلْ هَلْ يَسْتَوِى الْاَعْمٰى وَالْبَصِيْرُ

ته ورته ووايه دوی ته چي آيا (والاستفهام للانکار وکذا في سيئاتي) سره برابر دي روند او بينا.

**پوه سه**: چي له اعمی څخه د سترگو روند نه دی مراد بلکې من لا عقل له ولا بصيرة يعرف بها المعبود بالحق چي مراد ځني مشرکان دي، او بصير يعني صاحب د بصيرت چي په هغه سره وپيژني حقيقة د عبادت او موجب د عبادت او تميز وکړي د مستحق د عبادت مما لا يستحق لها. او بعض مفسرين وايي چي مراد د اعمی معبود غافل دی له عابد څخه خپل او د هغه د عبادت څخه چي بتان دي او مراد له بصير څخه هغه معبود بالحق دی چي عالم دی په ټولو احوالو د عابدينو خپل.

## أَمْ هَلْ تَسْتَوِي الظُّلُمٰتُ وَالنُّوْرُ

**یوه سه**: چي کلمه د "ام" لپاره د انتقال ده د یوه دلیل و بل ته او کلمه د "هل" لپاره د استفهام انکاري ده. او آیا سره د برابري دي تاریکي چي کفر دی او رڼا چي ایمان دی.

**نکته**: ظلمات په صیغه د جمع راوړی او نور یې په صیغه د مفرد سبب یې وادی چي انواع د کفر ډېري دي کالدهریة والمجوسیة والیهودیة والنصرانیة او ایمان یو دی چي دین د اسلام دی.

## أَمْ جَعَلُوا لِلّٰهِ شُرَكَآءَ خَلَقُوا كَخَلْقِهِ فَتَشَابَهَ الْخَلْقُ عَلَيْهِمْ

**یوه سه**: چي "ام" په معنی د "بل" دی کلمه د "بل" لپاره د انتقال ده من دلیل الی دلیل آخر او همزه لپاره د انکار دی پر حکم اتی او د شرکا مراد بتان دي او خلقوا صفت د شرکا و دي داخل دی تحت الانکار. او د خلقه ضمیر راجع و خدای ﷻ ته دی.

**ترجمه**: آیا دوی گرځولي دي خدای شریکان چي هغو شرکا دي خلق د بعض شیانو کړي وي لکه چي خدای ﷻ خلق د شیانو کړی دی، نو دوی ته اشتباه واقع سوه په خلق کي د خدای ﷻ او د شرکا یعني خدای او بتان دواړه خالقان دي، نو لکه خدای ﷻ مستحق د عبادت دی بتان هم مستحق د عبادت دی لاشتراک في الخلق الذي هو الموجب لاستحقاق العبادة یعني داسي خو نه ده، ولي چي بتان خو جمادات دي لم یخلقوا اشیئاً ما فضلاً من ان یخلقوا امثل خلق القادر المتعال الخالق لجمیع الاشیاء من السموات وما فیها والارض وما علیها بل لکل ذرة من ذرات العالم العلوي والسفلي.

## قُلِ اللّٰهُ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ

ته ورته ووایه چي خدای ﷻ خالق د هر شي دی مما ذکرنا. وایضاً هو تعالی خالق الاجسام کلها والارواح المجردة فلا یستحق للعبادة الا هو.

**سوال**: معتزله وایي چي خالق د افعالو خدای نه دی بلکي په خپله عباد دي؟

**خواب**: معتزلـه د خلق او کسب تر منځ پـه فرق نـه پوهېږي بلکي خالق د افعالو د عبادو خدای ﷻ دی وبس البته بندګان کاسبان دي وبينهما بون بعيد.

**درويش وايي**: چي فرق بين الخلق والكسب پـه کتابو کـي د عقائدو پـه ښه توګـه ثابت دي، بلکـي محقق بهـاري رحمه الله پـه مسـلم الثبـوت کـي دا فـرق پـه محققانه ډول څېړلی دی، لکن درويش لـه هغو بياناتو څخه صرف نظر وکړی مراعاتاً للمتعلمين لهذا التفسير لان بيان ذالک علی وجه التفصيل والتحقيق طويل دقيق غاية الدقة فافهم.

وَهُوَ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ﴿١٦﴾

او خدای پاک يو دی په ذات کي او په صفاتو کي د جمال او جلال چي غالب دی پر هر شي لانه تعالی خالق کل شيئ والخلق يستلزم الغلبة بلا ريبة.

**بوه سه**: چي دا جمله يا داخله ده تحت الامر بقل او يا جمله مستأنفه له جانبه څخه د خدای ﷻ، جامي قدس سره السامي وايي:

مده بعشوه صورت عنان دل جامی
که هست درپس اين پرده صورت ارائی

أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَسَالَتْ أَوْدِيَةٌ بِقَدَرِهَا

نازل کړي دي واحد قهار لـه اسمان څخه اوبه يعني بارانونه. نو وبهېدلې شلې پـه اندازه ددوی پـه صغر او کبر کي، يعني پـه لويـه شېله کي ډېري اوبـه راغلې او په کوچنی شېله کي لږ.

**پوښتنه**: شېله پـه لغت کي هغـه غـار ځای تـه وايي چي اوبـه نسبةً پـه کثرت پکښي بهېږي. نو څرنګه نسبت د بهېدلو و شېلې ته صحيح دی؟

**خواب**: د علم بيان پـه کتابو کي وايي چي دا نسبت مجاز مرسل دی يعني من نسبت ما للمظروف الی الظرف مثل قولهم سال الميزاب يا جری النهر الی غير ذالک.

**فائده**: اوديه يې نکره راوړه له دې سببه چي چي باران خو پر بقاع د ځمکي په نوبت اوري نو پر هره بقعه چي اوري د هغه ځای شېلې بهېږي نه د بل ځای کما لا يخفی.

**فَاحْتَمَلَ السَّيْلُ زَبَدًا رَّابِيًا ۖ وَمِمَّا يُوقِدُونَ عَلَيْهِ فِي النَّارِ**

نو راخستی وي هغو اوبو چي په شبلو کي جاري وي ځګ او خاشاک، فالزبد ما يعلوا الماء الجاري في الاودية، "رابيًا" پر صافو اوبو.

**پوه سه:** چي حمزه او کسائي رح دا لفظ په یا د غیبت وایي او ضمیر یې راجع و ناس ته بولي.

**سوال:** ناس خو نه دی ذکر سوی فکیف یصح ارجاع الضمیر الیه؟

**ځواب:** له مقام څخه لفظ د ناس فهمېږي قاله المظهري رحمه الله او نور قاریان یې توقدون په لفظ د خطاب وایي.

**فائده:** "ایقا" د یو شي پر اور ایښوولو ته وایي تاچي ویلي سي، او کلمه د "من" لپاره د ابتدأ ده او کلمه د "ما" په "مما" کي موصوفه ده په معنی د شئ او ضمیر علیه راجع دی و "ما" ته یعني د هغه شي څخه چي خلګ پر اور ویلوي پیدا کېږي مثل زبد الماء.

**فائده:** هغه شی چي خلګ اور تر لاندي بلوي عام دی ذهب، فضة، حدید والنحاس.

**ابْتِغَاءَ حِلْيَةٍ أَوْ مَتَاعٍ زَبَدٌ مِّثْلُهُ**

لپاره د طلب د حلیه، نو ابتغاء مفعول له د "یوقدون" د حلیه معنی زینت ده یعني زیور د زینت لکه د سرو زرو یا د سپینو زرو څخه چي زیورات جوړېږي "متاع" ای ما یمتتع به من الاواني لکه لوښي چي د وسپنې یا له میسو یا له ژړو وغیرها څخه جوړېږي بل الات الحرب والحرث من الحدید. والمقصود بیان منافعها "زبد مثله" ای مثل زبد الماء یعني لکه چي زبد الماء د سیل خبث او بېکاره شی دی دغه رنګه زبد د فضة او ذهب وغیرها من المذکور خبث او خیره او بېکاره شي چي په کوره د اور د زرګر یا آهنګر یا میسګر بېکاره کېږي.

**پوه سه:** چي "زبد" فاعل دی لقوله "یوقدون" او یا زبد مثله مبتدأ ده او ماقبل یې خبر مقدم دی.

كَذٰلِكَ يَضْرِبُ اللّٰهُ الْحَقَّ وَالْبَاطِلَ ۚ

يعني په مثل د مذكور ضرب او بيان بديع چي مشتمل پر دقائقو ؤ بيان وي خداى ﷻ مثل الحق والباطل بحذف المضاف اى لفظ المثل وانما حذف لفظ المثل تنبيهاً عن كمال التماثل بين الممثل والممثل به كان المثل المضروب عين الحق والباطل كذا في روح المعاني والمظهري بالتفصيل في الاول والاجمال في الثاني.

فَأَمَّا الزَّبَدُ فَيَذْهَبُ جُفَاءً ۚ

هر چي خګ دی که د اوبو وي او که د ذريوراتي شيانو وي وامثاله هغه ځي جفاءً يعني متفرقاً وفي القاموس الجفا كالغراب الباطل انتهى.

وَأَمَّا مَا يَنْفَعُ النَّاسَ فَيَمْكُثُ فِي الْأَرْضِ ۚ

او هغه شي نفع اخلي په هغه سره خلق نو هغه پاتېږي په مځکه کي لکه صافي اوبه د باران چي په هغه سره نفع اخلي خلګ هغه پاتېږي په مځکه کي يعني مځکه يې نوش کړي، نو د هغه څخه رودونه، کاريزونه او چيني پيدا کېږي چي خلګ مځکي د کښت او باغونه د مېوو په اوبه وي او يا خالص سره يا سپين زر چي خلګ زېورات ځني جوړوي، او يا د وسپني خالص چي آلات د حرب لکه توپک، کلاشنکوف، توغندی وغيره ځني جوړوي او يا د کښت آلات لکه تبش وغيره ځني جوړوي، او يا خالص د ميسو او ژړو چي خلګ د ېګونه غابونه وغيره ځني جوړوي، والحاصل چي د هغه علم او کتاب نازل من السماً خلګ نفع په اخلي انواع المنافع الدنيوية والاخروية او ثابت پاتېږي ابد الآبدين كالما النازل من السماً چي خلګ نفع موقت په اخلي كمامر من قبل.

كَذٰلِكَ يَضْرِبُ اللّٰهُ الْأَمْثَالَ ﴿١٧﴾

يعني لکه مثال د حق او باطل چي خداى ﷻ ووايه، نور امثال هم خداى پاک وايي تاچي په امثالو سره د ممثل به توضيح وکړل سي.

**پوه سه**: چي په مذکور ضرب مثل کي خدای پاک تسلي ورکوي و مؤمنانو ته دا ډول چي باطل لکه کفر که څه هم لکه ځګ لوړ وي صورةً وظاهراً لکن دا ځګ د کفر ژر دی چي زائل به سي او نور د اسلام لکه صافي اوبه ثابت به وي الی یوم القیامة.

لِلَّذِينَ اسْتَجَابُوا لِرَبِّهِمُ الْحُسْنَىٰ

لپاره د هغه کسانو چي قبلونه وکړي د خدای ﷻ د دعوت و اسلام او طاعت ته په دنیا کي.

**پوه سه**: چي "للذين" خبر مقدم دی "او الحسنى" يې مبتدأ متأخره ده والحسنى بحذف الموصوف ای المثوبة الحسنى یعني په اخیرت کي او استجابت چي باب د استفعال دی او معنی يې طلب الاجابة ده په معنی د اجابت چي باب د افعال دی او پر فعلیت دلالت کوي کماهو المقصود في الآية.

**درويش وايي**: چي زما ترجمه مبني ده پر قول د روح المعاني او روح البيان، او مظهري مبتدأ او خبر سره ګډ کړي دي حيث يقول الحسنى صفة لمصدر محذوف ای الاستجابة الحسنى او مفعول به يعني استجابوا ربهم الدعوة الحسنى انتهى، دده خیال دادی چي للذين متعلق دی په نضرب الامثال پوري وهو بعيد غاية البعد، وروسته مظهري رحمه الله هغه اعراب صحيح چي موږ کړی په قيل يې راوړی دی..... مصرع: . وللناس فيما يعشقون مذاهب.

وَالَّذِينَ لَمْ يَسْتَجِيبُوا لَهُ

او هغه کسان چي قبلونه د دعوت د خدای ﷻ يې نه ده کړي يعني کفار.

**درويش وايي**: چي "والذين آه" مبتدأ ده، او جمله د "لو ان لهم آه" يې خبر دی قال الآلوسي صاحب روح المعاني والذين آه مبتدأ ده والجملة الشرطية يعني لو ان لهم آه خبر دی، وفي روح البيان والذين لم يستجيبوا له مبتدأ ده خبر يې لو ان لهم آه دی، او مظهري پر منوال سابق وايي واللام في له متعلق بيضرب يعني والذين لم يستجيبوا مجرور محلاً دی. عطف پر الذين استجابوا داخل تحت اللام الجارة المتعلقة بيضرب الامثال، بلکي صراحةً وايي واللام متعلقة بيضرب والله اعلم بمراده في كتابه.

**پوښتنه**: ستا علم د مظهري رحمه الله تر علم بالا دی چي ته دده پر بيان اعراب اعتراض کوې!؟

**ځواب**: لا کلا وحاشا. لکن ما هغه څه بيان کړل چي روح المعاني او روح البيان او مظهري ويلي دي او خپل په نهز چي خوبن اعراب ۍ هغه ته مي اشاره وکړل. تاسي داسي مه کوئ چي حق په رجال پيژنئ بلکې رجال په حق وپيژنئ.

لَوْ اَنَّ لَهُمْ مَّا فِى الْاَرْضِ جَمِيْعًا وَّمِثْلَهٗ مَعَهٗ لَافْتَدَوْا بِهٖ ؕ

که فرضاً دوی لره وي هغه شيان چي په ځمکه کي دي من الذهب والفضة وغيرهما من الاموال او يو مثل د ما في الارض نور ورسره هم آئينه دوی به دا ټوله اموال فديه ګرځولي وای تاچي له عذاب څخه د جهنم په خلاص سوي وای لکن ذريعه د نجات بيله ايمانه نسته.. بيت:

مده براحت فاني حيات باقي را ....... بمحنت دوسه روز از غم ابد بگريز

اُولٰٓئِكَ لَهُمْ سُوْٓءُ الْحِسَابِ ۙ وَمَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ؕ وَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿۱۸﴾

دوی لره دی بد حساب يعني سخت حساب چي له ګنهو څخه ددوی هيڅ شی نه وربخښل کيږي لعدم سبب المغفرة فيهم وهو الايمان، او ځای د ورتلو ددوی جهنم دی او بد فراش دی جهنم کريمه: لهم من جهنم مهاد ومن فوقهم غواش.

اَفَمَنْ يَّعْلَمُ اَنَّمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ الْحَقُّ كَمَنْ هُوَ اَعْمٰى ؕ

آيا کېدای هغه څوک چي علم او ايمان لري پر دې چي هغه شی نازل سوی دی وتاته يا محمد له جانبه څخه د خدای ستا الحق يعني هو الحق، نو ايمان پر هغه ما انزل راوړي او عمل په امر او نهي د هغه کوي لکه هغه څوک چي ړوند وي يعني لا يعمي البصر بل يعمي البصيرة القلبي وهو الکافر المنکر لما انزل اليک من ربک.

**پوه سه**: چي استفهام د انکار دی يعني ليس هما متماثلان او مدخول د فا معطوف پر مقدر دی، والتقدير ای ايشتبه امر الصريفين بعد ضرب من المثل لهما فمن يعلم آه.

إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ أُولُوا الْأَلْبَابِ ﴿١٩﴾

**پوهسه:** چي انما په معنی د لا او الا دی، والمعنی چي تذکر او پند په موعظت د قرآن نه اخلي مګر صاحبان د عقول سلیمه من متابعة الهوی والکبر والعناد، نو عقل صافي عن الکدورات لره په کار ده چي لپاره د مغفرت د ګناه باران د وښکو همېشه بهیوي، بیت:

نرېزد خدا آبروی کسی ........ که رېزد ګناه آب چشمش بسی

الَّذِينَ يُوفُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ

هغه کسان چي وفا کوي په عهد سره چي دوی پر ځانونو لازم کړي دي چي یا هغه دی چي په میثاق ازلي کي دوی پر ځان لازم کړی چي اقرار په ربوبیت د خدای ﷻ دی حین قال الله تعالی لهم الست بربکم قالوا بلی. او یا هغه عهد دی چي د ټولو امتو څخه په کتب منزله ؤ کي اخسته سوی دی چي اوامر به پر ځای کوي او له منهیاتو څخه به پرهېز کوي.

وَلَا يَنقُضُونَ الْمِيثَاقَ ﴿٢٠﴾

او نه یې وي مات کړی خپل عهد.

**فائده:** موصولات اتیه سره صلات مبتدا دی او خبر یې قوله تعالی دی "اولئک لهم عقبی الدار"

وَالَّذِينَ يَصِلُونَ مَا أَمَرَ اللَّهُ بِهِ أَن يُوصَلَ

او هغه کسان چي وصل کوي او پیوند کوي هغه شی چي خدای ﷻ امر کړی وي ده په هغه شي سره چي وصل یې کړه.

**پوهسه:** چي وصل یو لفظ عام دی چي ایمان پر ټولو کتبو سماویه ؤ او پر ټولو رسولانو د خدای ﷻ بحیث لایفرق بین احدمنهم لکه یهود چي فرق کوي چي تورات منو او موسی علیه السلام منو او عیسی علیه السلام او انجیل او محمد ﷺ او قرآن نه منو، او یا نصاری چي وایي چي عیسی علیه السلام منو او انجیل هم منو لکن موسی او تورات او محمد علیه السلام او قرآن نه منو، او دغه لفظ د وصل موالات یعني

دوستي د مسلمانانو سره او داغه رنګه شامل دي صلة الرحم ته د قريبانو. او بغوي وايي چي مراد يو ازي صلة الرحم دی.

**درويش وايي:** چي عموم افضل واشمل دی والی العموم ذهب صاحب روح البيان و صاحب روح المعاني والمظهري رحمهم الله فخذ ما صفا ودع ما كدر.

**فائده:** مفعول اول د امر الله محذوف دی والتقدير ما امرهم الله وان يوصل مفعوله الثاني.

**درويش وايي:** چي ددې آيت په عموم کي صلة الرحم داخل دی او د علماؤ اختلاف دی په حد کي قرابت چي وصل يې واجب دی. بعض علماً وايي چي حد يې دادی چي ذي رحم محرم وي يعني که يو نر فرض سي او بل ښځه نکاح يې ابدي سره حرامه وي فعلى هذا لايدخل فيه اولاد الاعمام والعمات واولاد الاخوال والخالات. او بعض علماً وايي چي مراد عام دی که محرم او که غير محرم وي که وارث وي او که غير وارث وي. قال صاحب روح البيان وهو الصواب. او امام النووي وايي چي وهذا هو الاصح.

**فائده:** محرم هغه څوک بولي چي يو نر فرض کړي او دوهم ښځه نکاح يې على التابيد سره حرامه وي. نو اخت الزوجة خارج ده. ولي د هغي نکاح په وخت د حيوة د اخت ناروا ده او که يې خور مړه سي د اخت الزوجة نکاح ورته روا ده. په شرح کي: طريقه محمديه وايي چي په صلة الرحم کي يو حد معين نسته بلکي اعتبار عرف لره دی لکه يو هديه ورکول او کومک سره کول بالقول او العمل. او نه سره هېرول او يو د بل ملاقات ته ورتلل. او کمه مرتبه يې سلام دی او يا خط ور استول دي. وعن انس بن مالك رضي الله عنه ان رسول الله ﷺ قال من احب ان يبسط الله في رزقه. که د چا خوښه وي چي ده ته فراخي جوړه سي په رزق کي وينسأ له في اثره او تاخير وکړل سي په اجل او عمر کي دده. فليصل رحمه. نو صله رحمي دي کوي. او د عبد الله بن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دی قال النبي ﷺ ليس الواصل بالمكافي (نه دی وصله رحمي چي په عوض صله رحمي کوي مثلاً. نو قريب تاته يو شی هديه درکړه ته هم يو شی هديه ورکړې) ولكن الواصل اذا انقطعت وصلها.

**درویش وایي:** چي په باب کي د صلة الرحم احادیث کثیره په بخاري او مسلم وغیرهما کي موجود دی، لکن د اوسنی زماني رفتار د مسلمانانو او کره وره د حدیث بر خلاف دي حتی چي پلار او زوی، ورور او ورور وغیرهم په لړ شي کي چي يې خلاف سره راسي په کلو کلو یو و بل ته سلام نه اچوي او ملاقات ته نه سره ورځي. پښتانه وایي: دا يې قباله په چا يې مني. قال حافظ شیرازي رحمه الله:

یاری اندر کس نمی بینم یارانرا چه شد
دوستی کی آخر آمد آشنا د آن را چه شد
کسی نمی گوید که یاری داشت حق دوستی
حق شناسانرا چی حال افتاد یاران را چی شد

وَيَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ وَيَخَافُونَ سُوٓءَ الْحِسَابِ

او بیریږي له خدای (ﷻ) څخه ددوی یعني له عذاب څخه د خدای او له بد حساب څخه او په حاسبوا قبل ان تحاسبوا سره عمل کوي.. سعدي میگوید:

تو پیش از عقوبت د ر عفو کوب ..... که سودی ندارد فغان زیر چوب

**درویش وایي:** چي سوء الحساب دادی چي په ورځ د قیامت صغیره او کبیره گنهونه تول و سرې ته عرض سي او هیڅ شی ور وه نه بخښل سي، نو د بد حساب معنی تنگ حساب والا فحساب الله لا یوصف بالسوء بالمعنی المتعارف لانه ورد لا ظلم الیوم وما انا بظلام للعبید.

وَالَّذِينَ صَبَرُوا ابْتِغَآءَ وَجْهِ رَبِّهِمْ

او هغه کسان چي صبر يې کړی لپاره د طلب د رضا د خدای ﷻ، نو مراد له وجه څخه رضا کما هو عرف العرب لا الوجه یا لمعنی المتعارف لعدم کونه جسما کما هو المثبت في العقائد.

**یوه سه:** چي اهل لغت وایي چي صبر که متعدي په لفظ د علی ؤ چي صبر علی الشيئ دی، نو تول اوامر الهیه ؤ ته شامل دی یعني الصبر علی الصلوة والزکوة والصوم وغیرها من المأمورات او که لفظ متعدي په عن سره یعني عن

الشيئ. نو ټولو منهياتو ته شامل دی يعني الصبر عن شرب الخمر و عن الزنى واللواطة وغيرها من المنهيات. او لفظ د صبر متعدي په في سره ؤ يعني الصبر في الشيئ. نو صبر ته په ټولو مصائبو کې شامل دی يعني الصبر في الفقر، والصبر في موت الولد والصبر في الامراض وغيرها من المصائب والى هذا يرجع جميع التفاسير التي ذکرها المفسرون في تفسير هذه الآية. قال ابن عباس ﷺ على ما امروابه. وقال العطأ في المصائب وقيل عن المعاصي و اللفظ الاخصر الجامع مخالفة الهوى فيشمل الکل.

**درويش وايي**: چې و ينبغي ان يکتب هذه الفائدة بمداد الذهب على قراطيس الاذهان فقلما تجدها في غير هذا التفسير ولله الحمد و من الله التوفيق.

## وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاَنْفَقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ سِرًّا وَّعَلَانِيَةً

او ادأ کوي لمونځ (سواء کان فرضاً او واجباً او مسنوناً ومن النوافل) او دوی نفقه کوي بعض له هغه مال څخه چې موږ په رزق ورکړي دوی ته په پټه خوفاً من الريأ وهو الافضل في النوافل بالظاهر في الزکوة المفروضة نفياً للتهمة بکونه مانع الزکوة واقتدأ الغيربه.

**پوه سه**: چې لفظ د "من" په مما کې لپاره د تبعيض دی، نو نفقات مفروضه که د ذهب او فضه وي او که د سوائمو من الابل والبقر والغنم وغيرها ټوله بعض دي د مال کما لايخفى، او په نفلي صدقه کې د من تبعيضي فائده نهي له اسراف څخه دي بانفاق کل المال لکن هذا النهي يختلف باختلاف الاشخاص من الصبر والتوکل على الله کما روي ان النبي ﷺ لما امر الناس بالصدقة حين ارادته غزوة تبوک فکل واحد من الصحابة الکرام ﷺ نو هر صحابي بما في الوسع صدقه او مال سره راتګ وکړی، عمر ﷺ وايي چې زه په دغه وخت کې تر نورو اقاتو شتمنوم، نو په زړه کې مې وويل چې که ته يو وخت پر ابوبکر ﷺ غالب کېدې نو به غالب سې، نو خپل ټوله مال او متاع البيت مې سم نيمی کړه، نيم مې کورته پرېښنو او نيم مې عليه الصلوة والسلام ته راوړی. نو ده مبارک چې دا دومره مختلف شيان وليدل، نو ماته يې وويل چې په کور کې دي څه شی

پرېښنو؟ ما ورته وویل چې نیمایي مال مې کور پرېښنو، وروسته ابوبکر ﷺ هم ورته مختلف اموال راوړل. علیه الصلوة والسلام ورته وویل چې کور ته دې څه شی پرېښنو؟ ابوبکر ﷺ ورته وویل الله ورسوله. عمر ﷺ وایي چې ما په خپل زړه کې دا مشوره وکړه چې اثینده به د ابوبکر ﷺ د مقابلې نیت نه کوم.

## وَيَدْرَءُونَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ

ذوی دفعه کوي په عمل صالح سره عمل سیئ یعني بد. قاله ابن عباس ﷺ اخذاً من قوله تعالی ان الحسنات یذهبن السیئات. وروي احمد بسند صحیح عن ابي ذر ﷺ عن النبي ﷺ اذا عملت سیئة فاتبعها حسنة یمحها (چې بد کار دې وکړی سمدستي ښه کار پسې کوه هغه سیئه به محو کړي) او ابن عساکر د عمر بن الاسود ﷺ په سند مرسل داسي روایت کړی چې لس سئیات چې ته وکړې یوه حسنه پسې وکړې هغه سیئات به له منځه یوسي.

**درویش وایي**: چې وهذا سر قوله علیه الصلوة والسلام ان الحسنة الوحدة تکتب بعشر امثالها. او ابن کیسان رحمه الله وایي چې مراد له سیئة څخه ګناه ده. او مراد له حسنة څخه توبه ده. قال رسول الله ﷺ اذا علمت سیئة فاحدث عندها توبة السر بالسر والعلانیة بالعلانیة رواه احمد عن عطا رحمه الله. ترجمه: چې بد کار دي وکړی نو په نېز د بد کار توبه وکاږه که بد کار پټ وُ نو پټه توبه وکاږه کالزنی وشرب الخمر واللواطة وغیرها. او که دې ګناه ښکاره وه په ښکاره توبه وکاږه مثلاً خلګ دې واعتزال یا وهابیت وغیره ته دعوت کړي. نو ته به هم په ښکاره توبه کاږې تاچې ستا ګمراهان کړي خلګ یې واوري لعلهم یرجعون. او بعض مفسرین رحمهم الله وایي چې شر په شر سره مه دفع کوئ بلکې په خیر سره په دفع کوي. او سدي رحمه الله وایي چې څوک که د چا سره بېعقلي وکړي دی دې حلم ورته کوي. او قتاده رحمه الله وایي که چا بد درسره وکړه ته احسان ورسره وکړه. او حسن رحمه الله وایي که تا له چا څخه یو شی وغوښتی ده ته محروم کړې بلکه ورځ که هغه سړي ستا څخه یو شی وغوښتی ته یې مه محرومه کوه. او داغه رنګه که یو قریب ستا څخه قطع د صلې کاوه ته وصل ورسره وکړه یعني صلة الرحم.

قال الله تعالی واذا خاطبهم الجاهلون قالوا سلاماً. مسلم له ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت کړی دی چي یو سړی و علیه الصلوة والسلام ته راغلی او وه یې ویل ان لي قرابة اصلهم ویقطعوني. مالره قریبان سته چي زه صله رحمي ورسره کوم او دوی قطع د صلة الرحم را څخه کوي. واحسن الیهم ویسیئون الیه. او زه احسان ورسره کوم او دوی بد کوي دما سره "واحلم ویجهلون علي" او زه حلم ورسره کوم او دوی د جهل خبري راته کوي. نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل که داغسي وي لکه ته چي وایه نو ګویا ته ددوی په خولو تودې ایرې چي په عربي یې مَل بولي او په پښتو یې پرېندی بولي ور اچوې او همېشه به ستا سره د خدای جل جلاله له خوا معاون وي پر دی مادمت علی ذالک.

**فائده سنیه**: عبدالله بن المبارک رحمه الله وایي چي تر دې ځایه پوري اته بنه خویونه پوره سوه چي اشاره و اتو دروازو ته د جنت ده. ولهذا خبر یې دا قول د خدای جل جلاله وګرځېدی.

## أُولَٰٓئِكَ لَهُمۡ عُقۡبَى ٱلدَّارِ ﴿٢٢﴾

دغو کسانو لره چي موصوف په مذکوره صفاتو سره وي ثواب دی په دار الآخرة کي. في القاموس اعقبه ای جازاه آه ثواب ته فعل ولي عقبی وایي لانه یعقب الفعل.

**فائده**: عقبی او عاقبة او عقبه په اصطلاح کي د قرآن عظیم الشان خاص دی په ثواب او خیر الجزاً علی الحسنة پوري لکه چي معاقبت او عقاب او عقوبت چي خاص دی په عذاب او سوء الجزاً علی السیئة پوري. قرآني آیتونه د ثواب په باب کي (۱) لهم عقبی الدار (۲) والعاقبة للمتقین (۳) هو خیر ثواباً وخیر عقباً (۴) ونعم عقبی الدار. د عذاب په باره کي قرآني آیتونه (۱) فحق عقاب (۲) شدید العقاب (۳) وان عاقبتم فعاقبوا بمثل ما عوقبتم به (۴) من عاقب بمثل ما عقب به. لکن یستعمل کل واحد من هذه الالفاظ في ضد معانیها اما بالاشتراک اللفظي او باستعارة الضد للضد للاشتراک في الضدیة کما تقرر في علم البیان. ومعنی الآیة اولئک لهم جزاً حسن في الدار الآخرة.

**جَنّٰتُ عَدۡنٍ يَّدۡخُلُوۡنَهَا وَمَنۡ صَلَحَ مِنۡ اٰبَآئِهِمۡ وَاَزۡوَاجِهِمۡ وَذُرِّيّٰتِهِمۡ**

جنتونه دي د اقامت، دا عبارت قرآني يا بيان دی د عقبى الدار او يا مبتدأ ده خبر يې قوله تعالى "يدخلونها آه" دی، يعني دوی به داخلېږي و هغه جنتو ته. او هغه څوک چې صالح وي له پلرو څخه ددوی او له مايندو څخه ددوی او له اولادو څخه ددوی،

**بوه سه:** چې من صلح عطف دی پر ضمير مرفوع په يدخلون کې او دا عطف بيله تاکيد په ضمير منفصل سره روا دی لوجود الفصل بين المعطوفين بالاضافة الى الضمير في المعطوف عليه. او زجاج رحمه الله چې وايي چې فصل کافي نه دی په عطف پر ضمير متصل باندې بلکې خواه مخواه تاکيد بالمنفصل غواړي هغه وايي چې ومن صلح عطف نه دی بلکې مفعول معه دی.

**فائده:** مراد له صلاح څخه مطلق ايمان دی لا الصلاح الكامل كما قوله تعالى في سورة يوسف بدعائه. والحقني بالصالحين بدليل العطف لانه لو كان المراد بالصلاح كماله لدخل المعطوف في المعطوف عليه وهو خلاف مقتضى العطف يعني المغايرة بين المعطوفين.

**فائده:** ددې آيت څخه دا استنباط کېږي چې خدای جل جلاله درجات د کاملين في الصلاح وهغو کسانو ته ورکوي چې دوی و درجې د کاملين في الصلاح ته وي رسېدلي او نه يې د کاملينو په شان عمل کړی وي من آبائهم (امهات په آبائهم کې داخل دي تبعاً) وازواجهم وذرياتهم. لکن بشرط الايمان في هولاء. والا لدخل آذر بتوسط ابنه ابراهيم عليه السلام ولدخل كنعان بتوسط ابيه نوح عليه السلام الى غير ذالک. او دا دخول تبعاً لپاره د تطيب د زړو د کاملين في الصلاح دی وتعظيماً لشانهم. حاصل دا دی چې مجرد نسبت او حسب بدون الايمان کافي نه دی بدليل ماقلنا آنفاً.

**وَالۡمَلٰٓئِكَةُ يَدۡخُلُوۡنَ عَلَيۡهِمۡ مِّنۡ كُلِّ بَابٍ ﴿۲۳﴾**

او ملکي داخلېږي پر جنتيانو له هرې دروازې څخه د جنت او يا له دروازو څخه د قصرو ددوی. مقاتل رحمه الله وايي چې ملکې په مقدار کې د ورځې د دنيا درې واره جنتيانو ته ورځي معهم الهدايا والتحف.

سَلَامٌ عَلَيْكُم بِمَا صَبَرْتُمْ

**پوه سه**: چي سلام مبتدأ ده او عليکم يې خبر دی او جمله حال ده له ضمير څخه د يدخلون بتقدير القول ای قائلين.

**سوال**: سلام خو نکره خالص ده، نو ابتدائيه به څرنګه صحيح وي؟

**ځواب**: محقق جامي په شرح کي د کافيه وايي چي د سلام سره من قبلي مقدر دی، نو نکره مخصصه ده، ومعنى سلام الملائكة سلمكم الله من الافات التي تخافونها ولا زوال لما انعم الله عليكم، كذا قال المظهري رحمه الله.

**سوال**: سلام خو دعا ده او دعا خو انشا ده وما قاله المظهري اخبار فكيف يكون معنى السلام؟

**ځواب**: معنى د قول مظهري رحمه الله دعا په ادامه سره د تلک النعم.

**پوه سه**: چي کلمه د "با" په بما صبرتم کي سببيه ده، او کلمه ما مصدريه ده ای بصبرکم عن المعاصي وصبرکم على الطاعات وصبرکم في المصائب وقد مر تفصيل معنى الصبر فتذكر.

فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ ﴿٢٤﴾

ښه دی عقبى الدار ددوی.

**درويش وايي**: چي معنى د عقبى الدار نژدې تېره سوه فلا نعيده، له حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي فقراؤ د مسجد نبوي يعني اصحاب الصفة رضي الله عنهم و رسول الله صلى الله عليه وسلم يو سړی ورواستاوه هغه سړي وويل اني رسول الفقرا اليک فقال عليه الصلوة والسلام مرحباً بک جئت من قوم هم احب الي" نو هغه سړي وويل چي فقرا وايي چي "الاغنيا قد ذهبوا بكل خير" يحجون، او موږ د حج قدرت نه لرو، ويتصدقون او موږ قدرت د صدقاتو نه لرو او مريان ازادوي، موږ قدرت نه پر لرو، او چي دوی ناجوړي سي خپل فاضله اموال ذخيره د اخيرت وګرځوي يعني موږ قدرت نه پر لرو، عليه الصلوة والسلام و رسول ته د فقراؤ وويل چي فقراؤ ته زما له خوا دا پيغام ورسوه چي هغه څوک چي صبر وکړي پر

فقر او سترګي د ثواب خدای ﷻ ته لري درې خصلته دي چي اغنیاؤ لره نسته.
اما الخصلة الاولی فان في الجنة غرفاً من یاقوت احمر چي اهل جنت ورته ګوري
لکه اهل الدنیا چي ستورو ته ګوري لا یدخلها الا نبي فقیر او شهید فقیر او
مؤمن فقیر والخصلة الثانیة یدخل الفقراء الجنة قبل الاغنیاء بنصف یوم یعني
من ایام الآخرة وهو مقدار خمسة مائة عام والخصلة الثالثة اذا قال الفقیر سبحان
الله والحمد لله والله اکبر مخلصاً وقال الغني مثل ذالک لم یلحق الغني الفقیر في
فضله تعالی وتضاعف الثواب که څه هم غني د هغه کلماتو سره لس زره روپۍ
خیرات هم کړي وکذالک اعمال البر کلها للفقیر والغني، نو رسول الفقراء پیغام
نبوي ﷺ وفقراؤ ته ورساوه فقراء وویل رضینا یارب.

**پوه سه:** چي مخصوص بالمدح د نعم محذوف دی والتقدیر فنعم عقبی الدار
جنات عدن.

**درویش وایي:** چي خدای پاک اوس د مقابلي ډلي د اولي ډلي بیان کوي او وایي:

وَالَّذِيْنَ يَنْقُضُوْنَ عَهْدَ اللّٰهِ مِنْۢ بَعْدِ مِيْثَاقِهٖ

او هغه کسان چي ماتوي وعده د خدای ﷻ یعني چي دوی د خدای ﷻ سره
کړي وه وروسته تر ټینګه د هغې یعني بالاقرار والقبول یعني چي یوه له هغو
څخه دا وعده وه چي په تورات کي له یهودانو څخه او په انجیل کي له نصاری وو
څخه اخستل سوې وه چي تاسي به ایمان راوړئ پر محمد علیه السلام چي نعوت د هغه
په دوارو کتابو کي ذکر سوي، کریمه "فلما عرفوه کفروابه.

وَيَقْطَعُوْنَ مَآ اَمَرَ اللّٰهُ بِهٖٓ اَنْ يُّوْصَلَ

او دوی قطع کوي، هغه څه چي خدای ﷻ په هغه سره امر کړی دی چي دا دې
شي په وصل او پیوند کوئ او هغه قطع ددوی دا وه چي پر بعض کتابو ایمان
لري لکه یهود پر تورات او نصاری پر انجیل، او په بعض کتابو لکه یهود پر
انجیل او قرآن کریم او نصاری په تورات او قرآن کریم سره کفر کوي او جلا والی
په منځ کي د خدای او د رسولانو د خدای لکه یهود چي وایي چي پر خدای ایمان

لرو او پر عیسی او محمد ﷺ ایمان نه لرو، یا نصاری وایي چي پر خدای ﷻ ایمان لرو او پر رسولانو لکه موسی او محمد ﷺ ایمان نه لرو او قطع د صلة الارحام کوي چي ددې تړولو په وصل سره خدای ﷻ دوی امر کړي وه.

## وَيُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ

او دوی فساد کوي په مځکه کي چي یو له هغو څخه کفر او معاصي دي، او بل هلاکول دي د کښتو په اور اچولو سره، او بل هلاک د مواشي د مسلمانانو بالقتل، او بل فساد دی په مځکه کي بغیر الحق.

**درویش وایي:** چي په مختلفو احادیثو کي چي روایت د بعض له ابوبکر ﷺ څخه دی له نبي کریم ﷺ څخه راغلي دي مامن صاحب ذنب احری ان یجعل الله لصاحبه العقوبة في الدنیا مع ما یدخر له في الآخرة من العذاب والمنع عن دخول الجنة من البغي وقطیعة الرحم (ای دخولاً اولیاً، متفق علیه) وعن عبدالله بن ابی اوفی ﷺ قال سمعت رسول الله ﷺ لاینزل الرحمة علی قوم فیهم قاطع رحم (رواه البیهقي في شعب الایمان) وعن عبدالله ابن عمرو ﷺ قال قال رسول الله ﷺ لایدخل الجنة منان ولا عاق ای لابوین والاساتذة ولا مدمن خمر (چي پر شراب څیښلو همېشه توب کوي رواه النسائي والدارمي)

**درویش وایي:** چي د بعضو احادیثو چي ما یې مخرج نه دی بیان کړی د هغو مخرج دغه کسان دي احمد، بخاري، ابو داؤد، ترمذي، ابن ماجه، حاکم او ابن حبان رحمهم الله.

## أُولَٰئِكَ لَهُمُ اللَّعْنَةُ وَلَهُمْ سُوءُ الدَّارِ ﴿٢٥﴾

دغو کسانو لره دي لعنت وي ای البعد عن رحمة الله ﷻ، او دوی لره به عذاب یعني شدید عذاب في دار الآخرة وهو جهنم، په حدیث نبوي صحیح کي راغلي دي "الفتنة نائمة لعن الله من ایقضها" فتنه بیده ده یعني نسته، لعنت د خدای ﷻ دي وي پر هغه چا چي بیده فتنه ویښوي، یعني چي مسلمانان په اضطراب او اختلاف او په محنت کي واقع کوي بلا فائدة دینیة وذالک حرام لانه

فساد في الارض واضرار بالمسلمين والحاد في الدين، سعدي رحمه الله ميگويد:
زان همنشين تا تواني گريز ......... كه مر فتنه خفت را گفت خيز
ومن الفتن ان يقول للناس ما لا تصل عقولهم اليه كالمتشابهات القرآنية والحديثية. وفي الحديث الصحيح كلم الناس على قدر عقولهم.

**مسئله**: باچا يا رئيس جمهور چي نائب د كافر نه وي كه څه هم ظالم وي خلگ به پر بغاوت د هغه نه امر كوي لكونه فتنةً وفساداً في الارض. لكن كه آمر او باچا په حقيقت كي كافر وي او مسلمان يې براى نام رئيس جمهور تاكلى وي د هغه حال جلا دى فتدبر. وفي الحديث الصحيح ما نقض القوم من عهد الا كان القتل بينهم ولا ظهرت فاحشة (اى الزنى واللواطة) الا سلط الله عليهم الموت، ولا منع قوم الزكوة الا حبس عنهم القطر يعني باران.

**درويش وايي**: چي دا ټوله بيان سوي شيان او كارونه په تجربه رسيدلي دي.
وفا وعهد نكو باشد اربيا موزى ... وگرنه هر كه توبينى ستمگيرى داند

اَللّٰهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ ؕ وَفَرِحُوْا بِالْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ؕ

خداى (جل جلاله) فراخي د رزق كوي پر هغه چا چي اراده يې سي او تنگي د رزق راولي يعني لمن يشآء، او خوشالي كوي اهل مكه يعني خوشالي د كبر او د گمراهى يعني په فراخي د رزق او مال و منال د ژوند ناقص د دنيا او شكر هم نه وايي.

وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا فِي الْاٰخِرَةِ اِلَّا مَتَاعٌ ﴿۲۶﴾

او نه دى ژوند د دنيا په مقابل كي د نعمتو د آخرت مگر د څو ورځو نفع اخيستل دي لكه زاد د شبانه مثلاً، ددې آيت حاصل دادى چي عاقل سړي لره په كار ده چي خپله سعي او كوشش ټوله د آخرت و نعمتو ته مبذول كړي الا ما لابد له من السعي في الحيوة الدنيا، ومن الله التوفيق.

وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ

او وايي هغه كسان چي كافران دي "يعني مشركى اهل مكة" وروسته تر دې چي معجزات ظاهرات لكه شق القمر او تسبيح د شگو په لاس كي د ابو جهل

وغیر ذالک. ولي نه نازل کېږي پر محمد (ﷺ) باندي "لولا" په معنی د هلا دی
چي حرف تحضیض یا تندیم یې بولي، یعني که پر مضارع داخل سي لپاره د
تخصیص دی یعني باعثه کول پر هغه کار، او که پر ماضي داخله سي لپاره د
پښېمانه کولو هر یو کار چي سرې کړی وي.

**پوه سه**: چي مراد له نزول څخه معناه المشهور نه ده یعني له اسمان څخه
بلکې په معنی د ولي نه ورکړل کېږي ددې تاویل سبب دادی چي تول ددوی
غوښتلې معجزې خو له اسمانه نه نازلېدلې "آیة من ربه" یوه معجزه له جانبه
څخه د خدای ده یعني چي موږ یې غواړو، لکه دوی چي به ویل چي د صفا غر
دي د سرو زرو سي یا د مکې تپوله مځکه غرو نیولې ده ستا رب دي دغه غرونه
ایسته کړي چي مځکه د مکې فراخه سي یا دا چي مځکه د مکې جاري اوبه نه
لري. ته خپل خدای ته ووایه چي یوه جاري ویاله پکښې تېره کړي چي دواړه
طرفونه به موږ باغونه جوړ کړو یعني نو موږ به ستا تصدیق وکړو په نبوت کي.

**پوه سه**: چي دا تپوله غوښتني ددوی تعنتاً او عناداً او تکبراً وي.

قُلْ إِنَّ اللَّهَ يُضِلُّ مَنْ يَشَاءُ وَيَهْدِي إِلَيْهِ مَنْ أَنَابَ ﴿٢٧﴾

ته ورته ووایه چي په تحقیق خدای (ﷻ) گمراه کوي هغه څوک چي دده
اراده د ضلال ورته وسي، او لار ورښیي و ایمان او طاعت ته او ترقي و مدار
جو ته قرب د خدای ﷻ او وجنت ته هغه چاته چي رجوع وکړي و خدای ﷻ ته
یعني اقبل الیه تعالی بقلب سلیم عن العناد والتکبر والتعنت، نو خدای پاک د
هغه ته هدایت کوي په هغو معجزاتو سره بل بادتي من تلک المعجزات.

حاصل د ځواب دادی چي قصور په نزول کي د آیاتو خو نسته لکن الآیات
والمعجزات لا توجب الهدایة انما الهدایة والضلالة بید الله تعالی یضل من کان علی
صفتکم یا اهل مکة من العناد والتکبر والتعنت فلا سبیل الی هدایته وان انزلت کل آیة.

الَّذِينَ آمَنُوا وَتَطْمَئِنُّ قُلُوبُهُم بِذِكْرِ اللَّهِ

هغه کسان چي ایمان یې راوړی (بدل دی د من اناب او یا خبر دی د محذوف

مبتدأ يعني هم الذين آمنوا آه) او ارام او قرار نسي په زړو کي ايمان او يقين او شک وشبه يې له زړو ځخه وځي په ذکر د خدای ﷻ چي مراد ځني قرآن دی په قول د مظهري. او مراد له ذکر ځخه عام دی چي قرآن ته هم شامل دی او کلمه توحيد ته هم او سبحان الله وبحمده سبحان الله العظيم او نورو اذکارو ته هم په نيز د روح البيان شامل دی.

**درويش وايي**: چي عموم ډېر ښايسته دی او د احاديث صحيحه وو سره سمون لري .......... ع :. وللناس فيما يعشقون مذاهب.

أَلَا بِذِكْرِ اللَّهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوبُ ﴿٢٨﴾

آګاه اوسه چي په ذکر د خدای ﷻ بالمعنى المذكور اطمنان او زيادت يقين او آرام پيدا کوي زړونه يعني د مؤمنانو. روح البيان وايي چي زړونه د عوامو په ثنا او تسبيح سره آرام مومي، او زړونه د خواصو په حقائقو د اسما الحسنى بر قراره کېږي. او زړونه د اخصو کسانو په مشاهده د تجلياتو او انوارو خوشاله کېږي.

**يوه سه**: چي زړونه ځو قسمه دي (١) قلب قاس يعني سخت وهو قلب الكافر والمنافق فاطمنانوه بالدنيا وشهواتها (٢) قلب ناس وهو قلب المؤمن المذنب فاطمنانه بالتوبة ونعيم الجنة (٣) قلب مشتاق وهو قلب المؤمن المطيع فاطمنانه بذكر الله كما في هذه الآية، په نفائس المجالس کي وايي چي ذکر د خدای ﷻ صفايي د زړو ده او سبب د رضا د محبوب ده، نو ځوک چي د خدای پاک ذکر کوي خدای ﷻ دوی يادوي، ، کريمه "فاذكروني اذكركم".

په صحيح حديث کي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام يو ځو کسان چي په عربي يې سريه بولي د نجد و خواته واستول فغنموا ورجعوا، نو هغو غنيمتونه راوړل او بيرته مديني ته راغله، نو يو سړي له اصحابو ځخه وويل مارئينا بعثاً افضل غنيمةً واسرع رجعةً من هذا البعث. موږ نه دی ليدلی يو لښکر چي افضل دي وي په غنيمت کي او چابک رجوع کوونکی تر دغه لښکر، نو عليه الصلوة والسلام وويل الا اذ لكم على قوم افضل غنيمة و اسرع رجعةً قوم شهدوا صلاة الصبح ثم جلسوا يذكرون الله حتى طلعت الشمس.

**ترجمه**: آيا زه دلالت او ښوونه نه وکړم تاسي ته پر يو قوم چي افضل وي په غنيمت راوړو کي او په ژر رجوع کي هغه قوم دی چي د سهار لمانځه ته حاضر سي يعني د سهار لمونځ په جماعت سره وکړي او بيا کښيني ذکر د خدای ﷻ کوي يعني هر ذکر چي وي تر هغو پوري چي لمر راخېژي.

**درويش وايي**: چي بغوي رحمه الله يو معقول سوال راوړی دی چي په آيت قرآني في موضع آخر کي دا راغلی دی، انما المؤمنين الذين اذا ذکر الله وجلت قلوبهم. نو طمانيت قلبي لکه ددې آيت مقتضی چي ده الا بذکر الله تطمئن القلوب او د "وجل" کما في آية اخری المذکورة آنفاً څرنګه سره يو ځای کېدای سي په يوه حال کي وهي حالت ذکر الله بای معنی کان الذکر کما من الاختلاف. بيا بغوي جواب ورکړی دی چي مؤمن ته چي وجل پيدا کېږي په نېز د اورېدلو د آياتو د عذاب او عقاب او چي طمانيت ورپيدا کېږي په وخت د اورېدلو د آياتو د ثواب او رحمت يعني زړه د مؤمن بېرېږي چي د خدای ﷻ په وعيد او شدت حساب کي فکر وکړي او ارام د زړه ورته پيدا کېږي چي فضل د خدای او کرم د خدای ورپياد کړي انتهى. او مظهري وايي چي د کلام څخه د بغوي دا فمهمېږي چي په منځ کي د وجل او طمانيت منافات سته او سره ددې چي منافات نسته لان مذهب اهل سنة والجماعة ان الايمان بين الخوف والرجاء. او بل دا چي طمانيت چي مبني پر الفت دی يجتمع مع الوجل.

**درويش وايي**: چي دې اجتماع لره ډېر مثالونه سته مثلاً يو لور وي چي پر پلار ډېره ګرانه وي لکن مع هذا يخاف ان يغضب عليه فيخرجه من البيت. داغه رنګه يو ډېر خادم طالب علم د مشفق استاذ څخه بېرېږي چي پر ادنی شي او عمل به ماته کالي راکړي او له مسجد يا مدرسې څخه به مي وشړي وعلى هذا فقس. وايضاً روی الترمذي رحمه الله عن انس رضي الله عنه چي رسول الله د يو ځوان پوښتني ته ورغلی چي په حالت کي د مرګ و. نو عليه الصلوة والسلام پوښتنه خني وکړه کيف نجدک هغه ورته وويل ارجوا الله يا رسول الله يعني د خدای ﷻ د رحمت او مغفرت اميد لرم او له خپلو ګنهو څخه بېرېږم. فقال رسول الله ﷺ

چي دا دوه خویه نه سره جمع کیږي په زړه کي د مؤمن په مثل کي د دغه حالت چي د زکندن وخت دي نژدې دی مګر خدای پاک به ورکوي چي دده امید دی، یعني مغفرت، او خدای ﷻ به یې آمن ګرځوي د ممایخاف یعني عذاب د ګنهو فاجتمعا في هذا العبد في حالة واحد فکیف المنافات بین الرجا والخوف.

**درویش وايي**: چي له بعض اکابرو څخه روایت دی که یو چا په ثلث اخیر کي د شپې د سه شنبې "لا اله الا الله" زر واره ووایه په حضور قلب سره او په قصد مصمم سره او یو ظالم ته یې واستوله یعني ښېرا یې ورته وکړه ژر به یې خدای پاک هلاک کړي او کور به یې ورخراب کړي او آفات به پر مسلط کړي له منځه به یې یوسي، او شیخ ابو العباس البوني رحمه الله وايي که چا زر واره "لا اله الا الله" د بیدېدلو په وخت کي بانت روحه تحت العرش.... مولی جامي قدس سره:

دلت آئینه خدای نماست ......... روی آئینه تو تیره چراست
صیقلی وار صیقلی میزن ......... باشد آئینه شود روشن
صیقلی آن اگر نه آگاه ......... نیست جز لا اله الا الله

**فائده**: شرط د اذکارو دادی چي ذاکر به تلقین له اهل ذکر څخه اخلي. تو ثمرات د ذکر ژر پر مرتبیږي.

اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ طُوْبٰى لَهُمْ وَحُسْنُ مَاٰبٍ ﴿۲۹﴾

هغه کسان چي ایمان یې راوړی وي یعني بالقلب لا بمجرد اللسان فیخرج منه المنافق او عمل کوي د خصلات صالحات من الفرائض والواجبات والسنن والمستحبات البدنیة والمالیة "الذین آمنوا مبتدا" ده "طوبی لهم" یې خیر دی "وحسن مآب" او ښه ځای د رجوع سته چي جنت دی دار المقربین والابرار والصالحین والاخیار جعلنا الله منهم بفضله وکرمه.

**بوه سه**: چي ترک د منهیاتو مندرج په عمل الصالحات کي. کریمه "ان الصلوة تنهی عن الفحشا والمنکر وکذالک من یؤدی صالحات حسب ما ذکرناه فهو للمنهیات تارک بالطریق الاولی.

**فائده:** "طوبی" پر وزن د فعلی ده من طاب یطیب کبشری وزلفی لکن چونکه طوبی اجوف یایي دی، نو اصل یې طیبی ؤ یا یې په واو بدله کړه په سبب د ضمه د ما قبل لکه موقن وموسر.

**بوه سه:** چي طوبی یا مرفوع محلاً دی یا منصوب محلاً دی یقال في العربیة طیباً لک وطیب لک وسلاماً علیک وسلام علیک، او لام د لک لپاره د بیان دی نحو سقیاً لک. ترجمه طوبی پر قول د ابن عباس رضي الله عنهما فرح لهم وقرة عین، او عکرمه رحمه الله وايي نعم مالهم او معمر له قتاده څخه روایت کړی دی یقول الرجل طوبی لک اذا اصبت خیراً، او ابراهیم رحمه الله وايي خیر لهم وکرامة، او سعید بن جبیر رحمه الله وايي چي طوبی جنت ته وايي په حبشي ژبه، او بغوي رحمه الله د حدیث صحیح په حواله وايي چي طوبی د یوې درختي نوم دی.

**درویش وايي:** چي دا ټولي معاني صحیح دي او لفظ د طوبی د هري معنی محتمل دی، نو هر مفسر هغسي تفسیر کړی دی چي د لفظ سره د طوبی ډېر مناسب په خیال ورغلی دی. فلفظ طوبی من جوامع الکلم وهذا من بلاغات القرآن العزیز التي فاق من بلاغة کل منطیق.

كَذٰلِكَ اَرْسَلْنٰكَ فِيْٓ اُمَّةٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهَآ اُمَمٌ لِّتَتْلُوَاْ عَلَيْهِمُ الَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ وَهُمْ يَكْفُرُوْنَ بِالرَّحْمٰنِ

لکه موږ چي نور رسولان یعني تر تا د مخه استولي وه، استولی مو یې ته یا محمد په یو امت کي یعني امة العرب بل جمیع طوائف الانس بل الجن ایضاً چي په تحقیق تېر سوي د مخه ستا تر امت ډېر امتونه من لدن آدم علیه السلام الی ذمنک حاصل دادی چي ارسال الرسل کوم نوی کار نه دی چي کفار مکه انکار ځني کوي تاچي ته تلاوت او قرائت پر دوی د هغه کتاب چي موږ وحي کړي دي وتاته یعني القرآن العزیز. او دوی یعني کفار کفر او انکار کوي له لوی رحمت څخه د خدای جل جلاله.

**درویش وايي:** چي ددې آیت په شان نزول کي مشهور اختلاف دادی چي دا آیت مکي دی سبب د نزول یې دادی چي ابوجهل د علیه الصلوة والسلام څخه چي په حطیم کي ناست ؤ او خواست یې کاوه یا الله یا رحمن، ابوجهل نورو

مشرکانو ته ورغلی او وه یې ویل ان محمداً یدعوا الهین یدعوا الله ویدعوا رحمٰن، او موږ خو نه پېژنو د رحمان په نامه مګر رحمان الیمامة یعني مسیلمة الکذاب دی فنزلت هذه الآیة ونزلت ایضاً قل ادعوا الله او ادعوا الرحمٰن ایا ما تدعوا فله الاسماء الحسنی" او ضحاک رحمه الله له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت کړی دی چي دا آیت چي نازل سو "اسجدوا للرحمٰن قالوا وما الرحمٰن"

**ترجمه**: او حال دادی چي کفر کوي په هغه ذات سره چي بلیغ الرحمة دی او نعمت دده او رحمت دده و هر شي ته شامل دی "کما هو معنی الرحمٰن" علماً وایي چي رحمان ابلغ دی تر رحیم لان زیادة البناء تدل علی زیادة المعنی" او کفار مکه شکر د نعمتو د خدای جل جلاله نه وایي خصوصاً بارسالک الیهم ونزول القرآن الجامع للامور الدنیویة والدینیة بلغتهم. ولي چي دا دوه نعمته لوی د نعمتو دي پر کفارو د مکې. او قتاده او مقاتل او ابن جریج وایي چي دا آیت مدني دی یعني بعد الهجرة نازل سوی دی په صلح کي د حدیبیه چي علیه الصلوٰة والسلام سره د پینځه لس سوه (۱۵۰۰) صحابه کرامو رضي الله عنهم د عمرې په نیت په میاشت کي ذوا القعدة روان سو، لکن کفار مکه یې مانع وګرځېدله، ورروسته تر ډېر بحث د کفارو د مکې د خوا او د علیه الصلوٰة والسلام د خوا چي تفصیل د قصې یې په سورة الفتح کي موجود دی. اخیراً سهیل بن عمرو د کفارو د مکې له خوا څخه راغلی چي د علیه الصلوٰة والسلام صلح پر دې وکړي چي په اوسني کال کي به بیرته ځئ په راتلونکي کال کي هم د ذوا القعدې په میاشتي کي موږ تاسي ته درې ورځي مکه درخالي کوو چي تاسي عمره وکړئ، نو علیه الصلوٰة والسلام وعلي رضي الله عنه ته چي خط یې زده ؤ داسي وویل اکتب بسم الله الرحمٰن الرحیم د سهیل دلي ورته وویل لانعرف الرحمٰن الا صاحب الیمامة یعنون مسیلمة الکذاب، سهیل ورته وویل چي نوشته کړه چي موږ په پخوا نوشته کول باسمک اللهم الی اخیر القصة والله اعلم بالصواب.

**قُلْ هُوَ رَبِّي لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ مَتَابِ ۝٣٠**

وو ایه ته یا محمد (علیه السلام) چي دغه رحمٰن چي تاسي یې له پېژند ګلوی څخه منکر یاست، زما مربي او متولي د کارو دی او یا مي ناصر دی، پر هغه رحمٰن

زما اعتماد دی چي نصرت به راکړي پر تاسي باندي او خاص و هغه ته زما رجوع ده په مشکلاتو کي او په سختو حالاتو کي.

**پوه سه**: چي یعقوب رحمه الله دا لفظ په اثبات د یا وایي په حال کي د وقف او وصل، او نور قاریان یې په حذف د یا وایي په وقف کي والکسرة دلیل علیها.

**فائده**: "هو" مبتدأ ده "ربي" یې خبر دی او لا اله الا هو یې خبر بعد الخبر دی والمعنی لا مستحق للعبادة الا هو، نو رحمٰن په دواړه وصفه موصوف دی الربوبیة والالوهیة یعني الاستحقاق للعبادة.

**پوه سه**: چي طبراني له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت کړی دی چي کفار د مکې و علیه الصلوٰة والسلام ته وویل چي که ته رشتیا رسول الله یې، نو زموږ مړه شیخان موږ ته را ژوندي کړه ستا په نبوت سره چي ستا په نبوت سره موږ ته شاهدي اداٴ کړي، او بل د مکې ځمکه چي غرونو تنګه کړې ده دا غرونه څني لېري کړه، فنزلت هذه الآیة.

## وَلَوْ أَنَّ قُرْآنًا سُيِّرَتْ بِهِ الْجِبَالُ

او که چېري په قرآن کریم سره ولاړ سي له خپل ځایو څخه غرونه او ځمکه د مکې فراخه هم سي.

**درویش وایي**: چي بغوي رحمه الله د بر مفصل شان نزول ددې آیت بیان کړی دی او وایي چي مشرکین د مکې چي یو له هغو څخه ابوجهل بن هشام او عبدالله بن امیة او نور ګڼ شمېر مشرکان ورسره وه د کعبې شاته کېناستل او نبي علیه السلام یې راوغوښتی، علیه الصلوٰة والسلام چي راغلی، نو عبدالله بن امیه ورته وویل چي که ته په دې خوشاله کېږې چي موږ ستا متابعت وکړو او پر تا ایمان راوړو نو اسه که ستا د قرآن په ذریعه غرونه د مکې تاچي ځمکه فراخه سي چي هم دا اوس دا غرونو ځمکه تنګه کړې ده تاچي موږ کښتونه پکښې وکړو، او زموږ لپاره له ځمکي چینې را وباسه او په مکه کي ویالې راته وه بهیوه چي موږ باغونه پر جوړ کړو او درختې پر شنې کړو، ولې چي ستا په ګمان خو ته اهون تر داوٗد علیه السلام نه یې چي دده په شان کي ویل سوي دي "وسخرنا له الجبال تسبح معه" ددې مقصد دا ؤ

چي ستا لپاره دي دا غرونه مسخر سي چي ستا په امر دي له مکې څخه ایسته سي، او یا موږ ته باد مسخر کړه چي موږ پر یو شي کښېنو او باد مو تر شامه پوري ورسوي او هوري خپل بعض کارونه تر سره کړو او هم په دا غه ورځ مو باد بیرته خپلو کورو ته را ورسوي، ولي ستا په گمان خو ته اهون تر سلیمان بن داؤد ته یې په نېز د خدای ستا، او د سلیمان تخت خو سره د ملگرو باد په هوا وړی او بیرته یې په هغه ورځ کي بیرته شام ته راوړی، او یا موږ ته ژوندی کړه زموږ جدي اعلی قصی بن کلاب یا یو بل مړی زموږ له مړو څخه چي ستا خوښه وي چي موږ پوښتنه تني وکړو ستا په باره کي چي ته رسول یې او که څرنگه، ولي چي عیسی مړي ژوندي کول او ته خو ستا په گمان سپک نه یې پر خدای تر عیسی.

## اَوْ قُطِّعَتْ بِهِ الْاَرْضُ اَوْ كُلِّمَ بِهِ الْمَوْتٰى

او یا قطع د مسافت بعیده د مځکي وکړل سي، یعني چي باد ستا مسخر سي او موږ قطع د مځکي د مسافات بعیده وکړو کمامر. او بعض مفسرین معنی د قطعت به الارض داسي کوي چي مځکه سره څیري سي او چیني او ویالې تني راووځي "او کلم به الموتی" او یا خبرل وکړل سي د مړو سره وروسته تر ژوند د هغو ستا د نبوت په باره کي چي ته نبي بر حق یې یا نه څخه دعوه د نبوت کوې.

**پوښتنه**: "کلم" یې ولي مذکر راوړی؟

**ځواب**: لان الموتی مشتمل علی المذکر الحقیقي. او یا چي مراد د کفار مکه خو قصی بن کلاب و امثاله و.

**بوه سه**: چي ځواب د شرط محذوف دی یعني لما آمنوا لکه په هغه آیت کي "ولو اننا نزلنا الیهم الملائکة وکلمهم الموتی حتی قال في اخیر الآیة ما کانوا لیؤمنوا"

**سوال**: په دې آیتو کي نسبت د سیرت او د کُلم یې ولي وقرآن ته وکړی حیث قال في اولها ولو ان قرآن او سره ددې چي قرآن خو دا کارونه نه کوي په خپله؟

**ځواب**: مراد دادی چي په برکت د تلاوت د قرآن عظیم به دا کارونه وکړل سي فافهم والله اعلم بالصواب والیه المرجع والمآب.

بَلْ لِّلّٰهِ الْاَمْرُ جَمِيْعًا

کلمه د بل لپاره د اضراب ده، په تفسیر حسیني کي وایي ددې آیت په تفسیر کي "نه چنان است که کافران میگویند که بقرآن تو یا به فرمان تو این چیزها که کفار طلب آن کرده من قوله که کوههای مکه دور شود یا قطعت الارض یاکلم الموتی واقع شود. بلکه خلق این چیزها همه وهمه بقدرت پروردگار تعلق دارد" او خاص په خدای ﷻ پوري قدرت پر هر شي او خدای قادر دی چي مقترحات د کفارو دي په معرض کي د وجود راولي لکن اراده د خدای ﷻ تعلق نه دی پوري نیولی لعلمه تعالی بانه لاینفعهم الآیات والنذر.

**درویش وایي:** چي د قرآن د عظمت په شان یو حکایت ته غوږ ونسئ چي یو وخت علي ﷺ مریض ؤ، نو ابوبکر و عمر او عثمان ﷺ ته وویل چي علي ناجوړی دی راځئ چي پوښتنې ته یې ورسو. نو درې واړه د علي ﷺ دروازې ته ورغله او په دغه وخت کي علي ﷺ له خپل مرضه څه خفت محسوس کړی ؤ، نو علي په عیادت ددې درو ناموړو صحابه کرامو او په بیمار پرسی ډېر خوشاله سو نو علي ﷺ چي د سخاوت معدن ؤ کور ته ولاړی چي دې معززو میلمنو ته یو خوراکي شی پیدا کړي، نو بل شی یې په کور کي نه ؤ یو څه عسل ؤ په سپین غاب کي چي د یوه سړي کفایت په کېدی او غاب ښه تک سپین ؤ او یو وېښته په عسلو کي ښکاره کېدی، نو ابوبکر ﷺ وویل چي تر هغو به دا عسل نه خورو چي هر یو خپله رایه پکښي ښکاره نه کړي، نو عمر او عثمان او علي و ابوبکر ﷺ ته وویل چي ته زموږ سید او اکرم او اعز یې نو ته اول رایه ښکاره کړه، نو ابوبکر ﷺ وویل "الدین انور من الطست (غاب) وذکر الله احلی (خوږ) من العسل، و الصراط المستقیم ادق من الشعر، او علي ﷺ وویل الضیف انور من الطست وکلام الضیف احلی من العسل وقلبه ادق من الشعر (یعني زړ خوا بدی کېږي)

**درویش وایي:** چي وکلهم رضی اله تعالی عنهم صدقوا في مقالاتهم، نو هغه لږ عسل د گردو بس سوه او په ماړه سوه وهذا من کراماتهم.

## أَفَلَمْ يَاْيْئَسِ الَّذِينَ آمَنُوا

آيا نه دي نا اميده سوي هغه کسان چي ايمان يې راوړی دی يعني له ايمان څخه د دغو مشرکانو چي مذکوره معجزات يې له عليه الصلوة والسلام څخه غوښتلې.

**پوه سه**: چي ياس قطع د طمعي له يو شي څخه والاستفهام بمعنى الامر يعني نا اميد دي سي مسلمانان له ايمان څخه د دغو کافرانو چي ددوی اقتراحي سوالونه دوی واورېدله. او هم دوی د عليه الصلوة والسلام معجزات کثيره عجيبه وليدی کشق القمر وغيره.

شان نزول ددې آيت مفسرينو داسي بيان کړی دی چي بعض مؤمنانو و عليه الصلوة والسلام ته وويل اجب هولاء الکفار يعني دوی ته دغه غوښتني ددوی ورپوره کړه يعني له خدای ﷻ څخه يې پوره کېده وغواړه فعسى ان يؤمنوا. نو دا آيت نازل سو.

## أَن لَّوْ يَشَآءُ اللَّهُ لَهَدَى النَّاسَ جَمِيعًا

شان دادی کـه چېري د خـدای (ﷻ) اراده وای د ايمان د ټولو خلگو (دا مفعول د يشا دی) نو ټولو خلگو به ايمان راوړی وای (چي معنى د لهدی الناس ده ای فـآمنوا. ولي چي مراد لـه هدايت څخه دلتـه دلالت موصوله دی وهي الايمان لکن هدايت د ټولو خلگو نه سي واقع کېدای لعدم ارادته تعالى لذالک بناءً على حکمته الازلية في ذالک.

**درويش وايي**: چي دغه حکمت ازلی تـه د خدای ﷻ حافظ شيرازي پـه دې بيت کي اشاره کړې ده:

در کار خانه عشق از کفر ناگزير است .... آتش کرا بسوزد گر بولهب نباشد

کريمه "لاملئن جهنم من الجن والناس اجمعين"

**پوه سه**: چي کلمـه د "ان" مخفف لـه مثقل څخه دی. او اسم ضمير شان محذوف دی او خبر يې جمله د "لو يشا الله" ده. والتقدير انـه شان دادی، او جواب يې "لهدی الناس" دی.

وَلَا يَزَالُ الَّذِينَ كَفَرُوا تُصِيبُهُم بِمَا صَنَعُوا قَارِعَةٌ

او همېشه و هغه کسانو ته چي کفر کوي او وايي چي رحمن موږ نه منو چي مراد ځني مشرکان د مکې دي، دوی ته رسېږي په سبب د کارو ددوی من الشرک واعمالهم الخبيثة "قارعة" يوه بلا چي دوی وټکوي (وهذا معنى القرع) او نابيره پر نازلېږي من القتل والاسر والحرب كما في بدر.

أَوْ تَحُلُّ قَرِيبًا مِّن دَارِهِمْ حَتَّىٰ يَأْتِيَ وَعْدُ اللَّهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيعَادَ

او يا واقع کېږي دا قارعه نژدې و دار ته ددوی چي مکه ده چي فزع او بېره او غورزکی و دوی ته هم رسېږي، تر هغو به قارعات جاري وي پر اهل مکه چي راشي وعده د خدای ﷻ (وعد مصدر دی په معنی د موعود دی) چي مراد ځني يا موت پر کفر دی او يا ورځ د قيامت ده او يا مراد ځني فتح د مکې ده. په تحقيق خدای ﷻ خلاف نه کوي د خپلي وعدې لامتناع الكذب والخلف على الله تعالى (نو ميعاد مصدر ميمي دی په معنی د وعد)

**يوه سه:** چي کفارو د مکې چي هغه مذکوره سوالونه د عليه الصلوة والسلام ځخه پر طريقه د استهزا کوله. نو د عليه الصلوة والسلام د تسلي لپاره يې دا آيت نازل کړی، درويش وايي چي وجه د تسلي داده چي بلا چي عامه سي اسانه سي.

وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّن قَبْلِكَ فَأَمْلَيْتُ لِلَّذِينَ كَفَرُوا ثُمَّ أَخَذْتُهُمْ ۖ فَكَيْفَ كَانَ عِقَابِ

والله په تحقيق پسخند وهل سوی ؤ لکه کفار مکه چي په تا پسخند وهي تر تا دمخه په رسولانو (نو لام موطئه د قسم دی) وروسته ما مهلت ورکړی دی و هغه کسانو ته چي کافران وه او کفر يې کاوه، وروسته دوی موږ ونيول په عقوبت سره.

**يوه سه:** "ملوة" چي ماخذ دی د امليت اوږده مدت ته وايي ومنه الملوان لليل والنهار لدوامها مادام الدنيا والمعنى ما مهلت ورکړی دی و دوی ته يعني الذين كفروا ډېره موده ببيله عذابه استدراجاً.

**يوه سه:** چي عقاب د امم ماضيه کفره وو قسم قسم ؤ کما في القرآن العزيز

من بيان تلك الانواع. نو څرنګه و عقاب زما اى هو واقع موقعه اذ لا ظلم من الله تو ستا د مستهزئينو سره به ورته رفتار وکړل سي.

**پوه سه**: چي کسره د "عقاب" عوض د يا محذوفي ده.

**درویش وايي**: چي مثال د امهال د کافرانو ثم اخذهم بالعذاب الشديد لکه يو سړی چي يو پسه په کور کي ساتي څو کاله او ښه ښه وابه او اوربشي ورکوي حتى چي ښه چاغ او غټ سي يو ورځ يې پر غاړه چاړه ور کښېږدي او ذبح يې کړي. و هكذا الابل والبقر وغيرهما مما يؤكل لحمه.

**فائده**: د سړي د شقاوت علامه داده چي استهزا په انبياؤ سره د خداى ﷻ کوي كما اشير اليه في هذه الآية. او علما د اسلام، اولياء الله بالحق وعلى جادة رسول الله ﷺ پر انبياؤ قياس کړی دی يعني د هغو استهزا هم سبب د عذاب الهي ده ولو بعد حين لکه په صحيح حديث قدسي کي چي راغلي دي "من اهان لي وفي رواية من عادى لي وليا فقد بارزني بالمحاربة" يعني که چا په غضب کړی او آزار يې ورساوه يوه ته د اولياء زما (پوه سه! چي د لي لفظ متعلق په وليا سره) فقد بارزني بالمحاربة وذالک لان الولي بالحق ينصر دين الله فيكون الله ناصره.

**درویش وايي**: چي وعلى هذا فقس الائمة المجتهدين كالامام الاعظم ابي حنيفة والامام محمد بن ادريس الشافعي و الامام احمد بن حنبل والامام مالک بن انس رحمهم الله فهؤلاء اساطين الشريعة المحمدي ﷺ فالاستهزاء بهم والاهانة لهم موجب لعذاب الله اما في الدنيا او في الآخرة او في كلهما.

**درویش وايي**: چي د اوسني زماني سلفيان او پنج پيريان او په صرف نامه د اهل حديث د اولياء الله او د ائمة د دين د پر اهانت او سپکاوی کوي. دوستان خدا برين دو بيت عمل مينايند:

گر تو خواهی دردو عالم زندگی ....... بندگی کن بندگی کن بندگی

کار کن تا مزد يابی بز مزيد ....... کان ترا از بهر اين کار آفرين

ومع هذا اديان طوائف مذکوره بغيبت وبهتان زبان ايشان باز است والى الله المشتكى.

## اَفَمَنْ هُوَ قَآئِمٌ عَلٰى كُلِّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ

آيا هغه څوک چي هغه رقيب دى او خبر دى پر هر نفس يعني سرى باندي په هغه شي کي چي دا نفس يې کسب او فعل کوي من خير او شر چي پټه نه ده پر هغه هيڅ شى له عملو څخه ددوى او نه هيڅ شى د جزا د عملو ددوى چي ددغه ذات څخه مراد الله جل جلاله دى.

**پوه سه:** چي خبر د "من" محذوف دى وتقديره کمن ليس کذالک.

**فائده:** استفهام لپاره د انکار دى اى ليس هذان الذاتان مستويين.

قانون نحوي: وروسته تر همزه د استفهام چي حرف عطف يا واو فا يا ثم راسي د هغه حرف عطف معطوف عليه محذوف دى ولا يجوز عطفه علي ما قبل الاستفهام لفوات صدارة الاستفهام، فالتقدير ه أتشرکون مع الله اصناماً (دا هغه معطوف عليه مقدر دى) فتجعلون من هو قائم آه وهو الله تعالى المعبود بالحق کمن ليس کک اى قائم على کل نفس آه" وهذه هي الاصنام. يعني په استحقاق کي د عبادت دا دوه سره برابر دي؟ يعني نه دي سره برابر (وهذا معنى الاستفهام الانکاري) نو حاصل دادى چي تاسي د خداى جل جلاله سره جمادات بتان په عبادت کي او په طلب کي د حاجاتو ددوى څخه مه شريکوئ.

**پوښتنه:** تا خو دا قانون نحوي په دې تفسير کي څو ځاى نور هم راوړى دى ، نو فائده د تکرار يې څه ده، بلکې حواله به دې پر دمخه ذکر سوي باندي ورکړې واى؟

**ځواب:** د درويش غرض په تکرار کي شفقت دى پر متعلمانو ددې تفسير تاچي دوى مجبوره نسي چي په ورقو کي د تفسير په مذکوره قانون نحوي پسي وګرځي، خصوصاً هغه متعلمين چي د پرون خبره يې ننه ورځ نه وي پياد.

## وَجَعَلُوا لِلّٰهِ شُرَكَآءَ

او ګرځولي دي مشرکانو د مکې خداى جل جلاله لره متعدد شريکان يعني بتان، بعض مفسرين وايي چي کلمه د واو لپاره د استيناف ده.

**درويش وايي:** چي په هدايه کي دغه واو استينافي ډېر ليدل کېږي مثلاً د باب يا د فصل په عنوان پسي متصل واو راسي نو محشيان ليکي هذه الواو

للاستيناف اه، او بعض مفسرين چي دا عطف پر مقدر دی تقديره، لم يوحدوه وجعلوا له شركاً آه.

**سوال**: د "لله" اسم ظاهر كي ضمير يعني له چي راجع و من ته واى، ولي نسو ذكر حكمت يې څه دی؟

**ځواب**: چونكه لفظ د الله موضوع دی لپاره د ذات مستحق للعبادة بالحق، نو په لفظ كي د الله تنبيه ده پر عدم شريک له تعالی.

## قُلْ سَمُّوهُمْ

ته ورته ووايه چي تاسي نومان د دغو شريكانو واخلئ.

**پوه سه**: چي مراد مجرد نومان ذكر كول نه دي مثل اللات والعزى وغيرهما اذ لا فائدة في ذكر الاسماء بل المعنى وصفوهم تاسي ددې بتانو صفت وكړئ، او حال يې بيان كړئ مثلاً خدای ﷻ چي قادر، حكيم، خالق كل شيئ و رازق كل شيئ وسميع البصير الى غير ذالک من الصفات الجميلة الجلالية، نو ستاسي په بتانو كي دغه صفات سته چي دوى مستحق د عبادت وګرځي لكه خدای ﷻ كلا وحاشا. فلا تجعلوا لله انداداً افلا تعقلون.

## أَمْ تُنَبِّئُونَهُ

او كه تاسي خبروئ خدای ﷻ.

**پوه سه**: چي كلمه ام منقطعه ده په معنى د "بل آه" دی بل لپاره د انتقال من قوله سموهم او همزه لپاره د انكار دی.

## بِمَا لَا يَعْلَمُ فِي الْأَرْضِ أَمْ بِظَاهِرٍ مِّنَ الْقَوْلِ

په هغو شريكانو چي خدای ﷻ نه دی په خبر په ځمكه كي دي والله تعالى لايعلم شريكاً مستحقاً للعبادة في الارض، ولي علم د خدای ﷻ خو محصور پر ممكناتو دی والشريك المستحق للعبادة ممتنع.

**سوال**: تخصيص د ارض يې وكړی مع انه تعالى لاشريک له في السموات ايضاً فلا يعلم ذالک ايضاً؟

**خواب**: وجه د تخصیص یې داده چې بتان چې دوی شرکاً د خدای بلل من اللات والعزی ومنات وهبل وغیر ذالک څو په مخکه کې وه او دوی په اسمان کې بت نه درلودی چې د خدای شریک یې بللی وای فهذه الآیة من قبیل انتفاً المعلوم بانتفاً العلم. وبعبارة اخری من قبیل انتفاً الملزوم بانتفاً اللازم فتدبر.

**یوه سه**: چې ام دلته هم منقطعه دی په معنی د بل للانتقال من دلیل الی دلیل آخر والهمزة الانکاریة. ترجمه: که یې تاسي مسمی کوئ خدایان په ظاهر د قول چې د آباً او اجداد څخه مو اورېدلي دي بېله دې چې مصداق دي ولري، ددې مثال دادی لکه پر حبشي چې د کافور نوم څوک کښېږدي. او بعض مفسرین وایي چې ظاهر په دې آیت کې په معنی د باطل دی کما في قول الشاعر:

وعیرتها الواشون باني احبها ....... وتلک شکاة ظاهر عنک عارها [1]

**درویش وایي**: چې دا احتمال مظهري رحمه الله راوړی دی په لفظ د قیل سره لکن نور څه یې نه دي ویلي. او روح المعاني هم راوړی دی لکن وروسته یې ویلي دي ومن اراد ذالک فقد تکلف انتهی.

**فائده**: په مظهري کې لفظ د "شعرهم" غلط رواړل سوی دی یعني وعیرني لکن اصل لفظ لکه درویش چې نوشته کړی "وعیرتها" دی او په روح المعاني کې هم وعیرتها نوشته دی.

**درویش وایي**: چې ولهذا الشعر قصة طویلة تجدها في البیضاوي والمطول.

بَلْ زُيِّنَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا مَكْرُهُمْ وَصُدُّوا عَنِ السَّبِيلِ

بلکې ښائسته کړل سوی دی هغه کسانو لره چې کافران (والمزین هو الشیطان) مکر ددوی په ابطال کې ددین حق د توحید په تخییل د باطل چې شرک دی حقاً. او دوی یعني المشرکین بند کړل سوي دي له لاري څخه د توحید او اسلام یعني شیطان دوی له لاري څخه د حق بند کړي دي په وسوسه سره که څه هم صارف في الحقیقة خدای جل جلاله دی. کریمه "الله خلقکم وما تعملون" وهو المشرب الاعذب لاهل السنة خلافاً للمعتزلة دوی وایي چې خالق د افعالو د

[1] ای باطل

بند گانو من خير وشر وكفر واسلام په خپله بندگان، والدلائل والجواب في كتب عقائد المتأخرين كشرح العقائد وشرح المقاصد للعلامة التفتازاني رحمه الله والمواقف وشرحه للسيد الجرجاني رحمه الله وغيرها.

## وَمَنْ يُضْلِلِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ هَادٍ ﴿٣٣﴾

او څوک چې خداى گمراه كړي من خلق اسباب الضلال فيه كذا قال سعدي المفتي الجلبي، نو هغه لره هيڅ هدايت كونكى نسته يعني په هدايت موصله الى المطلوب وكلمة من زائدة لاستغراق النفي.

## لَهُمْ عَذَابٌ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا

دوى لره عذاب دى په ژوند كې ددنيا په قتل سره او په بندي كولو سره او نور مصائب او دا عذاب د دنيا چې وركول كيږي په سبب د كفر ددوى.

**فائده:** جزا ته عقوبت وايي په سبب ددې چې په عقب د بد فعل راځي، او عذاب چې يې بولي عذاب په لغت كې د عربو منع ته وايي كما يقال عذبته عذاباً اى منعته. او له دې سببه خوږو اوبو ته عذب وايي لانه يمنع العطش يعني تنده ماتوي، او عذاب مصطلح ته چې عذاب وايي لانه يمنع الجاني عن معاورة مثل جرمه ويمنع غيره عن مثل فعله سعدي قدس سره وايي:

پند گير از مصائب ديگران .......... تا نگيرند ديگران زتو پند

## وَلَعَذَابُ الْآخِرَةِ أَشَقُّ وَمَا لَهُمْ مِنَ اللَّهِ مِنْ وَاقٍ ﴿٣٤﴾

او عذاب د اخيرت ډېر سخت دى تر عذاب د دنيا لدوامه وكونه عذاب النار.

او نسته دوى لره له خداى ﷻ څخه يعني من عذابه يو حافظ او ساتونكى.

**پوه سه:** چې دوهم من زائد د استغراق لپاره دى او من اولى متعلق په واق پورې دى.

**پوه سه:** چې ابو مرثد الغنوي قدس سره به همېشه تر سترگو وښكې تويولې او دائم الاوقات به يې ژړله، نو يو چا پوښتنه ځني وكړه ددې ژړا د سبب دپه خواب كې ورته وويل كه ماته خداى ﷻ ويلي واى چې كه تا گناه وكړه زه تا په گرم حمام كې بندي كوم، نو خو هم مالره بايد به واى چې زما وښكې به نه

قطع کېدای، نو څرنګه به زما وښکي قطع سي چي خدای ﷻ زما سره وعده کړې ده چي که ګناه وکړې زه به تا جهنم ته داخل کړم چي په هغه کي زر کاله اور بل سوی دی چي تر څو وله سور ګرځېدلی دی، او بيا زر کاله اور پکښي بل سوی دی چي تر څو وله سپين ګرځېدلی دی، او بيا زر کاله اور پکښي بل سوی دی چي تر څو وله لکه تاريکه شپه تور ګرځېدلی دی اعاذنا الله منها بمحض فضله وکرمه و بشفاعة سيد المرسلين ﷺ آمين يارب العالمين... ابيات:

الهي يا الهي يا الهي ....... ندارم جز اميدت تکيه ګاهي
زکن موجود کردی هر دو عالم ....... کرم کن بر من ګم کرده راهي
ندارم طاعت مقبول درګاه ....... بجز اشک ندامت آه آهي
ندارم توشه راه قيامت ....... بجز شرمندګی و روسياهي

## مَثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِي وُعِدَ الْمُتَّقُونَ ۖ

حال د جنت چي وعده يې کړل سوې ده د متقيانو من الکفر والمعاصي.

**پوه سه:** چي "مثل" مبتدأ ده او خبر يې محذوف دی په نېز د سيبويه، والتقدير فيما يقص عليکم او ما بعد يعني تجري آه، له عائد محذوف څخه په صله کي حال دی فتأمل.

## تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ۖ أُكُلُهَا دَائِمٌ وَظِلُّهَا ۚ

چي بهېږي به لاندي تر درختو د هغو جنتو او تر قصورو د هغو ويالې يوه د شيدو بله د عسلو بله د شرابو (چي په شرابو کي د جنت نه د سر درد سته او نه دوی ته بېهوشي وربېښېږي لکه په شرابو کي د دنيا) کريمه "لا فيها غول ولاهم عنها ينزعون "اکلها دائم" مېوې د جنت هره مېوه چي وي (نو اکل په معنی د ماکول دی) همېشه به وي قطع کېږي به نه لکه مېوې د دنيا چي په خپل وخت کي وي بيا قطع سي، له حضرت ثوبان ﷺ روايت دی چي ده واورېدله د عليه الصلوة والسلام څخه "لاينزع رجل من الجنة ثمرها الا اعيد في مکانها مثلها" نه شکوي يو سړی له اهل جنت څخه مېوه د جنت مګر په داسي حال کي چي په

ځای کي د هغې مېوې مثل يې پيدا کېږي مثلاً د انار له درختې څخه يې يو انار وشکاوه په هغه ځای کي بل انار پيدا کېږي وعلی هذا فقس العنب والتين وغيرهما من الثمرات "وظلها" او سايه د جنت به هم همېشه وي. نسي نقل کولای لمر لکه په دنيا کي اذ لا شمس في الجنة.

**سوال**: سايه خو فرع د نور ده څکه د شپې چي سپوږمی نه وي سايه هم نه وي؟

**ځواب**: نور خو حصر په لمر او سپوږمی کي نه دی ففي الجنة نور يکون بسببه لاشجار الجنة ظل.

**پوښتنه**: سايه په جنت کي څه په کار ده سايه خو د ګرمی له کبله په کار ده، ولا حر ولا برد في الجنة؟

**ځواب**: روح البيان او روح المعاني وغيرهما وايي چي د دوام الظل څخه مراد دوام الاستراحة دی في الجنة. تعبير د دوام الاستراحة يې په دوام الظل سره وکړی لان بلاد العرب حارة فيکون الظل هنالک استراحة عظيمة.

**فائده**: له دوام الاکل څخه مراد دوام بالنوع دی لان الشخص من الاکل قد اکل فلا دوام بالشخص ويدل عليه قوله عليه السلام في الحديث المذکور آنفاً في مکانها مثلها.

**پوښتنه**: په آيت شريف کي راغلي دي کل شيئ هالک الا وجهه، نو څرنګه اکل او مېوې د جنت دائم کېدای سي؟

**ځواب**: دوام د هلاک لحظة سره منافي نه دی، او بل ډېر معقول ځواب دادی چي دوام د مېوو د جنت وروسته تر دخول د جنتيانو دي کما يقتضيه سوق الکلام، نو هلاک د مېوو د جنت عند هلاک کل شيئ قبل دخول اهل الجنة لاينافي دوامه بعد دخول اهل الجنة فافهم. لبيد شاعر دمخه تر اسلام ؓ شعر ويلی دی چي عليه الصلوة والسلام يې هم تحسين کړی دی:

الا کل شيئ ما خلا الله باطل ...... وکل نعيم لا محالة زائل

يعني نعيم الدنيا فلا يرد السوال ان نعيم الجنة دائم.

تِلْكَ عُقْبَى الَّذِينَ اتَّقَوْا ۖ وَّعُقْبَى الْكٰفِرِينَ النَّارُ ﴿۳۵﴾

دغه جنت چي تاسي يې صفات واورېدله جزا او ثواب او عاقبة الامر دی د هغه کسانو چي په دنيا کي د خدای ﷻ بېره ورسره وه، او آخر الامر د کفارو اور دی. حاصل دادی چي ايمان او تقوی لاره د جنت ده او کفر لار د دوزخ ده.

**درويش وايي**: چي مظهري ويلي دي ان كان العقبى بمعنى الجزا فاستعماله ههنا على سبيل الاستعارة انتهى، زه وايم چي جزا خو خير او شر دواړو ته شامله ده فلا حاجة الى الاستعارة كما لايخفى. نعم ان كان لفظ العقبى مخصوصة بالثواب والجنة فالحاجة الى الاستعارة موجودة واذ ليس فليست.

وَالَّذِينَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَفْرَحُونَ بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ

او هغه کسان چي موږ ورکړی دی و دوی ته کتاب چي مراد ځني مسلمانان د قوم د يهودانو دي لکه عبد الله بن سلام و اصحابه رضی الله عنهم، او ياد نصاری وو چي اتيا کسه وه څلوېښت د نجران وه او اته د يمن وه او دوديرش د حبشې وه، نو مراد له کتاب الله څخه تورات او انجيل دي. دوی خوشاله دي په ما انزل اليک سره چي قرآن دی. ولي قرآن کريم فضل الله او بل موافق دی د تورات او انجيل سره ولي چي قرآن مبارک نازل سوی پر هغه چا دی چي نعت يې په تورات او انجيل کي مثبت دی يعني محمد ﷺ. نو دوی په ټوله قرآن مبارک سره راضي او خوشاله دي.

**درويش وايي**: چي دا تفسير دی چي روح البيان، روح المعاني او قرطبي په ګډه سره کړی دی او دا هم صحيح تفسير دی عند الفقير، او مظهري د "الذين آتيناهم الكتاب" په تفسير کي وايي يعني اصحاب محمد ﷺ او مؤمنوا اهل الكتاب كعبد الله بن سلام واصحابه ومن آمن من النصارى رضی الله عنهم آه. وروسته يې په تفسير کي د يفرحون آه داسي ويلي دي لموافقته لما عنده آه.

**درويش وايي**: چي موافقت لما عندهم خو يوازي په مؤمنون کي د اهل الكتابين جوړېږي، نو مظهري ولي اصحاب محمد ﷺ په اول کي راوړل.

## وَمِنَ الْأَحْزَابِ مَنْ يُنْكِرُ بَعْضَهُ ط

او بعض له ډلو څخه د کفارو من اليهود والنصارى لکه کعب بن الاشرف او دده تابعان او په سید او د عاقب. هغه څوک دی چي انکار کوي له بعض څخه د ما انزل اليک يعني مخالف وي د خواهشاتو نفسانيه وو ددوى يا هغه احکام د شريعت نبوي چي مخالف وي ددوى د شرائعو منسوخه وو څخه او په اول کي د نبوت د عليه الصلوة والسلام. او بعض مفسرين وايي چي مراد د ينكر بعضه مشركان د مکې دي چي عليه الصلوة والسلام په کال کي د حديبيه ددوى سره کتاب الصلح نوشته کاوه او کاتب ته يې ويل چي نوشته کړه بسم الله الرحمن الرحيم مشرکانو د مکې ورته وويل لا نعرف من الرحمن الا رحمن اليمامة يعني مسليمة الكذاب، بلکې نوشته کړه د پخوا پر رواج باسمک اللهم فانزل الله وهم بذكر الرحمن هم كافرون.

**پوښتنه:** نو ولي يې ددوى په باره کي داسي وويل من ينكر بعضه؟

**ځواب:** دوى خو له ذکر څخه د الله منکر نه وه بلکې د رحمن څخه منکر وه.

او په تفسير کواشي کي وايي چي يهودان په قصصو کي موافق وه د قرآن سره وانکروا غيرها يعني غير القصص. او له ابن عباس ﷺ څخه روايت دى آمنوا اليهود بسورة يوسف او مشرکان له ټوله قرآن څخه منکر وه.

## قُلْ إِنَّمَا أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ اللَّهَ وَلَا أُشْرِكَ بِهِ ط

ته ورته ووايه يا محمد چي زه امر کړل سوى يم ان اى بان چي به عبادت کوم د خداى ﷻ او زه به نه شريک کوم له خداى پاک سره په عبادت کي يعني من الاصنام وغيرها.

ددې آيت تحقيق: که دا آيت په عامو کفارو کي نازل وي لکه مشرکانو د مکې چي به ويل چي محمد موږ په توحيد سره امر کوي او دى په خپله د الله سره بل شريک وايي چي رحمن دى نو معنى د آيت داسي ده چي په توحيد سره د خداى ﷻ او زه چي ذکر د الله او د رحمن يا د رحيم کوم يا د نورو اسماء الحسنى دا منافي د توحيد سره د خداى ﷻ نه دى، نو انکار ستاسي پر ذکر د رحمن هيڅ معنا نه لري. او که دا آيت په منکرانو کي د اهل کتاب نازل سوى وي نو معنى د آيت داده چي زه

په ما نزل الي امر سوی یم په عبادت د خدای ﷻ او په توحید د خدای وهو العمدة في جمیع الادیان او له دې څخه تاسي انکار هم نسئ کولای، او هرچه هغه جزئیات د الهي احکامو دي مما یخالف شرائعکم، نو دا هم یو نوی کار نه دی، ولې چې شرائع او کتب سماویه ینسخ بعضها بعضاً في جزئیات الاحکام.

إِلَيْهِ أَدْعُوا وَإِلَيْهِ مَآبِ ﴿٣٦﴾

خاص خدای ﷻ ته زه تاسي رابولم لا الی غیره، او خاص خدای ته زما رجوع ده ولا سبیل الی انکار ذالک "الیه" متعلق په "ادعوا" پورې دی، تقدیم یې لپاره د حصر دی.

وَكَذَٰلِكَ أَنزَلْنَاهُ حُكْمًا عَرَبِيًّا

"وکذالک" یعني چې ما کتب سابقه په ژبه د من ارسل الیهم نازل کړی دی من العبراني والسریاني وغیرهما. موږ نازل کړی دی قرآن پر تا یا محمد (ﷺ) مشتمل پر احکامو من الحل والحرمة والوقائع وغیرها علی ما یقتضیه الحکمة په ژبه د عربو چې تا او ستا قوم ته فهم اسانه سي.

وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ أَهْوَاءَهُم بَعْدَمَا جَاءَكَ مِنَ الْعِلْمِ مَا لَكَ مِنَ اللَّهِ مِن وَلِيٍّ وَلَا وَاقٍ ﴿٣٧﴾

او که ته متابعت وکړې یعني فرضاً د خواهشاتو د کفارو وروسته تر دې چې تاته علم راغلی چې کفارو د مکې به ویل ایت بقرآن غیر هذا اوبدله، نو نسته تا لره ناصر او کومکي او حافظ چې دفع د عذاب د خدای ﷻ دي وکړي له تا څخه.

**یوه سه:** چې یهودانو به ویل چې دا سړی یعنون محمداً ﷺ نسته ده لره همت بیله ښځو یعني الازواج المطهرات رضي الله عنهن یعني دی د ماینو ډېر شوقي دی حتی چې نهه ماینې لري، نو خدای پاک دا آیت نازل کړی.

وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّن قَبْلِكَ وَجَعَلْنَا لَهُمْ أَزْوَاجًا وَذُرِّيَّةً

لام موطئه د قسم محذوف دی یعني قسم په خدای دی چې ما را استولي رسولان یعني په کثرت سره یعني هغه هم بشر وه لکه ته ملائکه نه وه، او موږ گرځولي دوی لره ماینې، اولادونه لـه تـه چې لرې فلا اعتراض علیک في ذالک

بلکې ستا خو نهه ماینې دي او د داؤد علیه السلام سل ماینې وې د نکاح او درې سوه سریه یعنې مینځیانې وې، او دده زوی سلیمان علیه السلام درې سوه د مهر ماینې وې او اووه سوه سریه وې فکیف یضر کثرة الازواج لنبینا ﷺ، په خبر کې راغلي دي چې علیه الصلوة والسلام ته ورکړل سوی ؤ قدرت د جماع د څلویښتو کسانو د جنت، او د یوه جنتي قدرت د څلویښتو کسانو د دنیا دی، نو علیه الصلوة والسلام ته ورکړل سوی ؤ قوت د څلورو زرو کسانو د دنیا، او سلیمان علیه السلام ته قوت د زرو کسانو د دنیا ورکړل سوی ؤ، په انسان العیون کې وایي چې ازواج المدخول بهن د علیه الصلوة والسلام دوولس ماینې وې، او څلور سریه یې درلودې، او په بستان العارفین کې وایي چې ما تزوج به د آنحضرت ﷺ څورلس ښځې وې، او په واقعات محمودیه کې وایي چې د فخر الانبیاء ﷺ قد تزوج (۲۱) یعنې یوویشت ښځې یې په نکاح کړې دي ومات عن تسع نسوة.

**فائده:** سفیان بن عیینة رحمه الله کثرة النسا لیس من الدنیا. ولې چې علي رضي الله عنه چې په امورو کې د دنیا ښځې یې رغبته وڅلور ماینې او څلور سریه یې درلودې، او مغیره بن شعبه رضي الله عنه اتیا ماینې په نوبت نوبت کړې دي، او په حدیث شریف کې راغلي دي فضلت علی الناس بالسخا والشجاعة وقوة البطش وکثرة الجماع.

**درویش وایي:** چې حاصل د کلام دادی چې کثرت د ماینو عیب نه دی.

وَمَا كَانَ لِرَسُولٍ أَن يَأْتِيَ بِآيَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ

نسته هیڅ رسول لره (نکره په سیاق کې د نفي عموم فائده کوي نو ځکه ما ترجمه په هیڅ رسول وکړه) او نه د هیڅ چا په قدرت کې سته، چې دوی دي راتګ وکړي په یوه معجزه سره یعنې چې خلګ یعنې کافران ځني غواړي اقتراحاً لکه د علیه الصلوة والسلام څخه چې مشرکانو د مکې غوښته چې غرونه د مکې د خپلو ځایو څخه ایسته کړه تا چې ځمکه د مکې فراخه سي او یا د صفا غر د سرو زرو وګرځوه یا په مکه کې لویه ویاله جاري کړه الی غیر ذالک من الاقتراحات (یعنې ناحقه غوښتنې) "الا باذن الله" مګر نه په اجازه د خدای (ﷻ)، ولې چې رسولان بندګان هیڅ شی په طاقت کې نه لري الا ما شا الله.

لِكُلِّ أَجَلٍ كِتَابٌ

ولي چي وخت د هر كار خپل وخت مكتوب لري عندالله يعني في اللوح المحفوظ يعني د هري معجزې وخت مكتوب ستـه عندالله لا تتقدم ولا تتاخر وان استعجل الناس. او د هر شي بداية او نهاية مكتوب دی. مثلاً چي زيد بـه پـه فلاني تـاريخ پيدا كېږي او دومره مده بـه كـافر وي او فلانـي وخت بـه ايمان راوړي. او دغه نزول د هر آيت يا سورت قرآني مدة معلومه لري. ومثال ذالک مما يقع في العالم العلوي والسفلي.

يَمْحُوا اللّٰهُ مَا يَشَآءُ وَيُثْبِتُ

محو كوي خداى ﷻ هغه شی چي دده اراده ورته وسي او ثابت پرېږدي يعني ما يشأ.

**درويش وايي:** چي ددې آيت پـه تفسير كي مختلف اوږده او لنډ بيانات مفسرينو رحمهم الله راوړي دي، چناچه سعيد بن جبير او قتاده وايي چي محو كوي خداى پاک مايشاً من الفرائض والواجبات والشرائع. نو يې نسخ كړي او بدل يې كړي لكه بعض احكام د تورات او انجيل چي پـه قرآن سره منسوخ سوه او ثابت پرېږيد بعض احكام يعني نه يې كړي نسخ، او عكرمه رحمه الله وايي يمحو بالتوبة جميع الذنوب ويثبت بدل ذالک حسنات، كريمه "الا من تاب (اى من الشرک والكفر) وآمن وعمل عملاً صالحاً فاؤلئک يبدل سيئاتهم حسنات. او ابن جبير رحمه الله وايي يغفر ما يشأ من ذنوب عباده ويترک مايشأ فلا يغفره (يعني بخښي خداى پاک هغه گناه چي پـه حقوق كي د خداى ﷻ وي بالتوبة وبلا توبة لمن يشأ، او پرېږدي هغه گناه چي خوښه يې وي من حقوق الناس ومظالم العباد) او بعض روات وايي يمحو مايشأ ممن حان اجله ويثبت ممن لم يات اجله. او علي رضي الله عنه يې داسي تفسير كړی دی يمحو مايشأ من القرون قال الله تعالى اولم يروا كم اهلكنا من قبلهم من القرون ويثبت مايشأ لقوله تعالى ثم انشأنا من بعدهم قروناً آخرين" او ابن عباس رضي الله عنهما او ضحاک رحمه الله وايي يمحو من ديوان

الحفظة يعني له دفتر څخه د كرام كاتبين هغه فعل او قول چي نه حسنه وي او نه سيئه وي. ولي دوى خو مامور دي په كتاب سره د هر قول او فعل نو چي نه حسنه وي او نه سيئه وي هغه خداى محوه كرځوي او حسنه او سيئه پريږدي او بعض روات وايي يمحو الدنيا ويثبت الآخرة، او حسن بصري رحمه الله او كن شمېر نور و هم ويلي دي چي دا آيت په آجال كي د بني آدم دى چي په حديث صحيحه وو كي راغلي دي چي په ليلة النصف كي د شعبان خداى پاك محو كوي. بعض خلگ له ديوان څخه د ژوند ويثبتهم في ديوان الموتى، او بعض مفسرين وايي كه په اول كي د دفتر د كرام كاتبين او په اخير كي يې حسنه او خير ؤ يمحو الله ما بينهما من السيئات، او كه يې په اول او په اخير كي حسنه نه وه يثبت من السيئات.

**پوه سه**: چي چي د ابن عباس رضي الله عنهما روايت دى يمحو الله ما يشاء من امور عباده ويثبت الا السعادة والشقاوة والآجال فانه لا محو فيها. او بعض علماء وايي چي محو او اثبات عام دى په رزق او اجل او سعادت او شقاوت كي هم جاري كيږي او ددي قول نسبت وه يو جماعت ته د صحابه كرامو او تابعينو كړل سوى. ولي چي دوى به هم خداى پاك ته زارى كولي چي موږ سعداً وگرځوې فلو لا التغيير في السعادة والشقاوة لما كان لهذا الدعا فائدة، او له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دى چي بعضو خائفينو داسي دعا كوله اللهم ان كنت كتبتني عندك في ام الكتاب شقياً فامح عني اسم الشقاوة واثبتني عندك سعيداً وان كنت كتبتني في ام الكتاب عندك سعيداً فاثبتني عندك سعيداً موفقاً للخير فانك تقول في كتابك الذي انزلت يمحو الله ما يشاء ويثبت وعنده ام الكتاب ويدل على هذ المذهب، هغه حديث چي عبد بن حميد وغيره له عمر رضي الله عنه څخه روايت كړى دى چي ده طواف پر بيت الله الشريف كاوه او داسي دعا يې كوله "ان كنت كتبت علي شقاوةً او ذنباً فامحه واجعله سعادةً ومغفرة فانك تمحو ما تشاء وتثبت وعندك ام الكتاب"

**درويش وايي**: چي د تعميم ته د محو او اثبات شيخ الاسلام علي البزدوي رحمه الله هم تللى دى حيث قال والانسب تعميم كل من المحو والاثبات ليشمل

الکل ویدخل فیه مواد الانکار ای السعادة والشقاوة والاجل آه. یدل علی هذا ما ورد في بعض الاخبار چي د یو بنده عمر او اجل دیرش کاله پاته وي. نو دا سړی یو وسیله رحمي قطع کړي. نو اجل یې درې ورځي ته نقل سي، او یو سړی وي چي اجل ته یې درې ورځي پاته وي او دی یو وسیله وکړي اجل یې دېرش کاله وګرځي.

**درویش وایي**: چي بعض حکمأ الاسلام وایي چي خدای پاک دوه کتابه لري یو کتاب المحو والاثبات دی چي په هغه کي معلق قضأ د خدای ﷻ نوشته ده. او بل لوح محفوظ دی چي په هغه کي قضأ مبرم یعني قاطع قضأ د خدای ﷻ چي تغییر او تبدیل ځای نه لري. د مثال په توګه په کتاب المحو والاثبات کي نوشته وي چي زید به په فلاني تاریخ ناجوړه سي او مړ به سي. نو زید په هغه تاریخ ناجوړه خو سو لکن یا یې دوا وکړه او یا صدقه رد البلا یې وکړه یا یې استعانت په آیات الشفأ وغوښتی الی غیر ذالک. نو جوړ سو نو کتاب المحو والاثبات دده د مرګ عبارت خدای ﷻ محو کړی او اثبات د حیوت په سبب د امورو مذکوره ثابت. او په لوح محفوظ کي داسي نوشته وي چي زید به په فلاني تاریخ ناجوړی سي لکن استعانت په امور مذکوره به وکړي او جوړ به سي

**درویش وایي**: چي داؤ تحقیق ددې آیت حسب الطاقة او دا اقوال چي درویش رواړل ددغو تفاسیرو څخه مأخوذ دي روح المعاني چي ددې آیت ډېر طویل تفسیر کړی دی، او روح البیان، تفسیر مظهري، تفسیر کبیر للامام الرازي. تفسیر قرطبي. نو حاسد هیڅ حق د اعتراض پر فقیر نه لري لان علی الناقل تصحیح النقل لا تصحیح المنقول او ډېر ناپوه علمأ ددې زمانې فرق د نقل او د حکم نسي کولای، مثلاً فقیر په بعض رسالو کي یو حکم د بل قائل څخه چي د هغه نوم مي هم بیان کړی وي نقل کړی وي. نو جاهل ملا صاحب وایي چي عبید الله په فلانی رسالة کي داسي حکم کړی دی.

## وَعِنۡدَهٗۤ اُمُّ الۡكِتٰبِ ۝٣٩

او په نېز د خدای ﷻ اصل د کتاب (پوه سه! چي عرب هر اصل ته ام وایي)

**درویش وایي**: چي مظهري تفسیر د ام الکتاب په علم سره د خدای کړی دی

چي په هغه کي تغییر او تبدیل محال دی کذا قال کعب حین سئاله ابن عباس ﷺ عن ام الکتاب. او بغوي ﷺ وايي هو اللوح المحفوظ الذي يا يبدل ولا يغير ما فيه وهذا هو المشهور.

**درویش وايي**: چي تفسير د ام الکتاب په علم سره د خدای ﷻ ما رواه عبد الرزاق وابن جرير عن کعب ﷺ کذا في روح المعاني، او روح البيان وايي په تفسير کي د ام الکتاب وهو العلم الازلي السرمدي القائم بذاته تعالى وقد احاط الله بكل شيئ علماً بلا زيادة ونقصان وكل شيئ عنده بمقدار انتهى.

**درویش وايي**: چي وروسته روح البيان مذهب د حکماؤ ته ميل کلي کړی دی او طويل بحث يې پر لار اچولی دی ولا يليق ذالک بتفسير الكلام العزيز كما لا يخفى. . . . بيت:

ومن مذهبي حب الديار لاهلها ........ وللناس فيما يعشقون مذاهب

وَإِنْ مَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِى نَعِدُهُمْ

**پوه سه**: چي په "اما" کي ادغام د نون ان شرطيه په ما زائده کي دی وجزا د ان محذوف ده ای فذالک هو المطلوب.

**ترجمه**: كه چيري زه وروينم په تا يا محمد (ﷺ) دمخه تر وفات ستا بعض د هغه امورو چي موږ د تاسي وعده کړې ده يعني چي کفار به مغلوب سي په دې دنيا او اسلام به غالب سي لکه چي خدای ﷻ په عليه الصلوة والسلام مغلوبيت د کفارو د مکې په ورځ د بدر چي کفارو ته په درې سوه ديارلس کسه سره يې شکست ورکړی. او اوويا کسان په شمول د ابو جهل فرعون هذه الامة او اوويا بنديان سوه چي تفصيل يې وراندي تېر سو.

أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلٰغُ وَعَلَيْنَا الْحِسَابُ ﴿٤٠﴾

او يا به موږ تا وفات کړو دمخه تر راتلو د عذاب موعود د کفارو بيا يې موږ په عذاب نسو. حاصل دا چي ته غم مه کوه د اعراض ددوی ستا له دين څخه او هم طلب د ژر ورکولو ددوی مه کوه لان لکل شيئ ميعاد. ولي چي ستا په ذمه کي

نسته مگر تبليغ د دين د اسلام هغه خو تا په وجه اتم سره وکړي او پر موږ دي حساب ددوی په ورځ د قیامت چي دوی راڅرولدي سي هغه په تا پوري اړه نه لري.

## اَوَلَمۡ يَرَوۡا اَنَّا نَاۡتِى الۡاَرۡضَ نَـنۡقُصُهَا مِنۡ اَطۡرَافِهَا‌ؕ

آيا دوی نه ويني (يعني كفار د مكې) يعني چي موږ ورځو امر زموږ ورځي و مځكي ته د كافرانو، چي موږ كموو مځكه د كافرانو يعني ددوی د تسلط ځخه يې باسو او مسلمانانو ته يې فتح كوو له اطرافو ځخه د مځكي د دوی. بغوي رحمه الله وايي چي اكثره مفسرين پر دې دي چي مراد په آيت كي فتح د ديار د اهل الشرك ده. فان ما زاد في ديار اهل الاسلام فقد نقص من ديار اهل الشرك.

**ترجمه**: آيا نه ويني چي موږ قصد او اراده كوو و مځكو ته د كفارو او له اطرافو ځخه ور كموو په فتح سره پر مسلمانانو ارضاً بعد ارض پر شا وخوا ددوی، نو دوی له دې ځخه عبرت نه اخلي چي ايمان راوړي. وهذا قول ابن عباس رضي الله عنه وقتادة وجماعة. او په دې آيت سره خدای پاک تسلي وركوي و عليه الصلوة والسلام ته چي غمجن نه سې او په دې پوه سې چي خدای پاک پوره كوي ما وعده من الظفر لاهل الاسلام على الكفرة المنكرين المعاندين.

## وَاللّٰهُ يَحۡكُمُ لَا مُعَقِّبَ لِحُكۡمِهٖ‌ؕ

او خدای (جل جلاله) حكم كوي په خپلو بندګانو كي مايشآ من الظفر والفتح والهزيمة، ردونكی نسته د قضآ د خدای جل جلاله ولا ناقض لحكمه والمعنى انه تعالى قد حكم واراد الاسلام بالاقبال وعلى الكفر بالادبار وذالک كائن لامرد له.

**پوهه سه**: چي محل د لا مع المنفي نصب دی على الحال اي يحكم نافذاً حكمه.

## وَهُوَ سَرِيۡعُ الۡحِسَابِ ۝٤١

او خدای (جل جلاله) ژر حساب كوونكی دی د كفارو سره په ورځ د قيامت بعد مايعذبهم في الدنيا بالقتل والاسر والاجلا من الاوطان.

**پوښتنه**: نقص د اطرافو د مځكي د كفارو خو په فتح سره دی چي هغه مبني پر جهاد وه او امر د جهاد و عليه الصلوة والسلام ته چي وركړل سوی و هغه خو

په مدینه منوره کي ۋ او دا سورت خو مکي دی.

**خواب**: کون السورة مكية لا ينافي كون بعض آياتها مدنية وبالعكس لان كون السورة مكية او مدنية مبني على الاغلب والاكثر ومثل هذا كثير في القرآن الكريم كما لا يخفى.

**درویش وایي**: چي ددې کبله مفسرین رحمهم الله وایي چي فلانی سورت مکیه دی الا آية كذا وكذا. او دا سورة مدنية الا آية كذا وكذا فانها مكية فافهم وتذكر فان هذه فائدة سنية تنفع في جميع القرآن.

## وَقَدْ مَكَرَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ

**پوه سه**: چي مکر ایصال د مکروه دی و یو چا ته په دې ډول چي هغه په ځان نه پوهېږي. والمعنى په تحقیق مکر کړی ۋ هغه کسانو چي دمخه تر مشرکینو د مکې وه یعني کفارو د امم سابقه ۋ د انبیاؤ سره خپل او د مؤمنانو سره د هغې زمانې لکه چي مکر وکړی کفارو د قریشو د تا سره.

## فَلِلّٰهِ الْمَكْرُ جَمِيْعًا ط

ای عند الله جزاً مکرهم په دې کي هم تسلي ده و علیه الصلوة والسلام ته په دې چي مکر د انبیاً او د مؤمنین سره عادت قدیمه دی د کفارو. پښتانه وایي: د عالم سره غم نه غم دی.

**پوه سه**: چي مکر د کفار قدیمه وو تدبیر د قتل د انبیاؤ لکه مکر د نمرود د ابراهیم علیه السلام سره چي لویه مناره یې جوړه کړه او په مناره کي وختی چي رب د ابراهیم ووژني. او مکر د فرعون چي موسی علیه السلام مړ کړي. او مکر د یهودانو د عیسی علیه السلام د وژلو. او مکر د ثمودیانو و صالح علیه السلام ته چي دوی ویله چي صالح او دده اهل به مړه کړو د شپې. او د مکې والو مکر و آنحضرت ﷺ ته چي په دار الندوة کي پلان د قتل د علیه الصلوة والسلام منظور کړی باتفاق الاراً. په روح المعاني کي وایي چي مکر د خدای جل جلاله اهلاک ددوی دی من حیث لا یشعرون شبه ذالک بمکر الماکر على سبیل الاستعارة او مشاکلةً مثل جزاً سیئة بمثلها.

يَعْلَمُ مَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ وَسَيَعْلَمُ الْكُفَّرُ لِمَنْ عُقْبَى الدَّارِ ﴿٤٢﴾

خدای ﷻ خبر دی په هر هغه چي نفس يې کوي يعني، نو جزا به ورکوي موافق دده د عمله سره من خير وشر. او ژر دی چي خبر به سي کافران.

**پوه سه:** چي مظهري وايي ای لمن جزا الحسنات في الدار الآخرة ددې دوو ډلو څخه د مؤمنانو او کافرانو چي کافرانو ته په عذاب معهود ورکړل سي وهم في غفلة منه. او مؤمنانو به جنت ته داخل کړل سي. وهذا کالتفسير لمكر الله بالكافرين.

وَيَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوا لَسْتَ مُرْسَلًا قُلْ كَفَىٰ بِاللَّهِ شَهِيدًا

او وايي هغه کسان چي دوی کفر کوي چي مراد څني کفار د مکې دي يا رئيسان د يهودانو، ته نه يې را استول سوی يعني د خدای له خوا بلکې کاذبانه دعوه د نبوت دي کړېده. ته ورته ووايه چي کافي دی خدای ﷻ شاهد يعني زما په نبوت سره.

**پوه سه:** چي با زائده ده پر فاعل باندي او شهيداً تمييز دی له نسبت څخه والمعنى كفى شهادة الله.

بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ

زما او ستاسي تر منځ.

**فائده:** شاهدي د خدای ﷻ پر نبوت د عليه الصلوة والسلام اعطا د معجزاتو خارقاتو د عادت الهي لکه شق القمر. او تسبيح د شګو په لاس کي د ابو جهل وغير ذالک او په اعلی درجه کي قرآن عزيز حيث قال الله تعالى "وان كنتم في ريب مما انزلنا على عبدنا فأتوا بسورة من مثله الى اخير الآية کمامر في سورة البقرة، يعني نو بل شاهد ته ضرورت سته بعد شهادة الله. او خدای پاک حاکم مطلق دی يوم الجزا فلا يكون لهم عذر في هذا اليوم.

وَمَنْ عِندَهُ عِلْمُ الْكِتَٰبِ ﴿٤٣﴾

او هغه څوک شاهد زما پر نبوت باندي چي دده سره علم د کتاب سته يعني التورات، هذا عطف على لفظ الله، او مراد څني مؤمنون د اهل کتاب دي لکه

عبدالله بن سلام ﷺ وامثاله. او دغه رنگه مؤمنان دي احبار د یهودانو ولا یضر انکار الکافرین منهم عناداً وتکبراً وحفظاً لریاستهم على العوام واخذ الاموال منهم. کریمه " اشتروا بآیاتنا ثمناً قلیلاً.

**فائده**: چونکه اسلام د عبدالله بن سلام ﷺ په مدینه کي ؤ، نو ځکه بعض علماً وايي چي مذکوره آیت ددې سورت مدني دی که څه هم نور تول سورت مکي دی.

**مسئله**: فلاسفه وايي چي محمد علیه السلام یو لوی حکیم او فیلسوف او لوی علم خدای ﷻ ورکړی ؤ نبي نه ؤ وهؤلاً من الکفار.

**مسئله**: ایمان پر علیه الصلوة والسلام باندي فرض عین دی، په دې ډول چي دی رسول دی زموږ في الحال او مبعوث دی و انس او جن ته او خاتم د انبیاؤ او رسولانو دی، نو هغه کسان لکه قادیانان چي علیه الصلوة والسلام رسول بولي او خاتم الرسول یې نه بولي او دین دده مبارک باقي نه بولي الی یوم القیامة فهم کفار بالاجماع.

**درویش وايي**: چي تفسیر د سورت رعد پر پینځه ویشت د میاشتي د رجب پر اووه بجې د سهار د دوشنبې د ورځي سنه (۱۴۲۹) هـ ق او د فقیر عمر د یونوې (۹۱) کالو په شاوخوا کي ؤ، وروسته شروع په تفسیر د سورة ابراهیم کوم ان شا الله تعالی.

التجاً: د عاصي دا تمنا او دعا ده چي خدای ﷻ دي تفسیر ایوبي په خپل قدرت کامله پای ته ورسوي او فقیر ته دي دومره مهلت په ژوند کي سره د صحت او عافیت ورکړي چي دا تفسیر تر اخیره پوري ورسېږي وما ذالک على الله بعزیز.

الحمدلله على التوفیق والصلوة والسلام على سید المرسلین وعلى آله وصحبه اجمعین.

سُوْرَةُ اِبْرٰهِيْمَ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ اِثْنَتَانِ وَخَمْسُوْنَ اٰيَةً وَّسَبْعُ رُكُوْعَاتٍ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

الحمد لله والصلوة على عباده الذين اصطفى.

رب يسر ولا تعسر وتممه بالخير والعافية.

**درويش وايي:** چي دا مذهب د مظهري ؤ او روح البيان وايي چي سورة ابراهيم مكي دی مگر "الم تر الى الذين بدلوا" دوه آيته. او دی وايي چي آيتونه يا يو پينځوس يا دووپينځوس يا څلور پينځوس يا پينځه پينځوس دي والله اعلم.

الٓرٰ قف كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ اِلَيْكَ لِتُخْرِجَ النَّاسَ

**درويش وايي:** چي تحقيق د مقطعاتو او اختلاف د علماؤ رحمهم الله په اوائلو كي د بعض السور تېر سو لكه سورت بقره.

كتاب مور نازل كړی دی و تاته يا محمد (ﷺ) "كتاب" خبر د مبتدأ محذوف دی ای هذه السورة او القرآن كتاب "انزلناه" صفت ده د "كتاب" "لتخرج الناس" متعلق دی په "انزلناه" پوري يعني حكمت د نزول يې دادی چي تا و باسي خلگ په بلنه سره ددوی و توحيد او اسلام ته او ته و دوی ته وښيه هغه شيان او احكام چي ددوی نفع او يا ضرر پکښې وي يعني په توفيق د خدای جل جلاله.

مِنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ۙ

له تاريكی ځخه د اقسامو د ضلال من الشرك والمجوسية واليهودية والنصرانية وړنيا ته د دين د اسلام.

**درويش وايي:** چي چونكه انواع د كفر او ضلال ډيري وي كما قلنا نو ځكه يې ظلمات جمع راوړی او دين اسلام چونكه يو ؤ نو ځكه يې لفظ د نور مفرد راوړی.

**فائده:** اطلاق د ظلمات پر انواع د كفر او د نور اطلاق پر اسلام تشبيهاً او استعارةً دی كما لا يخفى فافهم.

بِاِذْنِ رَبِّهِمْ اِلٰى صِرَاطِ الْعَزِيْزِ الْحَمِيْدِ ۙ﴿۱﴾

يعني په توفيق او تسهيل د خدای جل جلاله ددوی چي مربي ددوی دی.

**پوه سه:** چي جار او مجرور متعلق دی په "تخرج" پوري. او يا حال دی له فاعل يا مفعول څخه د "تخرج" يعني متلبساً باذن ربهم.

**پوه سه:** چي "الى صراط" بدل دی من قوله "الى النور" بتكرير الجار يعني چي و باسي ته خلگ ولاري ته د خدای ﷻ چي غالب دی په قدرت تامه سره او محمود دی بحيث لا يستحق الحمد الا هو (نو فعيل په معنا د مفعول دی)

**فائده:** اضافت د "صراط" چي يې لفظ "الله" ته وکړی له دې سببه چي مقصود له دې لاري څخه خدای ﷻ دی او يا مظهر ددې لاري خدای پاک دی. او ممکنه ده چي حميد دي په معنا د فاعل وي ای المجازي يعني جزا ورکونکی دی هر حامد ته پر حمد د هغه.

**فائده:** مراد له "صراط" څخه دين د اسلام دی فانه طريق موصل الى الجنة بل الى خيرات الدارين.

اللّٰهِ الَّذِىْ لَهٗ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَمَا فِى الْاَرْضِؕ

**پوه سه:** چي لفظ "الله" په جر سره عطف بيان دی د "عزيز حميد" صفت يې نه دی لانه علم للذات الواجب الوجود الخالق للعالم والعلم لا ينعت به. هغه خدای چي ده لره دي ملكاً وخلقاً وعبيداً هغه شيان چي په اسمانو او ځمکه کي دي که ذوی العقول او که غير ذوی العقول وي من الموجودات.

وَوَيْلٌ لِّلْكٰفِرِيْنَ مِنْ عَذَابٍ شَدِيْدِۙ ﴿٢﴾

**پوه سه:** چي "ويل" هلاک ته وايي. او کاشفي رحمه الله وايي چي رنج و مشقت ته وايي. وهو مبتدأ و خبره "للكافرين آه" کافرو لره يعني بالقرآن له عذاب سخت څخه چي عذاب النار دی.

**پوښتنه:** "ويل" خو نكره محضه ده، نو ابتدأ يې څرنګه صحيح ده؟

**ځواب:** ابتدأ يې له قبيلې څخه د "سلام عليكم" ای سلام من قبلي عليک يعني ويل من قبل الله. او يا له قبيلې څخه د شر اهر ذاناب ای شر عظيم.

**فائده:** "ويل عظيم" دا دواړه ځوابه ماخوذ دي له شرح څخه د عبد الرحمن الجامي قدس سره على كافية ابن الحاجب.

**فائده**: قاضي بيضاوي وايي چي ويل خو مصدر دى لكه هلاک دومره فرق يې دى چي له "ويل" څخه اشتقاق نه كيږي او له "هلاک" څخه اشتقاق سته. نو بايد منصوب واى لكه بعداً لك وخيبةً لك. لكن رفع يې وركړه لافادة الثبات فهو وعيد شديد.

## اَلَّذِيْنَ يَسْتَحِبُّوْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا عَلَى الْاٰخِرَةِ

هغه كافران چي دوى خوښ او مختاره كړي په دې د ځان لپاره. يعني لذات او شهوات د ژوند ناقص چي بې بقا دي پر نعمتو د آخرت والا لآمنوا لان الموصل الى نعيم الآخرة هو الايمان ليس الا.

اعراب: الذين سره د صلې يا صفت د كافرون دى يا منصوب دى على الذم په تقدير د اعني. او يا مرفوع على الذم دى په تقدير د مبتدأ دى هم الذين آه كما قالوا في قوله اعوذ بالله من الشيطان الرجيم. بالجر على انه صفت للشيطان او بالنصب على الذم يعني اعني الرجيم. او برفعه بحذف المبتدأ اى هو الرجيم.

**پوښتنه**: په دې درې اعرابو خو طالبان او امامان هم نه پوهېږي فضلاً عن العوام او ستا تفسير خو ستا په وينا د پښتنو لپاره دى؟

**ځواب**: ما څو ځايه مكرر ويلي دي چي زما تفسير د پښتنو لپاره دى داسې مې نه دي ويلي چي فقط د پښتنو عوامو لپاره دى. بلكې نفع ددې تفسير د عوامو او خواصو دواړو ته رسېږي ان شاء الله عزوجل.

**پوښتنه**: باب د استفعال يعني په "يستحبون" كې خو لپاره د طلب دى. نو كافران له چا څخه طلب كوي؟

**ځواب**: په خواص الابواب د شافيه د ابن الحاجب كې وايي چي كله كله باب د استفعال په معنا د مجرد وي اى يحبون سلمنا ان باب الاستفعال للطلب فان المختار للشيئ يطلب من نفسه انيكون احب اليها من غيره كذا قال المظهري.

## وَيَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَيَبْغُوْنَهَا عِوَجًا

او دوى منع كوي (يعني خلگ. فالمفعول محذوف) له لاري څخه د خداى يعني په سبب د متابعت د رسول د خداى (ﷺ) "ويبغونها عوجاً" اى يطلبون

سبيل الله (على حذف حرف الجر وايصال الفعل والاصل يطلبون لها) دوى طلبوي او تلاش کوي د سبيل الله لپاره كږوالى له حق څخه يعني يو نقصان چي دوي په هغه سره اعتراض پر وكړي. او يا معنا د آيت داده چي دوى طلبوي لار و خداى ﷻ ته په داسي حال كي چي دوى مائل له حق څخه وي چي دين د اسلام دى يعني په بت پرستى. كي دوى حق طلبوي مع انه محال. او يا ضمير منصوب د "يبغونها" راجع دى و دنيا ته اى يطلبون الدنيا على طريق الميل عن الحق يعني من الطرق المحرمة كالربوا والسرقة وغير ذالک.

**أُولَٰئِكَ فِي ضَلَالٍ بَعِيدٍ ۝**

او دغه كسان دي په گمراهي كي چي له حق څخه لېري دي.

**پوه سه:** چي بعد له حق څخه په واقع صفت د ضال دى لكن په ظاهره يې اسناد و ضلال ته وكړى مبالغةً.

**وَمَا أَرْسَلْنَا مِن رَّسُولٍ إِلَّا بِلِسَانِ قَوْمِهِ لِيُبَيِّنَ لَهُمْ ۖ**

او مو ر نه دى استولى يو رسول مگر په لغت (نو مراد له لسان څخه لغت دى لان اللسان آلة اللغة) د هغه قوم چي دا رسول و هغو ته مبعوث دى يعني ان كان عربياً فعربياً و ان كان اعجمياً فاعجمياً و ان كان سريانياً فسريانياً الى غير ذالک "ليبين لهمم" تا چي رسول ودوى ته بيان ددوى په ژبه وكړي، نو دوى به په پوه سي په اساني سره او رسول به پر دوى حجت ثابت كړي د دوى په ژبه.

**فائده سنيه:** پوه سه! چي رسولان دمخه تر عليه الصلوة والسلام مبعوث وه خاص خاص اقوامو ته په لغت د هغو قومو لكن بعثت د رسول كريم ﷺ و تولو اقوامو ته دى من العرب والعجم الترک والتاجک الى غير ذالک من الاقوام لكن دى مبارک اولاً ماموږ وُ په دعوت د خپل قوم چي عرب وه قال الله تعالى "التنذر ام القرى ومن حولها" وقال ايضاً "لتنذر قوماً ما انذر آبائهم" او دا قوم چي نه وه پيرول سوي آبا ددوى من قبل هم العرب كما لايخفى، نو عليه الصلوة والسلام مبعوث سو بلسان عربي مبين الى اهل الحجاز، او نور خلگ تبع دي د عربو.

ولي چي عربو لـه عليـه الصلوة والسلام څخه دين د اسلام زده کړی او بيا يې و نورو اقوامو ته ترجمه کړی دی. ولهذا قال عليه الصلوة والسلام الناس تبع لقريش في الخير والشر رواه احمد ومسلم في الصحيح عن جابر ﷺ.

معنا د حديث دا ده چي ټوله کفار تبع دي د کفارو د قريشو حيث کفروا اولاً ثم کفر غيرهم. نو پر کفارو د قريشو د ټولو کافرانو گناه ده او مسلمانان ټوله تبع دي د مؤمنانو د قريشو حيث آمنوا اولاً فلهم اجرهم کلهم. کما ورد في الحديث الصحيح الذي رواه جرير ﷺ و اورد مسلم قال قال رسول الله ﷺ من سن في الاسلام سنة حسنة فله اجرها واجر من عمل بها من غير ان ينقص من اجورهم شيئ" که چا وضع کړه په اسلام کي يوه طريقه حسنه. نو واضع لره ددغې طريقې حسنه ثواب د هغې حسنې دی او ثواب د هغه چا چي عمل په طريقه حسنه ده واضع وکړی بيله دې چي عاملينو د حسناتو څخه دي شی کم کړي "ومن سن في الاسلام سنة سيئة فله وزرها و وزر من عمل بها من ان ينقص من اوزارهم شيئ" که چا وضع کړه په اسلام کي يوه طريقه چي بده وه يعني لکه امامان د روافضو او معتزله وو وغيرهم من فرق الضلال. نو دوی لره گناه د هغې بدې طريقې او گناه د هغو کسانو چي ددوی په بده طريقه عمل کوي بيله له دې چي له گناهو څخه د نورو عاملانو دي شيئ ور کم کړي.

**درويش وايي**: چي هم دا سبب دی چي په حديث صحيح کي چي روايت يې بخاري کړی دی چي په هر قتل عمد (ناحقه) کي چي يو څوک يې وکړي تر قيامته پوري قابيل ابن آدم چي خپل ورور هابيل يې ناحقه قتل کړی ورسره شريک دی، وقصة مشهورة غاية الشهرة.

**فائده**: چونکه رسول کريم ﷺ سيد الانبياً دی او خير او اشرف د انبياؤ دی او شريعت دده خير الشرائع کلها وامته خير الامم وافضلهم، کريمه "کنتم خير امة اخرجت للناس الآية" نو خدای ﷻ چي امت دده پر کتاب واحد سره جمع کړی چي په لسان عربي سره الذي هو اشرف الالسنة وسيدها وافضلها وهو لسانه ولسان قومه ولسان اهل الجنة فکان سائر الالسنة تابعاً للسان العربي کما ان الناس تابع العرب.

حاصل د کلام دادی چي لار ښوونه و چا ته نه سي کېدای الا بمعرفة اللسان سوا کان بالذات کما في العرب او بالترجمة کما في غیر العرب، قصة شاهد د لما قلنا. څلور کسان وه عرب، عجم، رومي او تُرکی، نو یو څو درهمه یې په لار کي پیدا کړه دوی چونکه یو د بل په ژبه نه سره پوهېدل، نو ددوی په دراهمو کي اختلاف وُ چي څه شی باید په رانسو، نو یو بل سړی پر راغلی چي دا ژبې یې ټولي زده وې، نو دې سړي عربي ته وویل "ای شیئ ترید" و للعجمي "چه میخواهی" وللترکی "نه استریسین" وللرومي "وټ دو یو وانټ" نو هغه عارف الالسنة پوه سو چي ټول له غواړي چي په دغو دراهمو انګور رانسو چي وه یې خورو. نو هغه سړي ورته وویل چي دراهم راکړئ چي زه شی درله راوړم نو ورغلی انګور یې ورته راوړه، نو اختلاف ددوی دفع سو.

**درویش وایي:** چي علماً صالحین د امت مرحومه په حکم د لیبیّن لهم داخل دي قال رسول الله ﷺ "العلماً ورثة الانبیاً الی اخیره" رواه احمد والترمذي و ابو داوٗد و ابن ماجه والدارمي عن کثیر بن قیس، او د ابو سعید څخه روایت دی چي قال رسول الله ﷺ ان الناس لکم تبع یعني د دین په زدکړه کي وان رجالاً یاتونکم من اقطار الارض. بعض خلګ به تاسي ته راځي له اطرافو څخه د مځکي "یتفقهون في الدین" چي دوی به په دین ځان خبروي "فاذا اتوکم فاستوصوا بهم خیراً" نو چي دوی راسي نو قبول د وصیت وکړي ددوی سره د خیر.

**درویش وایي:** چي مظهري څو روایته له قبول څخه لیري راوړي دي د ابن عباس رضي الله عنهما، او دا هم نه ده معلومه چي ترابن عباس رضي الله عنهما پوري یې سند څرنګه دی او رجال یې څوک دي، چي د هغو حاصل دادی چي ټول له کتابونه د خدای ﷻ په عربي ژبه نازل سوي دي بیا یې ترجمه جبرئیل علیه السلام و هر نبي ته په ژبه د هغه د قوم کړې ده.

**درویش وایي:** چي ما روح البیان، قرطبي او بیضاوي مطالعه کړه هیڅ تعرض یې و دې خبري ته نه و کړی والله اعلم بالصواب. بلکي روح المعاني په تفسیر په لسم جلد ص١٨٦ کي وایي چي ضمیر د "قومه" راجع دی و علیه الصلوة والسلام ته چي له سیاق څخه فهمېږي اخرج ابن ابي عن سفیان الثوري

لم ينزل وحي الا بالعربية كما مر بيا هر نبي و قوم ته خپل بلغتهم ددې قول نسبت وكلبي رحمه الله ته كړل سوى دى وفيه انه اذا لم يقع التبيين الا بعد الترجمة فات الغرض المذكور في قوله تعالى "وما ارسلنا من رسول الا بلسان قومه ليبين لهم الآية لان ضمير قومه راجع الى الرسول وكذالك ضمير ليبين راجع الى رسول وعلى مذهب سفيان الثوري رحمه الله لم يكن الرسول مبيناً لقومه بلسان ما نزل اليه وهو العربية بل مبيناً لهم بترجمة ما نزل اليه وفي الكشاف ان ذالك اى ماقاله سفيان الثوري رحمه الله ليس بصحيح لان ضمير لهم لقوم وهو العرب فيؤدي الى ان الله تعالى انز التورات بلسان العرب ليبين للعرب وهو معنى فاسده وو كي چي موسى عليه السلام تورات خپل قوم ته په خپل ژبه راوړى ؤ لا للعرب بالعربية فافهم انتهى ما قاله السيد الآلوسي في روح المعاني مع زيادة بعض التراجم للعبد العاصي ثم اورد روح المعاني سوالاً وجواباً لا حاجة الى ذكرهما.

**درويش وايي:** چي ما نقلنا عن روح المعاني كاف في رد قول سفيان الثوري والكلبي المذكور سابقاً والمظهري ايضاً لم يرض بالقول المذكور يعني مذهب سفيان الثوري والكلبي حيث قال في الآخير قلت وارجاع الضمير في قومه الى محمد ﷺ بعيد فيابي عنه قوله تعالى ليبين لهم اشارةً الى ما في روح المعاني.

**فائده:** ددې آيت تفصيل له خواصو څخه د تفسير ايوبي دى.

## فَيُضِلُّ اللهُ مَنْ يَّشَآءُ وَيَهْدِىْ مَنْ يَّشَآءُ ؕ

نو خداى جل جلاله خلق د كفر او ضلال كوي په هغه چا كي چي اراده د ضلال يې ورته وسي په سبب د اسبابو مباشره په هغه چا كي چي حب د كفر او ضلال وي او هدايت كوي يعني خلق د هدايت كوي په هغه چا كي چي اراده د هدايت خداى پاک ورته وكړي لاستحقاقه له لما فيه من الانابة والاقبال الى الحق باختياره كذا في روح البيان.

**درويش وايي:** چي پر دغه ترجمه چي جبريه چي دوى بنده مجبور محض بولي په كفر او په ايمان او په طاعت او عصيان كي په دغه آيت سره دليل وايي پر خپل مذهب باطل سره فتفكر فيه لتفهم بطلان استدلالهم.

وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿٤﴾

او خداى ﷻ غالب دى چي ردونكى د قضأ او مشيت دده څوک نسي كېداى او په هر كار او حكم كي خداى ﷻ حكمت لري فضول كار پر خداى پاک محال دى.

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مُوْسٰى بِاٰيٰتِنَآ اَنْ اَخْرِجْ قَوْمَكَ مِنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ۙ وَذَكِّرْهُمْ بِاَيّٰىمِ اللّٰهِ ؕ

(لام موطئه د قسم محذوف دى) موږ استولى دى موسى "بآياتنا" يعني متلبساً بآياتنا من العصا واليد البيضا وباقي معجزاته التسع كمامرت في هذا التفسير "ان اخرج" چي ته وباسه.

**پوه سه**: چي "ان" مفسر دى د "ارسلنا" ولي چي په ارسال معنى د قول سته او وروسته تر قول ان مفتوح دى كما ثبت في النحو او يا ان مصدري دى بتقدير حرف الجر اى باخراج له تاريكيو څخه و نور ته.

**پوه سه**: چي ابن عباس او ابي بن كعب رضي الله عنهم او مجاهد او قتاده في تفسير قوله تعالى "وذكرهم بايام الله" وايي چي مراد له ايام څخه نعمتونه د خداى ﷻ دي، او مقاتل رحمه الله وايي چي مراد له "ايام الله" څخه و قائع د عذاب د خداى ﷻ دي په امم سابقه وو كي كقوم نوح وعاد وثمود، د عربو محاوره ده فلان عالم بايام العرب اى بوقائعهم.

**پوښتنه**: ايام خو ورځو ته وايي، نو څرنګه مراد ځني نعمتونه د خداى ﷻ دي يا عذابونه د امم سابقه وو دي؟

**ځواب**: چونكه دغه نعمتونه يا بلاوي د ورځي پيښېدلي نو ځكه تعبير په ايام ځني وكړى، فالتقدير فذكرهم بما كان في الايام الماضية من النعم او البلايا فتدبر.

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ ﴿٥﴾

په تحقيق په دغو وقائعو كي ډېر دلائل دي پر وجود د صانع او پر قدرت او پر وحدت او پر علم او قدرت او حكمت دده هر هغه چا لره چي كثير الصبر وي پر بلاياؤ او پر طاعت او له معصيت څخه، عرب وايي چي صبر چي متعدي په على سره وي،

نو مراد ځني صبر دی له معصيت څخه لان النفس امارة بالسوء او صبر چي متعدي په کلمه د في وي مراد ځني صبر دی په بلاياوو کي لان البلايا داعية الى الجزع والفزع فلابد من المداوات بالصبر فيها او کثير الشکر وي پر نعمتو د خدای ﷻ.

**فائده**: صبار او شکور دواړي صيغې د مبالغې دي، خدای ﷻ "صبار" او "شکور" له القابو څخه د مؤمن وګرځول تنبيهاً على انه لابد لکل مؤمن ان يوجد فيه هذين الوصفين لکن دا دوه وصفه کامل مؤمن لره دي، بيهقي له انس ﷺ څخه روايت کړی دی الايمان نصفان نصفه في الصبر ونصفه في الشکر، وروی مسلم في صحيحه واحمد عن صهيب ﷺ مرفوعاً عجباً لامر المؤمن ان امره کله خير وليس ذالک لاحد الا للمؤمن (ای الکامل) ان اصابته سراً شکر (ای النعمة) وکان خيراً له (من البطر والکبر) وان اصابته ضراً (ای المرض او الفقر) صبر وکان خيراً له (من الجزع والفزع)

## وَ اِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهِ اذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اِذْ اَنْجٰىكُمْ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ

ای اذکر هغه وخت چي موسى (عليه السلام) قوم ته خپل وويل چي د رپياد کړئ نعمت د خدای ﷻ پر تاسي باندي، مراد له ذکر څخه د نعمت په هر ځای کي د قرآن شکر د هغه نعمت دی چي تاسي ته نجات درکړي.

**پوه سه**: چي لفظ د "اذ" چي ظرف دی متعلق په نعمة الله پوري دی ای بنعمة الله وقت انجاکم له قوم څخه د فرعون په امر د فرعون.

## يَسُوْمُوْنَكُمْ سُوْٓءَ الْعَذَابِ

دا حال دی له آل فرعون څخه، په تهذيب المصادر کي وايي السوم څښانيدن عذاب وخواری انتهى و في البحر العلوم يذيقونکم ويبغونکم شدة العذاب، والسوء مصدر ساً يسوء وهو اسم جامع لجميع الافات، مراد له "سوء العذاب" څخه دادی چي فرعونيانو په امر د فرعون د بني اسرائيلو دلته خادمان د خپلو کورو ګرځولي وې او په نرانو يې سخت سخت کارونه کول ختې يې په کولي د فرعونيانو لپاره يې کورونه په جوړول الى غير ذالک.

وَيُذَبِّحُونَ أَبْنَآءَكُمْ وَيَسْتَحْيُونَ نِسَآءَكُمْ ۚ

دا جملې احوال دي د آل فرعون او یا له مخاطبینو ځخه چي بني اسرائیل دي یا له دوارو ځخه او دوی ذبح کول ستاسي زامن یعني نر اولاد یعني چي صرف به له موره پیدا شوه او ژوندی به یې پرېښولې ستاسي ښځي.

**سوال**: ښځه خو لوی ښځي ته وایي، نو په وخت کي د ولادت خو دوی ته ښځه نه وایي؟

**ځواب**: دا مجاز دی په اعتبار د ما یؤل الیه یعني چي ددوی ځخه به په اتینده کي لوی ښځي جوړېږي فهو من قبیل قوله تعالی في سورة یوسف "اني اعصر خمراً" والحقیقة اني اعصر عنباً.

**پوه سه**: چي چونکه عطف تغایر د معطوفینو غواړي، نو له "عذاب الیم" ځخه غیر د ذبح الابناْ مراد دی، کما قلنا من قبل في تفسیر سوء العذاب. او که واو عاطفه نه وای لکه په سورة بقره او په سورت اعراف کي نو به ذبح الابناْ تفسیر د سوء عذاب وای.

**فائده**: فرعون او فرعونیانو چي ذبح د ابناْ د بني اسرائیلو کولو له دې سببه چي فرعون خوب لیدلی ؤ چي یو عظیم اور له بیت المقدس ځخه راوځي او پر مصر را وګرځي او قبطیان یعني قوم د فرعون ټوله وسوځي او بني اسرائیل سالم پاته سي، نو ده چي کاهنانو ته دا خوب ووایه هغو یې داسي تعبیر ورته وکړی چي په بني اسرائیلو کي به داسي یو مولود پیدا سي چي ستا د ملک د زوال سبب به وګرځي او هم ستا د هلاک، نو فرعون د تدبیر او د عناد لستوني راوغښتل چي د تقدیر الهي دفع او مقابله وکړي لکن ویأبی الله الا ان یتم نوره او ښځي چي یې ژوندی پرېښولې له دې سببه چي د فرعون غرض له نرو سره ؤ کما قال له الکهنة او بل ددې لپاره چي مینځیانې یې وګرځوي او خپل د کورو خدمت په وکړي وقد مرت تمام القصة في تفسیر سورة البقرة فتدبر.

وَفِي ذَٰلِكُم بَلَآءٌ مِّن رَّبِّكُمْ عَظِيمٌ ۝٦

**پوه سه**: چي اصلاً معنی د بلاْ امتحان ده امتحان د خدای پاک ګاهي په خیر

او نعمت سره وي تا چي خلګ شکر وو ايي او ګاهي په مصيبت او عذاب سره وي تاچي خلګ صبر وکړي پر قضاء د خداى پاک کما في قوله تعالى "ونبلوكم بالشر والخير فتنة" نو پر اول تقدير ذالک اشاره و انجا ته ده، المذكور في قوله "اذ انجاكم من آل فرعون آه" والبلاء بمعنى النعمة وعلى التقدير الثاني ذالک اشاره ده و سوء العذاب او يذبحون آه ته والبلاء بمعنى النقمة والعذاب.

**سوال**: څرنګه فعل ددې بلاء و منسوب و خداى ﷻ ته دى؟

**ځواب**: خداى پاک چي فرعونيان قادر کړه پر دې عذاب د بني اسرائيلو او دوى ته يې ډېر وخت مهلت هم ورکړى نو له دې کبله يې نسبت و خداى ﷻ ته وکړى.

وَإِذْ تَأَذَّنَ رَبُّكُمْ لَئِنْ شَكَرْتُمْ لَأَزِيدَنَّكُمْ وَلَئِنْ كَفَرْتُمْ إِنَّ عَذَابِي لَشَدِيدٌ ۝٧

**پوه سه**: چي دا هم قول د موسى عليه السلام دى و قوم ته او معطوف دى پر نعمت والتقدير اذكروا نعمة الله عليكم واذكروا حين تاذن ربكم، که تاسي شکر د نعمت زما وواياست اې بني اسرائيلو يعني ايمان راوړئ او طاعت د نبي خپل وکړئ زه به خامخا هغه نعمت و تاسي ته زياتوم په مقدار او په دوام سره، قالوا ان الشكر قيد للموجود وجلب للمفقود، قال رسول الله ﷺ من اعطي الشكر لم يحرم الزيادة که چا ته شکر ورکړل سو له زيادت څخه نه محرومه کېږي کذا روى عن ابن عباس رضي الله عنهما، او که تاسي ناشکري د نعمت زما وکړئ په تحقيق زما عذاب سخت دى.

**فائده**: معنى د اذان اعلام او خبرول ده لکن چي د باب د تفعل په صيغه يې راوړى ددې لپاره چي په دې اعلام کي ځاى د شک او شبهې نسته لما في خواص ابواب الشافية من ان باب التفعل قد يكون للتكلف والمبالغة كما في قولهم تزهد فلان اى تكلف في الزهد لكن التكلف محال في حقه تعالى فهو محمول على غاية الكمال والمعنى په ياد کړئ هغه وخت چي اعلان وکړى خداى ستاسي

**پوه سه**: چي اصل جزاء د شرط مذکور محذوفه ده، والتقدير لئن كفرتم اعذبكم عذاباً شديداً يعني بسلب النعمة في الدنيا والعذاب في الآخرة لان عذابي لشديد، نو اصل جزاء يې حذف کړه او دليل د جزاء يې په ځاى کي و دراوه.

**پوښتنه:** په صورت کي د شکر يې تصريح په جزا سره وکړه يعني لازيدنکم او په صورت کي د کفران النعمة يې تصريح په جزا سره نه وکړه حکمت يې څه دی؟

**ځواب:** دا عادت د کرامو دی او بل حکمت دادی چي تنبيه پر دې ده چي زياتوالی د نعمت د شکر سره لازم لاينفک دی. او کفران د نعمت موجب د عذاب نه دی بلکې عذاب په مشيت کي د خدای ﷻ دی يعني ان شآ عذب و ان شآ عفي عنه يعني بشرط کون الشاکر مؤمنا کما انعقد عليه الاجماع. بيت:

شکر نعمت نعمتت افزون کند ...... کس زبان بر شکر گفتی چون کند

**فائده:** قوله جمله د لئن شکرتم آه منصوب محلاً مفعول د فعل مقدر ده ای قل لهم لئن شکرتم آه.

**وَقَالَ مُوسَىٰٓ إِن تَكۡفُرُوٓاْ أَنتُمۡ وَمَن فِي ٱلۡأَرۡضِ جَمِيعٗا فَإِنَّ ٱللَّهَ لَغَنِيٌّ حَمِيدٌ ۝٨**

وويل موسی (عليه السلام) يعني بني اسرائيلو ته که تاسي کفر وکړئ او دغه رنګه کفر وکړي هغه څوک چي په مځکه کي دي يعني من الانس والجن او شکر د خدای نه ووايا ست. نو په تحقيق خدای (ﷻ) بې پرواه دی ستاسي له شکر څخه لان شکرکم لايفيد الله ﷻ کمالاً لانه تعالی کامل في ذاته وصفاته ليس له کمال منتظرٌ. او خدای پاک محمود او مستحق د حمد دی حمده احد او لم يحمده. وحاصل الآية چي ضرر د کفر او د ناشکری ستاسي راجع دی وتاسي ته دی ولي چي د مزيد څخه د انعام محرومه سولاست او ځانونه مو و عذاب شديد ته د خدای و سپارله لانه تعالی غني حميد.

**درويش وايي:** چي په حديث صحيح کي چي روايت يې ابو هريرة رضي الله عنه کړی دی "من رزق ستاً لم يحرم ستاً" که چا ته ورکړل سوه شپږ شيان. نو نه به سي محرومه د شپږ شيانو څخه. (١) "من رزق الشکر لم يحرم من الزيادة" کريمه "لئن شکرتم لازيدنکم. (٢) ومن رزق صبراً لم يحرم الثواب لقوله تعالی انما يوفی الصابرون اجرهم بغير حساب" قال المولی الجامي قدس سره السامي.

اگر ز سهم حوادث مصیبتی رسد ت
درین نشیمن حرمان که موطن خطر یست
مکن بدست جزع خرقه صبوری چاک
که فوت اجر مصیبت مصیبت دیگر است

(۳) "ومن رزق التوبة لم يحرمه القبول لقوله جل مجده "وهو الذي يقبل التوبة عن عباده آه" (۴) ومن رزق الاستغفار لم يحرم المغفرة لقوله تعالى استغفروا ربكم انه كان غفاراً" (۵) ومن رزق الدعا لم يحرم الاجابة لقوله تعالى ادعوني استجب لكم" ولي خدای ﷻ د بنده په زړه کي نه وراچوي دعا مگر نه د اجابت لپاره (٦) من رزق النفقة ای في سبيل الله لم يحرم الخلف لقوله تعالى "وما انفقتم من شيئ فهو يخلفه"

**أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَبَؤُا الَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ قَوْمِ نُوحٍ وَعَادٍ وَثَمُودَ ۛ وَالَّذِينَ مِن بَعْدِهِمْ ۛ**

آیا نه دي راغلي تاسي ته، خبر د هغو کسانو او امتو چي تاسي دمخه و قوم د نوح علیه السلام او د عادیانو او ثمودیانو او هغه کسانو چي تردي وروسته وه لکه نمرودیان قوم د ابراهیم و قوم لوط و اصحاب الرس و اصحاب مدین واصحاب الایکة و غیرهم.

**پوهه:** چي له کلام څخه د موسی علیه السلام و بني اسرائیلو ته او استفهام لپاره د تقریر دی یعني راغلي دي، او بعض مفسرین وایي چي دا کلام مستأنف دی او خطاب و امة ته د علیه الصلوة والسلام دی ولا یخفی انه خلاف سیاق الکلام

**لَا يَعْلَمُهُمْ إِلَّا اللَّهُ ۛ**

علم نه پر لري ببله خدایه بل څوک یعني لکثرة عددهم. ابن عباس رضي الله عنهما وایي چي په منځ کي د ابراهیم علیه السلام او عدنان لس قرنه وه لا یعلمهم الا الله، او مالک بن انس رضي الله عنه وایي چي انسان ته دا مکروه ده چي خپل ځان ابآ ابآ تر آدم علیه السلام پوري رسوي لانه خلاف هذه الآیة فافهم.

جَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَرَدُّوْٓا اَيْدِيَهُمْ فِيْٓ اَفْوَاهِهِمْ

چي راتګ کړی ؤ دوی ته رسولانو ددوی په معجزاتو ظاهرتو سره. نو رد کړل کافرانو خپل لاسونه په خپلو خولو کې، ابن مسعود رضي الله عنه وايي عضوا على ايديهم غيضاً دوی په غاښو چيچل خپل لاسونه له ډېره درده له دې سببه چي پر خلاف ددوی د دين چي شرک ؤ رسولانو راتګ په معجزاتو سره وکړی.

**درويش وايي:** چي د هر نبي معجزې په خپل ځای کي ذکر سوي دي.

**درويش وايي:** چي دا عادت تر اوسه جاري دی چي چاته چي درد ورسي خپل لاسونه په غاښوي كما في قوله تعالى "عضوا عليكم الانامل من الغيظ" ورد في المنافقين حيث رؤا ايتلاف الاوس والخزرج الفةً شديدةً بعد الايمان بمحمد عليه السلام مع كون هاتين الطائفتين اعداً فيما بينهما من مئات سنة.

او له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي کفارو چي به کتاب الله واورېدی تعجب به يې وکړی نو به يې رد کړل خپل لاسونه پر خولو يعني لاسونه به يې پر خولو ونيول تعجباً و استهزاء كمن غلب عليه الضحک فيضع يده على فمه. او کلبي رحمه الله وايي چي کافرانو چي به د رسولانو خبري واورېدلې خپل لاسونه به يې پر خوله کېښېنول په دې سره يې اشاره ودې ته کوله چي رسولانو ته يې ويل چي پټه خوله سئ او چوپ سئ دا خبري مه کوئ. او بعض مفسران وايي لکه مقاتل چي کافرانو به لاسونه پر خولو د رسولانو ونيول چي ساکت يې کړي د توحيد له تبليغ څخه.

وَقَالُوْٓا اِنَّا كَفَرْنَا بِمَآ اُرْسِلْتُمْ بِهٖ وَاِنَّا لَفِيْ شَكٍّ مِّمَّا تَدْعُوْنَنَآ اِلَيْهِ مُرِيْبٍ ﴿٩﴾

وويل امتو د رسولانو دوی ته چي په تحقيق موږ کافران يعني منکران يو له هغه شي څخه چي تاسي را استول سوي ياست په هغه يعني التوحيد وعبادة الله وحده وترک عبادت الاصنام وغير ذالک من الشرائع چي هغه موږ په شک کي اچولي يو.

**سوال:** کافران له رسالت څخه د رسولانو منکر وه، نو څرنګه يې بما ارسلتم رسولانو ته وويل؟

**ځواب:** معنی د "ما ارسلتم به" داده على زعمکم.

قَالَتْ رُسُلُهُمْ أَفِي اللَّهِ شَكٌّ

وویل رسولانو ددوی، آیا د خدای په وجود او توحید کي ستاسي شک دی؟
**یوه سه**: چي تانیث د قالت مبني دی پر تاویل د رسلهم بالجماعة فافهم.
**یوه سه**: استفهام لپاره د انکار دی بمعنی لاینبغي الشک بذالک للعاقل، همزه د استفهام یې پر في الله داخل کړی نه پر شک لان الکلام في المشکوک فیه وهو الله دون الشک لان الشک موجود فیهم البتة، و حاصل الآیة چي رسولانو دوی ته وویل چي موږ خو تاسي رابولو و الله وحده ته او دا یو داسي امر دی چي د شک قابل نه دی لدلالة کل شیئ من المحسوسات والمعقولات علی وجوده ووحدته وسائرصفاته الکمالیة قال السعدي الشیرازي.
برگ درختان سبز درنظر هوشیار ..... هر ورقی دفتریست معرفت کردگار

فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ يَدْعُوكُمْ لِيَغْفِرَ لَكُمْ مِّنْ ذُنُوبِكُمْ

(صفت یا بدل دی له لفظ الله ځخه) چي هغه خالق دی د اسمانو یعني سره د ما فیها من الشمس والقمر والکواکب وغیرها او د ځمکي یعني سره د ماعلیها وما فیها من الحیوانات والنباتات والخزائن والذهب والفضة وغیرها، تاسي خدای پاک بولئ وځان ته او و ایمان ته، او یا په بعثت زموږ و تاسي ته تا چي خدای پاک وبخښي و تاسي ته ګنهونه ستاسي.
**فائده**: بعض مفسران وایي چي من زائد دی لقوله عليه السلام الاسلام یهدم ما کان قبله رواه مسلم، او بعض مفسران وایي چي من لپاره د تبعیض دی فان الاسلام یهدم من الذنوب ماکان بینه وبین الله من المعاصي دون مظالم العباد و حقوقهم.

وَيُؤَخِّرَكُمْ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى

او خدای پاک به تاسي وځنډوي تر هغه مدې چي معین کړی یې دی چي اخیر د عمرو ستاسي دی، او ژر به عذاب نه کړي درباندي نازل.
**مسئله**: دا آیت پر دې باندي دلالت کوي چي اصرار پر کفر باندي په حق کي د معذبینو د امم ماضیه سبب وُ د اهلاک ددوی او ددوی په باب کي قضا معلق داسي وه که دوی ایمان راوړی وای لطال اعمارهم.

**درویش وايي**: چي فقیر په "من ذنوبکم" کي کلمه د "من" تبعیضي وبلل او حقوق د عباد او مظالم یې ځنې مستثنی کړه، دا مذهب د روح البیان ؤ لکن روح المعاني ص١٩٦ که څه هم مذهب د تبعیض یې راوړی په کلمه د قیل وروسته یې ویلي دي "والذي صححه المحدثون" په شرح کي د هغه حدیث د مسلم الذي مر عنقریب ان الاسلام یرفع ماقبله مطلقاً حتی المظالم وحقوق العباد واید ذالک بظاهر قوله تعالی في آیة اخری یغفرلکم ذنوبکم بدون کلمة من. ثم قال ومن هذا ذهب ابو عبیدة والاخفش الی زیادة من.

**درویش وايي**: چي روح المعاني ډېر ورډد کلام راوړی دی کما هو عادته والله اعلم بالصواب والمراد في کتابه.

قَالُوْٓا اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا۠

وویل کافرانو و رسولانو ته چي نه یاست تاسي مګر بشر و انسان مثل زموږ په ماهیت او په صورت کي او په اکل او شرب وغیرذالک، نو ستاسي څه فضیلت دی پر موږ باندي چي تاسي دعوی د رسالت د خدای ﷻ کوئ یعني که خدای ﷻ وبشر ته رسول را استولای نو له یو جنس افضل شخصه بې راستولی وای کقولهم لو شاء الله لانزل ملائکة.

**درویش وايي**: چي دا خبره ددوی غایت حماقت ؤ چي الوهیت او معبودیت به پر بتانو روابولي او رسالت چي تر الوهیت ډېره کښته مرتبه ده پر بشر چي تر بتانو ډېر لوړ مقام لري روا نه باله.

تُرِيْدُوْنَ اَنْ تَصُدُّوْنَا عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ اٰبَآؤُنَا فَاْتُوْنَا بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ۝

ستاسي رسولانو دا اراده ده چي تاسي موږ منع کړئ له عبادت څخه د شیانو یعني الاصنام چي زموږ پلرو او نیکه ګانو د هغو عبادت کاوه. تاسي موږ ته راوړئ یو حجت واضحه پر فضل ستاسي او پر استحقاق د رسالت.

**پوښتنه**: هر رسول و خپل قوم ته په معجزاتو ظاهره سره راتګ کړی ؤ فما وجه قولهم "فأتونا الخ"؟

**ځواب:** دوی خو هغه ومعجزات سحر بالـه او تعنتاً او عناداً یې نورې معجزاتې غوښتې لکه رسول کریم ﷺ شق القمر او کلمه د توحید د حصاتو په لاس کې د ابو جهل یې سحر باله. بعضو به ورته ویل چې معجزه د عصا موسی او ید بیضا وغیرهما معجزه راته رواړه او بعض به ویل چې د صفا غر راته سره زر وګرځوه او بعضو به ویل چې د مکې ځکه غرونو اشغال کړي ده دا غرونه ایسته کړه چې د مکې ساحه فراخه سي الی غیر ذالک من اقتراحاتهم.

قَالَتْ لَهُمْ رُسُلُهُمْ إِنْ نَّحْنُ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ

وویل دوی ته رسولانو ددوی چې هو صحیح ده چې موږ نه یو الا بشر لکه تاسي لکن مثلیت په بشریت خو مستلزم عدم رسالت لره زموږ نه دی.

وَلَٰكِنَّ اللَّهَ يَمُنُّ عَلَىٰ مَن يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ ۖ

لکن خدای پاک احسان کوي له هغه چا سره چې د خدای پاک اراده ورته وسي له خپلو بندګانو څخه په نبوت او یا په فضائلو سره یعني رسالت موهبي او فضل الهي رتبه ده په مشیت پوري د خدای ﷻ مربوطه ده اشتراک الجنس یې مانع نه دی.

وَمَا كَانَ لَنَا أَن نَّأْتِيَكُم بِسُلْطَانٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ ۚ

او نه ده صحیح او نه ده ممکنه موږ لره راتګ په معجزاتو سره په خپل اختیار او طاقت سره حتی چې ستاسي اقتراحي معجزاتي درته راوړو بلکې معجزات مربوط او مشروط په اراده پوري د خدای ﷻ دی نو هر نبي ته یوه نوع د معجزاتو ورکوي چې په صحت د دعوی د نبوت دده کافي وي.

**درویش وایي:** چې غالب عادت د خدای ﷻ جاري دی په دې سره چې په هره زمانه کې یو کار او صنعت په خلګو ډېر جاري وي او خلګ ډېر مهارت پکښې لري ظاهراً د هغه صنعت و نبي ته د هغه وخت ورکوي تاچه په هغه ماهرانه کار او صنعت کې پر خلګو غالب سي مثلاً په زمانه کې د بعثت د موسی علیه السلام په عمالقه قوم فرعون کې سحر او جادو ډېر شهرت درلودی چې یو شی له خپل ماهیت څخه علحدهٔ د خلګو په نظر ورکاوه.

**درویش وايي:** چي لکه زموږ په زمانه کي هم ورته کسان سته. نو خدای ﷻ د موسی علیه السلام لوی معجزې د هغه سحر او جادو له مثل څخه وګرځولې یعني عصا او ید بیضا که څه هم د موسی علیه السلام نهه معجزې وې فوقتاً فوقتاً خدای ﷻ ورکړې هغه د چي خدای پاک موسی علیه السلام پر اوویا زره ساحرانو غالب وګرځاوه او هغو ټولو ایمان راوړی. او د عیسی علیه السلام په زمانه کي طبابت او ډاکټري ډېر شهرت درلودی. نو خدای پاک د عیسی علیه السلام ته معجزه د احیا الموتی، ابرا الاکمه والابرص ورکړه چي دا دې معجزې له دائرې څخه د قدرت د طبیبانو خارج وې او عیسی علیه السلام پر ټولو غالب سو. او د رسول اکرم ﷺ په زمانه کي بلاغت او فصاحت او اشعارو ډېره ډېره لویه چرچه وه کما یشهد به کتاب سبع معلقات چي د اوو شاعرانو قصیدې پکښي درج دي چي یو د بل له سیالی څخه یې جوړي کړي وې چي هغه کتاب اوس هم موجود دی او په بعض مدارسو کي په نظام درسي کي داخل دي او نهایت سخت کتاب دی چي د هر ملا او عالم یې درس له طاقته نه دی پوره. مقوله: انجیر خوردن نه کار هر مرغیست.

نو د علیه الصلوة والسلام تر ټولو لویه معجزه چي باقي قر الازمان و مر الدهور به وي قرآن عظیم الشان معجزه وګرځول او په هغه کتاب بلاغت مآب کي خدای ﷻ اعلان وکړی "ان کنتم في ریب الی اخیر الآیة" لکن سره د هغه بلغا د عدنان او فصحا د قحطان یې له مقابلې څخه پاته راغله او عاجزه سوه. دا وه توضیح په مناسبت د دې مقام د درویش عاصي له خوا ومن الله التوفیق.

# وَعَلَى اللهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ ⑪

او خاص پر خدای ﷻ دې توکل او اعتماد کوي مؤمنان.

**بوه سه:** چي په دې آیت کي لا ښوونه ده "ومن آمنوا بالرسل واتبعوهم بالصبر على اذى الكفار والتوكل على الله في معاندة الاعدا لان الايمان بالله يقتضي التوكل عليه تعالى" ولي چي د مؤمن چي دا عقیده وي چي خالق د خیر او د شر خدای ﷻ دی. او ضار او دافع هم خدای ﷻ دی او معطي او مانع هم خدای ﷻ دی الواحد القهار لاغیره نو پر ده لازمه ده چي تفویض د ټولو امورو خپل و خدای ﷻ ته وکړي لاغیره.

**بوه سه:** چي توكل منافي د اسبابو سره نه دى ولي چي عليه الصلوة والسلام په خپل غزوات كي د آلات د حرب حسب الطاقة برابرولو، ع: كشت كن پس تكيه برجبار كن.

وَمَا لَنَآ أَلَّا نَتَوَكَّلَ عَلَى ٱللَّهِ وَقَدْ هَدَىٰنَا سُبُلَنَا ۚ وَلَنَصْبِرَنَّ عَلَىٰ مَآ ءَاذَيْتُمُونَا ۚ وَعَلَى ٱللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ ٱلْمُتَوَكِّلُونَ ﴿١٢﴾

او څه سبب او باعث دى موږ لره چي توكل به نه كوو پر خداى ﷻ. او په تحقيق موږ ته خداى ﷻ د لارو زموږ چي موږ يې په دې پوه كړي يو چي كارونه ټوله په قدرت كي د خداى ﷻ دي او زموږ پر دې هم ايمان دى فلا مانع للتوكل عليه تعالى بل الداعي اليه موجود وهو هدايته تعالى ايانا، او موږ مؤمنان صبر كوو پر ازار ستاسي ايها الكفار موږ لره او خاص پر خداى ﷻ دي توكل كوي مؤمنان.

**پوښتنه:** په آيت د تكرار د توكل څه حكمت دى؟

**ځواب:** په اول آيت مراد ايجاد د توكل دى او په دوهم آيت كي مراد ثبات پر توكل دى، او بل ځواب دادى چي توكل حقيقي پر خداى ﷻ د هر شاق او سخت امر دى فلهذا كرره الله عزوجل مرة بعد اخرى.

**درويش وايي:** چي يوه فائده د توكل پر خداى ﷻ داده چي هر مصيبت كه په نفس كي وي او كه په مال كي او كه په اولاد كي وي پر سړي آسان ګرځي، او بله فائده يې داده چي توكل على الله په جهاد كي د كفارو سره و مؤمن ته ډاډ ګېرنه په برخه كوي الى غير ذالک من الفوائد.

وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لِرُسُلِهِمْ لَنُخْرِجَنَّكُم مِّنْ أَرْضِنَآ أَوْ لَتَعُودُنَّ فِى مِلَّتِنَا ۖ

او ويل به هغه كسانو چي كفر يې كاوه، يعني هري ډلې ددوى و رسولانو ته چي دوى په له رسالت څخه د هغو منكر وه "لام موطئه د قسم محذوف دى يعني قسم په خداى ﷻ دى چي يو ددې دوو كارو به حتماً تاسي كوئ" يا موږ تاسي د خپلې ځمكي څخه فرار كوو، او يا راوګرځئ زموږ ملت او دين ته چي شرک دى.

**سوال:** د عود معنى خو داده چي بيا به موږ ته عود كوئ لكه پخوا چي زموږ په دين كي واست، او سره ددې چي رسولان خو هيڅ وخت ددوى په دين كي نه وه؟

**ځواب:** دلته عود پر خپل معنی نه دی بلکې په معنی د لتصیرون تاسي به داخلېږئ زموږ په دین کي. او بل ځواب دادی چي "لتعودن في ملتنا عام" دی رسول او مؤمنانو ته. نو تغلیب یې ورکړی و مؤمنانو ته پر رسول باندي او مؤمنانو خو دمخه تر ایمان ددوی پر دین وه. او بل ځواب دادی چي کلمه د او بنا پر توزیع ده یعني هغه څوک چي زموږ ملت نه راګرځي لکه رسولان هغه موږ له وطنه باسو او هغه څوک چي زموږ دین ته بېرته راسي هغه موږ په وطن کي پرېږدو.

فَأَوْحَىٰٓ إِلَيْهِمْ رَبُّهُمْ لَنُهْلِكَنَّ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿١٣﴾

نو وحي وکړې و رسولانو ته رب ددوی چي هر آئينه به موږ هلاکوو ظالمان چي د رسولانو د قوم کافران وه.

وَلَنُسْكِنَنَّكُمُ ٱلْأَرْضَ مِنۢ بَعْدِهِمْ

او موږ به سکونت او اوسېده درکوو و تاسي ته سره د خپلو اتباعو مؤمنانو په ځمکه کي یعني د کافرانو وروسته تر دوی یعني تر هلاک ددوی.

ذَٰلِكَ لِمَنْ خَافَ مَقَامِى وَخَافَ وَعِيدِ ﴿١٤﴾

دغه وعده چي رسولانو ته به وحي وسوې چي عبارت له اهلاک څخه د کافرانو ده، او مسلط والی د مؤمنانو دی پر ځمکه د کافرانو د هغه چا لپاره دی چي ببرېږي په قیامې څخه په حضور کي د رب العزت په ورځ د قیامت او ببرېږي له عذاب څخه زما.

**پوه سه:** چي کسره د دال عوض د مضاف الیه ده ای وعیدي، او بعض قاریان يې په اثبات د یا' وايي لکن په حال د وصل په ما بعد سره فقط او له عذاب څخه مراد عذاب موعود د کافرانو دی.

**پوه سه:** چي مؤمنان ټول په لمن خاف آه کي داخل دي.

وَٱسْتَفْتَحُوا۟ وَخَابَ كُلُّ جَبَّارٍ عَنِيدٍ ﴿١٥﴾

او طلب د فتح وکړی، او په خسران کي واقع سو او په هلاک کي هر جبار متکبر علی الله او معاند د حق دین د توحید.

**پوه سه**: چي په "واستفتحوا" كي سين او تا لپاره د طلب دي، نو كه مصدر د دغه لفظ فتح وي نو معنى يې داده چي رسولانو طلب د فتح وكړى پر خپلو اعدا كافرانو باندي او كه مصدر يې فتاحه وي په معنى د قضاوة نو د قبيلې د هغه آيت دى "ربنا افتح بيننا وبين قومنا بالحق"

**پوه سه**: چي دا جمله عطف ده پر "اوحى باندي" او ضمير د جمع راجع دى و انبيا ته. يعني چي له ايمان څخه د قوم نا اميده سوه، نو دوى به خداى ﷻ ته خواست د فتح او عذاب وكړى د قوم لپاره لكه نوح عليه السلام چي وويل "رب لاتذر على الارض من الكافرين ديارا" يا لكه موسى عليه السلام چي خواست وكړى "ربنا اتيت فرعون وملائه الى قوله اطمس الآية" او ابن عباس رضي الله عنهما او مقاتل رحمه الله وايي ضمير د جمع كفارو ته راجع دى كما قال كفار مكة اللهم ان كان هذا هو الحق من عندك فامطر علينا حجارة من السما آه" يعني موږ حق دين د محمد عليه السلام نه منو، نو كه دا دين حق وي نو پر موږ د ډبرو باران وكړې وهذا اظهار غاية الانكار. او بعض مفسرين وايي چي ضمير د جمع مؤمنانو او كافرانو دواړو ته راجع دى، ولي خو دواړې ډلي خپل ځانونه پر حق بولي او دواړو ډلو به ويل اللهم انصر المحق منا واهلك المبطل، وكل حزب بما لديهم فرحون.

**حكايت**: امام دميري رحمه الله په حيوة الحيوان كي وايي چي امام ماوردي رح په خپل كتاب كي په نامه د ادب الدنيا والدين كي وايي چي يوه ورځ وليد بن يزيد بن عبد الملك بن مروان په قرآن مجيد خپل د ځان لپاره فال واچاوه، نو دا آيت په فال كي راغلى "وخاب كل جبار عنيد" نو قرآن مبارك يې توك توك كړى او دا دوه بيته يې هم وويل:

اتوعد كل جبار عنيد ........... فها انا ذاك جبار عنيد
اذا ما جئت ربك يوم حشر ........... فقل يا رب مزقني الوليد

نو لږ ورځي وروسته دا وليد ووژل سو د خپل دښمن له خوا شر قتلة او سر يې ځني پرې كړى اول يې دده د قصر پر بام وځړاوه او بيا يې د ښار پر دېوال انتهى.
په انسان العيون كي وايي چي مروان سبب د قتل د عثمان رضي الله عنه دى او

عبد الملك د مروان زوی سبب د قتل د عبد الله بن الزبیر ﷺ ؤ. و وقع من الولید بن یزید بن عبد الملک الامور الفظیعة انتهی.

په روح المعاني کې وايي چې رسول اللهﷺ په خوب کې بن امية په صورت کې د بیزوګانو لیدلي وه فقال علیه السلام ویل لبني امیة ثلاث مرات، او په بني امیه وو کې د خیر او د صلاح سړی ډېر کم پیدا سوی دی، څه وخت چې ابو مسلم خراساني پر بن امیه حمله وکړه. نو حکمت یې بني العباس قبیلې ته وسپاره انتهی.

**درویش وايي**: چې تفصیل ددې خبرو دې په سیر او تواریخو کې مطالعه کړل سي.

**مِّن وَرَآئِهِۦ جَهَنَّمُ وَيُسْقَىٰ مِن مَّآءٍ صَدِيدٍ ﴿١٦﴾**

و مخ ته دده جهنم دی لکه دی چې پر غاړه ولاړ دی په دنیا کې او دوږخ ته مبعوث دی په اخرت کې، او بعض مفسرین وايي چې من ورائه ای وراً حیوته ای بعده. ابو عبیده وايي چې لفظ د وراً له اضدادو څخه دی یعني پر دوه ضده یې اطلاق کېږي القدام والخلف، او په ده ځینبل کېږي. (دا فعل عطف دی پر محذوف تقدیره من ورائه جهنم یلقی فیها ویسقی)

**پوه سه**: چې "صدید" عطف بیان د ما دی. او صدید هغه ما مانده نجس بدبوی اوبو ته وايي چې د دوږخیانو له پوستو څخه او ددوی له نـو څخه راوځي او نونه او ویني سره ګډ وي، نو پر دوږخیانو چې غایت تنده غلبه وکړي، نو دغه اوبه ورکول کېږي، ددوی بد ځني وکړل سي او چې بنه یې ورنږدې کړي مخان یې ورکباب کړي او د پوستکي پکښې واقع سي حتی چې د غایت مجبوري د تندې یې وځینبي کلمې یې ور توته توته کړي تر دبره یې راووځي. وفي موضع آخر من القرآن "وسقوا ماءً حمیماً فقطع امعائهم الآیة"

**يَتَجَرَّعُهُۥ وَلَا يَكَادُ يُسِيغُهُۥ وَيَأْتِيهِ ٱلْمَوْتُ مِن كُلِّ مَكَانٍ وَمَا هُوَ بِمَيِّتٍ**

په تکلیف یې ځینبي هغه هم غړپ غړپ لغایة تنته (وهو صفت لما او یا حال دی له ضمیر څخه د یسقی) قریبه نه ده چې تر ستوني دې تېر سي فکیف

يسد عطشه (والسوغ في اللغة تيرى د مشروب دى تر حلق په اسانئ سره مع طيب النفس) او ده ته راځي مرګ يعني اسباب د مرګ من انواع العذاب له هر طرف څخه دده د جسد لأن النار محيطة به من جميع الجوانب. او نه دی دوزخي چې مړ دي سي او په استراحت دي سي له عذابه څخه.

وَمِنْ وَّرَآئِهٖ عَذَابٌ غَلِيْظٌ ﴿۱۷﴾

په مخ کې دده يا وروسته عذاب دی سخت او اشد د مخه تر ذکر سوي عذاب وهو الخلود في النار. او فضيل بن عياض وايي چې عذاب غليظه دادی چې ددوی نفسونه بند سي ساه يې نه پورته کېږي او نه کښته کېږي. له دې سببه په خپه وژل چې صلب يې بولي اشد دی له انواعو څخه د مرګ.

**درويش وايي:** چې د عذاب د دوزخ عصمنا الله منه له دې حديث څخه ښه معلومېږي چې عليه الصلوة والسلام وايي چې له خدای ﷻ له خوا څخه ملک و يو سپک ته عذاباً من اهل النار ووايي چې که تولره ما في الارض ستا وای تا به په فديه ددې عذاب ورکاوه دی ورته ووايي نعم هو. نو دا هغه اخف عذاباً دی الی اخير الحديث.

مَثَلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ اَعْمَالُهُمْ كَرَمَادِ ِۨاشْتَدَّتْ بِهِ الرِّيْحُ فِيْ يَوْمٍ عَاصِفٍ ؕ

او حال چې لکه مثل دی په غرابت کې د هغو کسانو چې کفر يعني انکار د وحدانيت څخه ددوی د خدای ﷻ يې کړی ؤ. عملونه ددوی لکه ايرې ("اعمالهم" مبتدأ ده "کرماد" يې خبر دی او دا جمله مستأنفه ده لپاره د بيان د حال ددوی) چې سخت سي پر هغو ايرو باندي باد يعني چابک پورته کړي له ځايه څخه په هغه ورځ چې تند باد پکښې وي.

**يو ه سه:** چې "مثل الذين" مبتدأ ده خبر يې محذوف دی ای فيما يتلی عليکم.

**يو ه سه:** چې عاصف خو اصلاً صفت د باد دی لکن په نظم کې د قرآن يې صفت د يوم ګرځولی دی چې ظرف د باد مبالغةً في شدة هبوبه کقولهم نهاره صائم وليله قائم.

**پوه سه:** چي مراد له اعمالو څخه د کفارو هغه عملونه دي چي ددوی په گمان به حسنات وه او دوی به د حسن الثواب زعم کاوه لکه صدقه، صلة الرحم، عتق الرقاب ونحو ذالک.

**درویش وایي:** چي له دې قسمه څخه دي خیریه مؤسسې د کافرانو چي د مسلمانانو و کونډ یانو او یتیمانو ته مالونه را استوي یا د مسلمانانو د وطنو تعمیر کوي یا سړکان وربخوي الی غیر ذالک من الحسنات لکن لما کانت علی غیر شرط الحسنات وهو الایمان فهي ایضاً کرماد اشتدت آه.

**فائده:** چونکه اعمال د کفارو اساس محکم نه درلودی وهو معرفة الله والایمان به بالتوحید وغیره من صفات الکمال، نو ځکه خدای ﷻ شان په رماد آه سره ووایه.

لَا يَقْدِرُوْنَ مِمَّا كَسَبُوْا عَلٰى شَيْءٍ ذٰلِكَ هُوَ الضَّلٰلُ الْبَعِيْدُ۝

قدرت نه لري کافران په ورځ د قیامت پر یوشي د عملو خپل چي دوی په دنیا کي کول من الحسنات یعني پر ثواب د هغو، ولي هغه عملونه ددوی لعدم شرطها وهو الایمان لغوه عندالله، او دغه ضلال ددوی سره ددې چي دوی ځانونه محسنون بلله لویه گمراهي ده بعید عن الحق بمراحل لکونها مبنية علی شرک والکفر.

**درویش وایي:** چي دا چي حال د حسناتو ددوی دی فکیف حال سیئاتهم من القتل وسجود الاصنام والسرقة وغیرها. طبراني د ام سلمه رضي الله عنها څخه روایت کړی دی چي حارث بن هشام رضي الله عنه چي د ابوجهل بن هشام ورور ؤ علیه الصلوة والسلام په حجة الوداع کي ؤ نو ده وویل یا رسول الله ته خلگ باعثه کوې پر وصیله رحمي باندې او پر احسان د همسایه او کومک مالي اونفقې د یتیمانو، او پر مهمان نوازي او پر اطعام د مسکین دا ټوله خویونه خو په هشام کي وه یعني چي ده پلار ؤ فما ظنک به یا رسول الله؟ علیه الصلوة والسلام ورته وویل کل قبر لایشهد صاحبه ان لا اله الا الله فهو جذوة من النار، یعني ستا پلار مشرک ؤ نو قبر يې ځای د اور دی الی اخیر الحدیث. او په بل روایت کي راغلي دي چي علیه الصلوة والسلام ته مینځیانې د طی د قبیلې راوستل سوې، په هغو کي

يوې مينځې عليه الصلوة والسلام ته وويل يا محمد كه ستا خوښه وي ما خوشي كړه او قبائل د عربو زما په سبې (مينځتوب) مه خوشاله كوه فاني بنت سيد قوم طى. زما پلار مسكينانو ته ډوډى وركوله او وږي يې مړول او افشا د سلام يې كوله او طالب د حاجت يې هيڅ كله جواب كړى نه دى "انا بنت حاتم طى" يعني چې په ټوله نړۍ كې د تاريخ په پاڼو د حاتم طائي د سخاوت نوم درج دى، نو عليه الصلوة والسلام ورته وويل يا جارية هذه صفة المؤمنين حقاً كه چېرې ستا پلار مشرك نه واى مونږ به دعا د رحمت الهي ورته كړې واى. او مسلمانانو ته عليه الصلوة والسلام وويل چې دا ښځه خوشې كړئ فان اباها كان يحب مكارم الاخلاق والله يحب مكارم الاخلاق په يوه روايت كې راغلي دي چې عليه الصلوة والسلام په ليلة المعراج كې چې معاينه د دوزخ يې كوله يو سړى يې په دوزخ كې وليدى چې اور يې بدن نه مسه كاوه، نو عليه الصلوة والسلام پوښتنه وكړه چې دا سړى چې په دوزخ كې دى او اور يې نه مسه كوي څوك دى؟ فقال جبرئيل وويل هذا حاتم طى صرف الله عنه عذاب جهنم بسخائه وجوده.

كنون بر كف دست نه هرچه هست ..... كه فردا بدندان گزى پشت دست
مگردان غريب ازدرت بى نصيب ..... مبادا كه گردى بدرها غريب
نه خواهنده بر در ديگران ..... بشكرانه خواهنده از درمران
بريشان كن امروز گنجينه چست ..... كه فردا كليدس نه دردست تست

**حكايت:** عبدالله بن جدعان چې د حضرت عائشې رضي الله عنها د اكا زوى ؤ په ابتدا كې د امر ډېر مسكين ؤ او سره د هغه ډېر شرير او جنايت كار سړى ؤ، هر جنايت چې به يې وكړى پلار او قوم به يې فديه او تاوان وركاوه اخير الامر د ډېرو جناياتو په سبب پلار او قوم ځنې بېزاره سوه او خواب يې وركړى، نو دى سر گردان د مكې په غرو كې گرځېدى او تمنى د مرگ يې درلوده، اخير يې يو غار په غره كې د شپې وليدى نو يې دا خيال سو چې په دې غار به ننوځې خودكشي به وكړې، غار ته چې ورنژدې سو له غار څخه يو مار چې سترگې يې لكه څراغ رڼا يې درلوده پر راووتى عبدالله بن جدعان را تر شا سو مار بيرته په غار ننوتى

دی د پر حیران سو چي دې مار ولې پر تا حمله ونه کړه، بیا چي غار ته ورننوځي سو مار بیا مې راووتی بیا دی ځني ترشا سو مار بیرته په غار ننوتی څو واره چي یې دا تجربه وکړه نو یې یقین سو چي دا مصنوعي کار دی. نو مار ته یې ورحمله کړه ټینګ یې کړی هغه د سرو زرو مار ؤ په سترګو کي یې یاقوت ور اېښي وه. نو یې مار ټکړه ټکړه کړی. نو یې په غار کي د ډېرو باداشاهانو مجسمې ولیدلې او په دې غار کي ډېر اموال سره زر، سپین زر، یاقوت او قیمتي قیمتي ملغلرې پیدا کړې او په دې لو په خزانه کي یې یوه تخته پیدا کړه چي پر تخته نوشته وه. انا فضیلة بن جرهم بن قحطان بن هود نبي الله. پینځه سوه کاله عمر ما ته خدای راکړی ؤ او په دې پینځه سوه کاله کي ما ظاهر او باطن د مځکي ولټوی حتی چي دغه خزائن او اموال مې سره جمع کړه لکن مرګ نجات نه کړی را..... سعدي شیرازي رحمه الله:

جهان ای پسر ملک جاوید نیست ...... ز دنیا وفاداری امید نیست
نه بر باد رفتی سحرګاه وشام ...... سریر سلیمان علیه السلام
بآخر ندیدی که بر باد رفت...... خنک آنکه باداش وداد رفت

خیر عبد الله بن جدعان شپه هورې سهار کړه او څه سره زر او سپین زر یې راواخستل او پلار ته یې ورکړه چي زما د جنایاتو فدیه ورکړه او بیا یې څه مال راوړی د قبیلې په خلګو یې تقسیم کړی حتی چي د قبیلې رئیس ومنل سو، سم له لاسه یې د خزانې پیسې سره زر او سپین زر او غیبان راوړل اخیر یې لاس په سخاوت پوري کړی عام او خاص ته یې فراوان دوډۍ ورکوله. نو حضرت عائشې رضي الله عنها وویل یا رسول الله ان ابن جدعان كان في الجاهلية يصل الرحم ويطعم المسكين فهل ينفعه ذالک يوم القيامة؟ فقال ﷺ لا لانه لم يقل يوماً يارب اغفر لي خطيئتي يوم الدين. يعني مات على الشرک كذا في انسان العيون.

**أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِالْحَقِّ**

آيا ته نه ګورې (الخطاب لغير معين من الكفار خصوصاً كفار قريش) چي خدای ﷻ پيدا کړي په خپل قدرت بلا نهايت سره اسمانونه اوو (پر نظام

محکم سره د ما فيها من الشمس والقمر والنجوم وغيرها او مخکه سره د ما عليها من الحيوانات والنباتات والاشجار والثمرات وغيرها من الفلذات والجواهرات) په حق سره يعني بالحكمة البالغة مشتملاً على المنافع الكثيرة الدالة على وجود الصانع وتوحيده.

**يوه سه:** چي مراد له نظر څخه د عبرت او تأمل عميق نظر دی کما لا يخفى. او يا مراد له رؤيت څخه رؤيت علمي دی.

**درويش وايي:** چي روح البيان وايي چي خطاب د "تر" و عليه الصلوة والسلام ته دی او مراد د امت دعوت دده دی يعني چي کافران دي نه امت اجابت چي مؤمنان دي آه. ولا يخفى انه تکلف شايد باعث د روح البيان پر دې تفسير دادی چي کلمه د "تر" مخاطب مفرد ده، نو خطاب و ټولو کافرانو نسي کېدای لکن درويش د هغه دفع په ترجمه کي د آيت وکړه بقوله الخطاب لغير معين. وحاصل ان افراد الخطاب بتأويل كل من يصلح للخطاب من الكفرة والدليل على ما قلنا قوله تعالى:

إِن يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ وَيَأْتِ بِخَلْقٍ جَدِيدٍ ﴿١٩﴾

که د خدای (ﷻ) اراده سي تاسي به نيستي او هلاک کړي او ستاسي په عوض کي به نوی مخلوق پيدا کړي.

**درويش وايي:** چي دا خطاب خو بيلا ريب و کافرانو ته دی فافهم وخذ ما صفا ودع ما كدر والله اعلم بالصواب.

**درويش وايي:** چي صاحب د روح المعاني دواړه مسلکه راوړي دي يعني الخطاب لسيد المخاطبين ﷺ والمراد امته کمامر عنقريب والخطاب العام کما اشرنا اليه.

وَمَا ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ بِعَزِيزٍ ﴿٢٠﴾

او نه دی دا اهلاک ستاسي او اتيان په خلق جديد سره پر خدای ﷻ باندي متعذر او ګران فانه تعالى قادر لذاته لا اختصاص له بمقدور دون مقدور، نو عاقل سړي لره په کار دی چي د داسي مقتدر خدای ﷻ عبادت او اطاعت وکړي په اميد د ثواب، او عصيان او سرکښي ونه کړي خوفاً من عقابه.

وَبَرَزُوا لِلّٰهِ جَمِيعًا

دوی به ښکاره سي يعني له قبر څخه به راووځي په ورځ د قيامت لپاره د امر او د حساب د خدای ﷻ.

**سوال**: دا بروز د خلگو خو په مستقبل کي د زماني راتلونکي دی نو تعبير په ماضي چي برزوا د څه حکمت لپاره وکړل سو؟

**ځواب**: هر کار چي په مستقبل کي متيقن الوقوع وي لکه ورځ د قيامت هغه لکه ماضي په سبب د تيقن ومثل هذا کثير في القرآن کما لا يخفی.

فَقَالَ الضُّعَفٰٓؤُا لِلَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْٓا اِنَّا كُنَّا لَكُمْ تَبَعًا

نو و به وايي ضعيفان "الضعفاء" جمع د ضعيف ده يا مراد دادی چي ضعيف الحال وه په دنيا کي. يعني مال او شتمني يې نه درلوده. او يا مراد دادی چي ضعيف العقل والرای وه. و هغو کسانو ته چي تکبر يې کاوه پر خلگو چي د ضعيفانو رئيسان او دوی يې له متابعت څخه د رسولانو منع کول. موږ خو ستاسي تابعان ؤ يعني کفر او عصيان د رسولانو موږ ستاسي په متابعت کاوه.

**پوه سه**: چي "تبعاً" جمع د تابع ده لکه حرس جمع د حارس ده.

فَهَلْ اَنْتُمْ مُّغْنُوْنَ عَنَّا مِنْ عَذَابِ اللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ

آيا تاسي نسئ دفع کولای زموږ څخه عذاب د خدای ﷻ يو څه که څه هم لږ وي.

**پوه سه**: چي اول "من" لپاره د بيان دی واقع په ځای کي د مفعول به دی، والتقدير هل انتم دافعون بعض شيئ کائناً من عذاب الله.

قَالُوْا لَوْ هَدٰىنَا اللّٰهُ لَهَدَيْنٰكُمْ

"قالوا" ای المنکرين په ځواب کي د سرزنش د اتباع او عذر ددې وايي چي موږ تاسي کفر ته دعوت درکاوه، که خدای (ﷻ) موږ ته هدايت و ايمان ته راکړي وای موږ به تاسي ته دعوت د ايمان درکړی وای لکن موږ په خپله گمراهان وو، نو تاسي ته به مو هم دعوت د گمراهی درکاوه، والحاصل اخترنا لکم ما اخترنا لانفسنا من الکفر والضلال.

سَوَآءٌ عَلَيْنَآ أَجَزِعْنَآ أَمْ صَبَرْنَا مَا لَنَا مِن مَّحِيصٍ ﴿٢١﴾

برابر ده په مونږ يعني المتبوعون والتابعون كه مونږ جزع او فرياد وكړو او صبر و امر ته د خداى ﷻ وكړو. نشته مونږ لره ځاى د نجات او تېښتي، بعض مفسران وايي چي دا جمله قول د رئيسانو د كفر دى او صحيح داده چي دا مقوله د دوارو فريقينو ده. مقاتل رحمه الله وايي چي دواړي ډلي كه متبوعان كه تابعان دي په دوږخ كي سره و وايي چي راسئ چي جزع او فرياد شروع كړو شايد خداى به رحم راباندي وكړي. نو پينځه سوه (٥٠٠) كاله جزع وكړي لكن فائده ونه كړي. بيا سره ووايي چي راسئ صبر وكړو لان الصبر مفتاح الفرج لكه مؤمنانو چي په دنيا كي صبر پر طاعاتو د خداى ﷻ كړى ؤ. نو پينځه سوه كاله صبر وكړي هغه هم نتيجه ورنه كړي فعند ذالک يقولون سواء علينا الآية.

په تفسير مظهري كي وايي چي كافرانو چي دا خبره وكړه "ما لنا من محيص آه" ابليس ولاړ سو دوى ته يې خطبه وويل او داسي يې وويل ان الله وعدكم وعد الحق ووعدتكم فاختلفتكم، وما كان لي عليكم من سلطان (ما درواغ درته وويل چي نه بعث شته او نه عذاب. يعني تسلط ما نه درلودى پر تاسي) الا ان دعوتكم فاستجبتم لي فلا تلوموني ولوموا انفسكم (دا استثنا منقطع ده، ما تاسي ته صرف دعوت بې دليله دركړى تاسي د دعوت قبلونه وكړه زما، ما مه ملامتوئ بلكې خپل ځانونه ملامت كړئ يعني چي زما بې دليله درواغ مو ومنل) فلما سمعوا مقالته مقتوا انفسهم فنودوا لمقت الله اكبر من مقتكم انفسكم اذ تدعون الى الايمان فتكفرون (دوى د ابليس دا خبره واورېدل خپلو ځانو ته په غضب او ملامتيا سوه. دوى ته ندا وكړه سوه له جانبه د خداى ﷻ په واسطه د ملكي چي غضب د خداى پاک لوى دى تر غضب ستاسي پر خپلو ځانو باندي هغه وخت چي تاسي ته دعوت دركړل كېدى و ايمان ته يعني په واسطه د انبياء عليهم السلام او تاسي كفر كاوه) فنادوا الثانية ربنا ابصرنا وسمعنا فارجعنا نعمل صالحاً انا موقنون (دوهم وار دوى ناري كړي يعني خداى ﷻ ته اې زموږ ربه صونږ وليدى بعث بعد الموت يعني چي په دنيا كي ځني منكر ؤ او وامر

وربدله مخاطبه ستاسي، موږ بيرته و دنيا ته رد کړئ موږ به عمل صالح وکړو او زموږ يقين سو) فرد عليهم ولو شئنا لآتينا كل نفس هدانها الى اخير الآية. فنادوا الثالثة ربنا اخرنا الى اجل قريب نجب دعوتك ونتبع الرسل (دريم وار ناري کړي يعني خدای ﷻ ته ای ربه زموږ و ځنډوه يعني زموږ عذاب تر يو لږ مدې پوري يعني لږ ته په دنيا کي ژوند راکړي موږ به ستا دعوت يعني و ايمان ته قبول او موږ به متابعت د رسولانو وکړو) فرد عليهم اولم تكونوا اقسم من قبل مالكم من زوال الى اخير الآية. فنادوا الرابعة ربنا اخرجنا نعمل صالحاً غير الذي كنا نعمل (څلورم وار ناري کړي اې زموږ ربه موږ وباسې يعني و دنيا ته موږ به عمل صالح وکړو غير له هغه څخه چي موږ عمل کاوه يعني په دمخه ژوند کي د دنيا) فرد عليهم اولم نعمركم مايتذكر فيه من تذكر وجائكم النذير (آيا نه درکړی ما عمر تاسي ته دومره اندازه چي په هغه عمر کي پند واخلي هغه څوک چي پند اخلي او درغلی و تاسي ته بېرونکی يعني رسول) بيا يو څو زمانه خدای ﷻ خبري ددوی بندي کړي يعني چي په واسطه کېدلي ثم ناداهم بيا ور ناري کړي "الم تكم آياتي تتلى عليكم فكنتم بها تكذبون" (آيا نه وه راغلي زما آيات چي تلاوت کېدی پر تاسي، نو تاسي واست چي د هغو آياتو تكذيب مو کاوه) فلما سمعوا ذالك قالوا لا يرحمنا ربنا ثم نادوا عند ذالك ربنا غلبت علينا شقوتنا وكنا قوماً ضالين ربنا اخرجنا منها فان عدنا فانا ظالمون (چي دوی واوريده هغه کلام د خدای ﷻ دوی وويل آيا رحم به ونه کړي پر موږ رب زموږ بيا ناري کړي په دغه وخت کي يا رب زموږ غلبه کړي وه پر موږ بدبختي زموږ او موږ يو قوم گمراهان کافران وو، يا زموږ ربه موږ وباسه د آخرت له اوره څخه يعني و دنيا ته که چېري موږ بيرته عود يعني کفر ته وکړی نو موږ ظالمان يو يعني مستحق د عذاب النار الابدية يو) فقال اخسئوا فيها ولا تكلمون (خدای پاک ورته ووايي يعني په ذريعه د ملکي په ذلت اوسېږئ په اور کي نوري خبري مه راسره کوئ) فانقطع الرجا والدعا منهم واطبقت النار عليهم (نو قطع سي اوميد او دعا ددوی او اوور مطبق سي پر دوی انتهى بيان المظهري مع الترجمة.

**درویش وايي:** چي دغه ترتيب د خبرو د کفارو او د خدای ﷻ يعني چي اول به فلاني ناره وکړه او دوهم به فلاني الخ نه پوهيږم چي مظهري دا ترتيب په احاديثو کي د صحاح سته څو نه دی راغلی. نو ده په نورو کتابو کي د احاديثو شريفه وو ليدلی دی او که څرنگه؟!.

**تنبيه:** زما دا مقصد نه دی چي مذکوره آيتونه او څوابونه په قرآن مبارک کي نسته هغه ماته هم معلومه ده زما سوال صرف د ترتيب سره دی فافهم والله اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب.

## وَقَالَ الشَّيْطٰنُ لَمَّا قُضِيَ الْاَمْرُ

او وايي چي شيطان يعني په وهغه وخت کي والتعبير بالماضي لتيقنه في المستقبل. هغه وخت چي حکم الهي او فيصله د انسانانو تر منځ وکړل سي يعني اهل جنت جنت ته ولاړ سي او اهل النار دوږخ ته ولاړ سي. مقاتل رحمه الله وايي چي ابليس ته منبر په دوږخ کي کښېښول سي. نو کفار سره ددوی د آمرانو پر ابليس راټول سي، نو شيطان و کافرانو ته د انس او جن خطبه ووايي بما سيئاتي في القرآن.

**فائده:** طبراني په تفسير کبير کي او ابن المبارک، ابن جرير، ابن مروية، ابن ابی حاتم او بغوي رحمهم الله په خپلو تفاسيرو کي وايي چي څه وخت چي خدای ﷻ اولين او اخرين سره جمع کړي وقضی بينهم وفرغ من القضآ، نو مؤمنان (يعني گناه کاران) ووايي چي خدای پاک خو قضآ وکړه وفرغ. يعني جنتيان يې د جنت ته واستول او دوږخيان يې دوږخ ته. نو زموږ شفاعت به څوک وکړي الی ربنا. نو ددوی اتفاق پر آدم علیه السلام باندي سي چي دی خو ابو البشر دی او خدای پاک په خپل خاص قدرت سره پيدا کړی دی او خبري يې هم ورسره کړي دي او ملائکه يې په سجده و ده ته امر کړي وې. نو آدم علیه السلام ته سره راغونډ سي. نو سر گذشت د قضآ الهي ورته بيان کړي. نو ورته ووايي چي زموږ شفاعت د خدای عزوجل ته وکړه. آدم علیه السلام خپل عذر داسي بيان کړي چي زه يې په جنت کي د غنم له خوراک څخه منع کړی وم. ما و خوړی نفسي نفسي فاذهبوا الی غيري،

ولاړ سي نوح علیه السلام ته چي آدم ثاني د نوع د بشر دی. نو دوی ټول به راسي نوح علیه السلام ته نو هغه خپل عذر ورته بيان کړي داسي چي ما خدای ﷻ ته سوال د خپل زوی کنعان چي کافر و د نجات وکړی ما ورته وويل ان ابني من اهلي آه، خدای پاک راته وويل انه ليس من اهلک آه، نو نوح علیه السلام حواله د شفاعت پر ابراهيم علیه السلام ورکړي هغه هم خپل عذر ورته ووايي او حواله پر موسى علیه السلام ورکړي، هغه هم خپل عذر ورته ووايي حواله د شفاعت پر عيسى علیه السلام ورکړي هغه هم خپل عذر ورته ووايي او داسي ورته ووايي ادلکم علی النبي الامي العربي علیه السلام. نو عليه الصلوة والسلام ورته وايي نعم انا لهذا المقام فيشفع علیه السلام الی اخير الحديث الطويل... سعدي شيرازي قدس سره ميگويد:

عطايي شفاعت چنانش دهند ....... که امت تمامی زدوزخ رهند

وروسته کافران سره ووايي قد وجد المؤمنون من يشفع لهم فمن يشفع لنا، نو دوی سره ووايي ماهو غير ابليس الذي اضلنا نو ابليس ته ورسي او ورته ووايي چي مؤمنانو خو شفاعت کونکی پيدا کړی. نو ابليسه دروالاړ سه زموږ شفاعت بيا ته وکړه فانک انت اضلتنا، دی چي ولاړ سي يوه ډېره لويه بدبويي پيدا سي و يقول:

إِنَّ اللَّهَ وَعَدَكُمْ وَعْدَ الْحَقِّ وَوَعَدْتُكُمْ فَأَخْلَفْتُكُمْ

په تحقيق خدای (ﷻ) ستاسي سره وعده کړي وه يعني پر ژبه د نبيانو علیهم السلام وعده د حق. يعني بالعبث بعد الموت والجزا اما بالجنة او بالنار او هغه وعده يې هم رشتيا کړه، ما وعده کړي ستاسي يعني بالباطل يعني چي نه بعث الموت سته او نه جنت او نه دوږخ سته او نه حساب او اصنام ستاسي حق د عبادت لري، او که فرضاً بعث بعد الموت او جزا واقع سي داغه بتان ستاسي شفاعت کوي "فاخلفتکم" زما وعده خلاف ثابته سوه يعني زما وعده دروغ سوه.

وَمَا كَانَ لِيَ عَلَيْكُمْ مِنْ سُلْطَانٍ إِلَّا أَنْ دَعَوْتُكُمْ فَاسْتَجَبْتُمْ لِي

او نه ؤ ما لره پر تاسي تسلط چي تاسي دي پر کفر مجبور کړم او يا معنا دا

چي مالره پر خپله دعوی یو دلیل هم نه ؤ یعني لکه انبیا علیهم السلام چي پر خپل دعوو حجت د معجزاتو درلودی، مګر نه چي ما تاسي ته دعوت درکړی د کفر او معاصیو په وسوسه یعني دا خو کوم حجت نه ؤ زما له خوا څخه لکن دا داسي مثال لري تحیة بینهم ضرب وجیع" یا استثنا منقطع ده یعني لکن دعوتکم "استجبتم لي" تاسي ژر زما دعوت قبول کړی او زما څخه مو کوم حجت نه کړی طلب زما پر دعوه او د صاحب المعجزات چي رسولان وه له هغو څخه مو زما و دعوت بې حجت ته لبیک ووایه.

فَلَا تَلُومُونِي وَلُومُوٓا أَنفُسَكُم ط

نو مه ملامتوئ ما چي ما وسوسه دراچولې ولې چي ستاسي او زما تر منځ عداوت قدیمه ؤ، او پر خپلو ځانو ملامتیا ووایاست چي بې حجته سره د عداوته مو زما دعوت قبول کړی. او د صاحب المعجزات البینات دعوت مو رد کړی.

**فائده**: معتزله په ورته آیاتو سره دلیل وایي چي بندګان مستقل دي په خپلو اعمالو کي یعني خالق د خپلو افعالو دي، لکن دوی درواغ وایي له داسي آیاتو څخه خو صرف مداخله د عبادو په خپلو افعالو کي ثابتیږي ولو بالکسب. ونحن معشر اهل السنة والجماعة قائلون به حیث نقول خالق افعال العباد هو الله عزوجل وانما للعبد مداخلة الکسب فیها.

**درویش وایي**: چي فرق په منځ کي د خلق او د کسب دقیق دی وقد بینه محب الله البهاري رحمه الله في مسلم الثبوت.

مَآ أَنَا بِمُصۡرِخِكُمۡ وَمَآ أَنتُم بِمُصۡرِخِيَّ ط

زه نه یم خلاصونکی ستاسي له عذاب څخه د خدای جل جلاله او نه تاسي یاست خلاصونکي زما یعني له عذاب څخه د خدای جل جلاله مثل قول بهلول:

بر بپای خود میش بپای خود

إِنِّي كَفَرۡتُ بِمَآ أَشۡرَكۡتُمُونِ مِن قَبۡلُ ط

زه بېزاره یم او بد بولم ننه ورځ ستاسي اشراک ما لره (نو کلمه د ما مصدریه

ده) په اطاعت کي د خدای سره په دنيا کي يعني په دنيا کي تاسي زما اطاعت کاوه لکه د خدای، اوس زه هغه اشراک بد او منکر بولم

**یوه سه:** چي کسره عوض ده عن اليا المحذوفة "قبل" سره د دخول د حرف جر په ضمه ويل کېږي لان هذه الضمة ليست باعراب بل ضمة بنائية عوضاً عن حذف المضاف للفظ قبل اللازم الاضافة كما تقرر في علم النحو.

إِنَّ الظَّٰلِمِينَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٢٢﴾

په تحقيق ظالمانو او کافرانو لره عذاب دردناکه سته. بعض مفسرين وايي چي دا تتمه د قول د ابليس ده. والظاهر انه كلام من الله ﷻ.

**یوه سه:** چي ظالمان شيطان او تابعين دده دي ولي چي ظلم وضع د شي بې ځايه ته وايي شيطان دعوت الى الباطل بې ځايه استعمال کړی، ولي ځای د دعوت دی حق ته او تابعانو دده اتباع بې ځايه استعمال کړه. ولي ځای د اتباع اتباع الرسل ده. صاحب د روح البيان او مظهري وايي وفي حكايت امثاله لطف للسامعين وايقاظ لهم حتى يحاسبوا انفسهم ويتدبروا في عواقبهم حتى لايكونوا مثل الشيطان واتباعه.

وَأُدْخِلَ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّٰلِحَٰتِ جَنَّٰتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَا بِإِذْنِ رَبِّهِمْ تَحِيَّتُهُمْ فِيهَا سَلَٰمٌ ﴿٢٣﴾

او داخل به کړل سي (داخلونکي يې ملکي دي) هغه کسان چي ايمان يې راوړی وي يعني پر خدای ﷻ په وحدانيت سره او په قيامت سره او عملونه صالح يې کړي وي يعني بدني او مالي او قولي من الفرائض والواجبات والسنن، و جنتو ته چي بهېږي به لاندي تر هغو يعني لاندي تر قصورو او ماڼيو د جنتو ولې يعني خلور الما، واللبن، والعسل والخمر او همېشه به وي دوی په دې جنتو کي په اجازه او اراده د رب ددوی، پېش کش ددوی به په جنتو کي سلام وي يعني يو پر بل او د ملکو له خوا پر دوی، کريمه "سلام عليكم طبتم فادخلوها خالدين، وايضاً سلام من جانب ربهم، كريمه "سلام قولاً من رب رحيم.

**بوه سه**: چي د سلام معنا دعا ده په سلامتيا د آفاتو او له بلاؤ څخه.

**بوه سه**: چي ابتدا د سلام مستحب ده او رد يې واجب دی.

**مسئله**: تكفى للتسليم واحد من جماعة ويكفى لردها ايضاً واحد. وللسلام وردء مسائل مذكورة في الاحاديث والفقة.

أَلَمْ تَرَ كَيْفَ ضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا كَلِمَةً طَيِّبَةً

آيا ته گوري يا محمد او يا كل مؤمن چي څرنگه بيانوي او وضع كړي دي خداى ﷻ "مثلاً" مثل هغه عبارت ته وايي چي يو شی د بله سره مشابه كوي في وجه الشبه المشترک بينها ولا يستعمل الا في قول غريب "كلمة طيبة" مفعول ثاني د ضرب دی لتضمنه معنى الجعل او يا بدل دی له مثلاً څخه مراد د كلمة طيبة څخه قول لا اله الا الله بالاخلاص.

كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ أَصْلُهَا ثَابِتٌ وَفَرْعُهَا فِي السَّمَاءِ ﴿٢٤﴾

"كشجرة طيبة" اى جعل كلمة طيبة لكه درخته چي قوي وي بيخ يې او پورته وي د اسمان پر خوا طيبة الثمر مراد څني د خورما درخته ده "اصلها ثابت" بيخ يې ټينګ وي په مځكه كي يعني بكثرة العروق "وفرعها في السمآء" او ښاخ ددې يعني جنس ښاخونه ددې په جهت كي د اسمان يعني جگه وي.

تُؤْتِي أُكُلَهَا كُلَّ حِينٍ بِإِذْنِ رَبِّهَا

چي وركوي دغه درخته ماكول يعني ميوه خپل هر وخت چي خداى ﷻ ددې ميوې لپاره ايښي وي په اراده د خالق ددې.

**درويش وايي**: چي وجه د شبه په مشبه كي چي كلمه طيبه ده داده چي دا كلمه راسخ ده په زړه كي د مؤمن بالتصديق، او چي په خوله يې وايي دا كلمه طيبه پورته ځي د اسمان پر خوا، نو حجاب نه لري تر رسيدلو و خداى ﷻ ته "اليه يصعد الكلم الطيب الآية" اى الى المحل القبول عنده تعالى وهو العرش اذ لا جهة له تعالى، له عبدالله بن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دی على ما في الترمذي قال رسول الله التسبيح (يعني سبحان الله) نصف الميزان. والحمدلله يملئوه

(ترازو د کوي) ولا اله الا الله ليس لها حجاب دون الله ﷻ (اي مانع عن حضوره تعالى) او له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی قال قال رسول الله ﷺ ما قال عبده لا اله الا الله مخلصاً (يعني لا ككلمة المنافق) قط الا فتحت له ابواب السماً حتى يفضي الى العرش ما اجتنب الكبائر.

**فائده:** له دې حديث څخه دا معلومه سوه چې د مرتكب الكبائر كلمه تر عرشه پورې نه رسيږي كه څه هم ثواب خو لري، رواه الترمذي.

**يوه سه:** چې ترمذي، نسائي، ابن حبان او حاكم رحمهم الله له انس ﷺ څخه روايت كړی دی چې عليه الصلوة والسلام وويل چې شجرة طيبة د خورما درخته ده او شجرة خبيثة حنظله ده يعني مره غونې چې پر هيئت د هندوانې ده لكن نهايت ترخه او بدبويه ده.

**يوه سه:** چې حين په لغت كې مطلق وخت ته وايي، نو د خورما په باب كې سعيد بن جبير ﷺ، قتاده او حسن رح وايي چې د خورما مېوه چې تر ګل ووتل تر وخته د شكولو ددې شپږ مياشتې يې خلګ خوري يا تروه يا بېن بېن يا خوږه صحيح روايت د خورما په باره كې هغه دی چې ربيع بن انس وايي چې د "كل حين" معنى داده غدوة وعشية، لان الثمر النخل يؤكل ابداً ليلاً ونهاراً صيفاً وشتاءً او تمراً ورطباً او بسراً.

**يوه سه:** چې وجه د شبه په مشبه به چې شجره طيبه ده دي هم داغه وي چې هر وخت يې مېوه خوړل كېږي كمامر آنفاً كما ان عمل المؤمن يعني صاحب الكلمة الطيبة يصعد اول النهار و اوسطه وآخره وكذالك اول الليل و اوسطه وآخره بل بركة الايمان لا ينقطع ابداً حتى صاحبه الجنة بل فيها ابد الآبدين. بغوي رحمه الله وايي د درختې بقا نه راځي مګر په درې شيانو (۱) محكمه ريښې په مځكه كې (۲) محكمه تنه (۳) لوړ ښاخونه. داغه رنګه ايمان كامل نه ګرځي مګر په درې شيانو (۱) تصديق بالقلب (۲) وقول باللسان (۳) وعمل بالاركان.

له عبدالله بن عمر ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ يوه ورځ وويل چې په درختو كې داسې درخته سته چې بلګونه يې نه رژيږي وانها مثل المؤمن د

خلكو فكرونه د ځنګلو درختو ته ولاړل، عبد الله ؓ وايي چي زما په زړه کي راوګرځېدل چي خورما به وي لکن زه وشرمېدلم چي زه ووايم چي خورما ده ولي چي زه تر ټولو صحابه کرامو کشر وم، نو خلګو وويل حدثنا يا رسول الله ما هي قال عليه السلام هي النخلة الى اخير الحديث، او ابن عباس ؓ وايي چي شجرة طيبة درخته ده په جنت کي والله اعلم بالصواب.

## وَيَضْرِبُ اللَّهُ الْأَمْثَالَ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ ﴿٢٥﴾

او بيانوي خداى ﷻ امثال و خلګو ته يعني د تفهيم لپاره شايد چي خلګ به پند واخلي له امثالو څخه يعني ايمان به راوړي.

**فائده:** په کلمه طيبه کي چي سابقاً يې موږ تفسير په کلمه شهادت وکړی هره کلمه حسنه پکښي داخله ده لکه تلاوت القرآن، تسبيح، تحميد، استغفار، توبه، دعوت الى الاسلام وامثالها چي اظهار د حق پکښي وي.

**فائده:** د خورما درخته اکرم د درختو ده په نيز د خداى ﷻ فانها خلقت من فضلة طينة آدم عليه السلام فهي كعمة بني آدم و ولدت تحتها مريم كما وردت في احاديث المقاصد الحسنة ولهذا جاء ثمرها احلى و اطيب ومولدة الغذاء الجيد ولا منع منها في جميع الامراض عند الاطباء.

## وَمَثَلُ كَلِمَةٍ خَبِيثَةٍ كَشَجَرَةٍ خَبِيثَةٍ

او حال د کلمه خبيثه "كشجرة خبيثة" اى غير نافعة ولا مستقرة في الارض، چي په عربي يې حنظله بولي او په فارسي يې هندوانه ابو جهل بولي او په پښتو يې مړغوني بولي.

**درويش وايي:** چي مظهري د کلمه خبيثه تفسير په كلمة المنافق سره کړی دی، والصحيح ما في روح البيان هي كلمة الكفر او الدعاء اليه او الكذب او كل كلمة لايرضاها الله يعني كالغيبة والنميمة والبهتان مما يتعلق باللسان.

## اجْتُثَّتْ مِنْ فَوْقِ الْأَرْضِ مَا لَهَا مِنْ قَرَارٍ ﴿٢٦﴾

چي دا قطع کېږي او خېژي له ريښو سره له لوړه څخه د مځکي يعني بېل،

كولنگ وغيره ته ضرورت نه لري ولې چې ريښې يې د مځکې پر سر دي. ښسته دې لره قرار پر مځکه. يو شاعر په شان کې د هغې درختې واي:

نه بيخي كه آن باشد اورا مدار ....... نه شاخي كه گردد بدان سايه دار
گياهيست افتاده بر روی خاک ....... پريشان وبی حاصلی خور ناک

**درويش وايي**: چې زجاج رحمه الله او يو بل فرقې د شجرة خبيثة تفسير په وږه سره کړی دی چې په عربي يې ثوم بولي. ولا يخفى چې ثوم که څه هم بدبويه ده لکنه ليس كالحنظلة. بلکې په وږه کې فوائد عجيبه سته لکه جلال الدين السيوطي رحمه الله چې په كتاب الطب والحكمة کې بيان کړې ده حيث قال فابقراط الحكيم الثوم شفاً للناس من السموم وهو حار يابس حريف اذا اكل مع العسل على الريق قطع البلغم والرطوبات الفاسدة من الجوف وقوى المعدة وقتل الدود المتولد من العفونات واذهب البواسير الرطبة الى غير ذالك من الفوائد التي ذكرها السيوطي رحمه الله فكيف يجوز اطلاق الخبيثة عليها؟ جواب په خبث کې د ثوم کافي دی. هغه حديث چې عليه الصلوة والسلام نهي کړې ده له اكل څخه د ثوم او که سرې يې و خوراک ته مجبوره سو، نو دې پخه کړې چې بدبويي يې ولاړه سي. او بعض مفسرين وايي چې مراد له شجرة خبيثة څخه خوزان دي چې په عربي يې شوک بولي.

**درويش وايي**: دا تفسير ليس بشيئ. ولې چې خوز که څه هم مضر دی لکن داسې خو نه دی چې اجتثت من فوق الارض. ولې چې تجربه شاهد دە چې خوزان کښل يا کهې يا بيلچه يا تبر، تېشه غواړي. او بعض چې شجرة خبيثة يو ځکې. ده چې په عربي يې کمائة بولي. وهذا ايضاً ليس بشيئ لانه ورد في الحديث النبوي الكمائة من المن وماءها شفاً للعين آه. وهي لذيذة الطعم او چې په غوړو کې يې پخه کړې د پسه تر غوښه خوند کوي كما جربناه فكيف يصح الطلاق الخبيثة على الكمائة. وان كانت اجتثت من فوق الارض.

**درويش وايي**: چې آلوسي رحمه الله صاحب د روح المعاني په بيان کې د شجرة طيبة او خبيثة ډېر اوږد بحث او بيان کړی دی ان شئت فارجع اليه.

**يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِى الْاٰخِرَةِ**

خدای (ﷻ) ثابت او محکم ساتي هغه کسان چي قول ثابت وايي يعني کلمة التوحيد چي اخلاص ورسره ملگری وي، وجه تسمية کلمة التوحيد بالقول الثابت داده چي دا کلمه چي اخلاص ورسره وي تمکن او ثبات لري په زړو کي د مؤمنانو او ثواب يي ثبات لري عند الله په ژوند کي د دنيا، يعني مؤمنان له دې کلمې څخه نه اوړي که څه هم د ډېرو کړاوونو سره مخامخ سي، لکه زکريا و يحيى و جرجيس والشمعون واصحاب الاخدود و خبيب و اصحابه چي ددوی د حال بيان په قرآن مجيد او په احاديث صحيحه ؤ کي راغلی دی، او په اخرت کي هم يعني په برزخ کي د قبر چي نکير او منکر له دوی څخه سوال کوي کما سيئاتي تفصيله ان شا الله تعالى.

**درويش وايي**: چي د ثبات د مؤمنانو پر قول ثابت يوه قصه د جرجيس ﷺ کما ذکره سعدي المفتي رحمه الله بطور مشت نمونه خروار واورئ. په صحيح روايت کي راغلي دي چي جرجيس ﷺ له حوارييڼو څخه د عيسى عليه السلام ؤ خدای پاک ده ته ښوولی ؤ هغه اسم چي په هغه سره مړي ژوندي کېدل او دده سکونت په مځکه کي د موصل ؤ او په مځکه کي د موصل يو جبار ؤ چي د بت عبادت يې کاوه، نو جرجيس ﷺ و هغه ته دعوت د عبادت د خدای وحده لاشريک له ورکړی، نو جبار امر وکړی چي د جرجيس پښې او لاسونه يې وتړل او د تېرو چړو په طور د ږمنځي راوړه نو په دې چړو يې د جرجيس د ځيگر او لاسو غوښې وربربکولې او پر هغو تپو يې بيا مالگه پاشله، خدای ﷻ و جرجيس ته صبر ورکړی او د دعوت التوحيد د جبار يې لاس نه واخستی، اخير جبار مېخونه په اور کي تاوده کړل او د جرجيس په سترگو او غوږو يې ورچخ کړه او ده ته خدای پاک صبر ورکړی او دعوت التوحيد يې جاري وساتی، بيا جبار يو حوض جوړ کړی او په هغه کي يې ميس ويلي کړه اور يې لاندي تر بل کړی چي ښه سره سو د جرجيس يې ورواچاوه فعجله برداً وسلاماً ژوندی را ووتی او د توحيد ناره يې د جبار تر غوږو بيا وررسول، بيا جبار دی عضواً عضواً پرې کړی، نو جرجيس

چي مړ سو خدای پاک بیرته ژوندی کړی ولم یؤمن معهذا الجبار الظلوم فاهلکه الله مع قومه بان قلب الله ﷻ المدينة عليهم وجعل اعلاها اسفلها. له هم دې جملې څخه دی شمعون دی له زهادو څخه د نصاری ؤ وکان شجاعاً جنګ به یې کاوه د عبدة الاصنام سره د روم. او دعوت د دین حق چې توحید دی ورته کاوه به یې او په یوازې قدرت یې لښکرونو ته د رومیانو شکست ورکاوه باذن الله ﷻ. د روم باچا ودته ډېرې حیلې وکړې خو دده پر مرګ کامیاب نه سو.

## وَيُضِلُّ اللَّهُ الظَّالِمِينَ

او خدای ﷻ ګمراه کوي ظالمان ای المنافقين والكافرين. یعني د قول ثابت لار نه لري په ځای کې د فتنو او پښې یې سوځېږي اول تر هر شي وهم في الآخرة اضل و ازل، دا ؤ حال د دنیا اوس حال ته د برزخ یعني قبر نظر وکړو وتفسيراً لقوله تعالى وفي الآخرة.

**یوه سه**: چې اصحابو د صحاح سته و روایت کړی دی له برا بن عازب ﷺ څخه عن النبي ﷺ قال المسلم اذا سئل في القبر (ان قال) يشهد ان لا اله الا الله وان محمداً رسول الله. فذالک قوله تعالى "يثبت الذين آمنوا بالقول الثابت في الحيوة الدنيا وفي الآخرة (يعني تفسير قوله تعالى وفي الآخرة) او په بل روایت کې له عليه الصلوة والسلام څخه داسې راغلي دي چې دا مبارک وویل چې "يثبت الله الآية" په عذاب القبر کې نازل دی (والمراد قوله تعالى وفي الآخرة). يقال له (اى لصاحب القبر) من ربک ومن نبيک. فيقول ربي الله ونبيي محمد ﷺ وفي رواية احمد و ابو داؤد په دې الفاظو راغلي دي "قال رسول الله ﷺ يأتيه (اى الميت) ملكان فيقولان له من ربک؟ فيقول ربي الله. فيقولان ما دينک؟ فيقول ديني الاسلام. فيقولان ما هذا الرجل الذي بعث فيكم؟ فيقول هو رسول الله ﷺ. نو ملکي ورته وایي چې تا ته څه معلومه ده چې دی رسول الله دی؟ دی ورته وایي چې ما کتاب الله ویلی ؤ او ایمان مې پر راوړی ؤ او د هغه تصديق مې کړی ؤ یعني په هغه کتاب کې نوشته وه محمد رسول الله الآية" فذالک قوله تعالى يثبت الله الذين آمنوا الآية" قال ﷺ فينادي مناد من السما ان صدق

عبدي فافرشوه من الجنة والبسوه من الجنة وافتحوا له باباً الى الجنة. قال عليه السلام فيأتيه من روحها وطيبها ويفسح له فيه (فراخي جوړه سي ده لره) مد بصره. واما الكافر فذكر موته (يعني اول عليه الصلوة والسلام ذكر كړه ده د ژكندن سختي) قال عليه السلام ويعاد روحه في جسده ويأتيه ملكان فيجلسانه فيقولان من ربك؟ فيقول هاه هاه لا ادري (پوه سه! چي هاه هاه كاسه د متحير ده) فيقولان مادينك؟ فيقول هاه هاه لاادري. فيقولان ما هذا الرجل الذي بعث فيكم؟ فيقول هاه هاه لا ادري. فينادي مناد من السما ان كذب فافرشوه من النار والبسوه من النار وافتحوا له باباً الى النار فيأتيه من حرها وسمومها. قال عليه السلام ويضيق عليه قبره حتى يختلف فيه اضلاعه ثم يقيض له اعمى اصم معه مرزبة من حديد لو ضرب بها على جبل لصار تراباً فيضربه بها ضربةً يسمعها مابين المشرق والمغرب الا الثقلين (اى الانس والجن) ثم يعاد فيه الروح. او له حضرت عثمان رضي الله عنه څخه روايت دى چي عليه الصلوة والسلام چي به فارغه سو له دفن څخه د ميت وقف عليه فقال (اى للحاضرين) استغفروا لاخيكم وسلوا له التثبت (يعني بالقول الثابت چي كلمه د توحيد ده) فانه الآن يسئل رواه ابو داؤد.

**درويش وايي**: چي ورته حديثونه ډېر دي د تولو په راوړلو كي تطويل دى.

**تنبيه**: درويش وايي چي عذاب په قبر كي او دغه رنګه تنعيم په قبر كي له عقله څخه كه څه هم لېري دى لكن ايمان پر واجب دى چي له عليه الصلوة والسلام څخه په صحيح طريقه ثابت دى لكه تېر سوي حديثونه وامثالها او تفويض د علم به يې خداى او د هغه و رسول ته كوي څكه چي هغه فرقه چي پښي يې په تناؤ د عقل تړلي دي لكه د معتزله وو فرقه له عذاب قبر او تنعيم القبر څخه كمامر منكر دي مع ان الاحاديث المباركة فيهما متواترة المعنى وان كانت من الاحاد لفظاً والله يهدي من يشا الى صراط مستقيم.

**وَيَفْعَلُ اللَّهُ مَا يَشَاءُ ﴿٢٧﴾**

او خداى (جل جلاله) كوي هغه كارونه چي دده اراده ورته وسي يعني چا ته توفيق د ايمان او د طاعت وركوي او پر قول ثابت يعني كلمة التوحيد ثابت

گرځوي في الدنيا والآخرة او بعض کسان د خپل استمرار پر کفر خدای ﷻ يې خذلان په نصيب کوي يعني پر خدای پاک څوک اعتراض نسي کولای لانه تعالی قادر حکيم عليم.

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ بَدَّلُوا نِعْمَتَ اللَّهِ كُفْرًا

ته نه گورې هغه کسانو ته چي بدل يې کړی نعمت د خدای ﷻ يعني شکر د نعمت په کفر سره يعني کفر يې په ځای کې د شکر کښېښود. بخاري رحمه الله په خپل صحيح کتاب کي له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت کړی دی "انه قال هم والله کفار قريش ومحمد نعمت الله" او ابن جرير له عطا رحمه الله څخه روايت کړی دی چي دا آيت په شان کي د هغو کسانو دی چي په بدر کي ووژل سوه من کفار مکة والمعنى چي اهل مکه خدای پاک پيدا کړل او په حرم د مکې کي يې سکونت ورکړی چي دوی ته به راتله ثمرات کل شيئ يعني من الآفاق خصوصاً من الطائف ودفع الله بعظيم قدرته اصحاب الفيل کما سيأتي قصته في هذا التفسير في تفسير سورة الفيل ان شا الله تعالى. او خدای پاک دروازې د رزق پر خلاصي کړې برحلتي الشتا والصيف کما سيأتي في تفسير "لايلاف قريش" ان شا الله تعالى. او خدای ﷻ محمد ﷺ رسول ورته راواستاوه "رسولاً من انفسهم يتلوا عليهم آياته ويزکيهم ويعلمهم الکتاب والحکمة" او نور عرب يې تبع د قريشو وگرځول. نو قريش ددې نعمت اخيره ناشکري وکړه او په عداوت د محمد مصطفى ﷺ يې خولې، لاسونه او زړونه پر کار واچول "واستحبوا العمى على الهدى" نو خدای پاک اووه کاله پر دوی قحط مسلط کړی او په ورځ د بدر يې په شمول د ابو جهل فرعون هذه الامة ووژل سو او اوويا کسه يې بنديان سوه، نو پر دوی خدای پاک پرده د ذلت واچول او ټول نعمتونه يې څني سلب کړل حتى چي مړه سول پر کفر باندي وذلک هو الخسران المبين.

وَأَحَلُّوا قَوْمَهُمْ دَارَ الْبَوَارِ

او دوی يعني رؤسا د کفر داخل کړه خپل قوم يعني چي دوی يې متابعت کاوه پر کفر باندي وسرای ته د هلاک چي دوی باعثه پر کفر گرځول.

جَهَنَّمَ يَصْلَوْنَهَا وَبِئْسَ الْقَرَارُ ﴿٢٩﴾

"جهنم" عطف بيان دی د دار البوار "يصلونها" چې دوی به داخليږي دغه دار البوار ته. دا جمله حال ده له دار البوار څخه او يا له قوم څخه. ولې چې د دواړو ضمير د ذو الحال پکښې دی ای داخلين مقاسين حرها او نور لړمان او ماران چې په دوږخ کې د کفارو لپاره اماده باش دي.

**پوه سه:** چې "قرار" مصدر دی په معنی د مقر دی او مخصوص بالذم محذوف دی وهو لفظ جهنم.

**فائده:** له ابن عباس ﷺ څخه روايت دی چې ده امير المؤمنين عمر ﷺ ته وويل چې په دې آيت "الذين بدلوا نعمت الله كفراً" مراد څوک دي؟ عمر ﷺ ورته وويل هم الافجران من قريش دوې بدې قبيلې دي د قريشو چې بنو المغيرة او بنو اميه دي. اما بنو مغيرة فكفيتموهم يوم بدر. هرچه بنو مغيرة دي د هغو كفايت تاسې مسلمانانو وکړی په ورځ د بدر يعني چې عموماً رئيسان ددوی په بدر کې ووژل سول. واما بنو امية فتمتعوا حتى حين. او هرچه بنو اميه دي هغه تمتع يعني ژوند د دنيا کوي تر يو وخت پورې كذا ذكر البغوي قول عمر ﷺ.

**پوه سه:** چې بنو اميه تمتع په کفر سره کول حتی چې اسلام يې راوړی ابو سفيان. معاويه و عمر بن العاص وغيرهم. مظهري وايي چې ثم كفر يزيد ومن معه بما انعم الله عليهم او دوی خانونه چمتو کړل و عداوت ته د آل النبي ﷺ وقتلوا حسيناً ﷺ ظلماً وكفر يزيد بدين محمد ﷺ حتی چې يزيد يوه بيانيه ورکړل چې حسين يې شهيد کړی چې د بيانيه مضمون دادی اين اشياخي ينظرون انتقامي بآل محمد وبني هاشم. چېرې دي زموږ سپين ږيري چې و ګورې انتقام زما له آل محمد څخه او د بني هاشم څخه او اخير بيت ددې قصيدې دادی:

ولست من جندب ان لم انتقم ........ من نبي احمد ماكان فعل

او شراب يې حلال وګرځول او داسې بيت يې ووايه:

فان حرمت يوماً على دين احمد ........ فخذها على المسيح ابن مريم

او تاريخ وايي چې يزيد او يزيد يانو به ښکنځل کول و آل ته د محمد عليه السلام په

منبر باندي، نو زړ مياشتي پر دغه ضلالت وه بيا خداى ﷻ له دوى څخه انتقام واخستى حتى يو ددوى نسو پاته يعني چي خلافت وبني العباس ته نقل سو.

**درويش وايي:** چي مظهري رحمه الله صراحةً يزيد او اتباع دده كافران ويلل.

**درويش وايي:** چي ورته بيان په باره كي د يزيد او اتباعو دده علامه تفتازاني په شرح العقائد النسفي كي كړى دى حيث قال ونحن لانوقف في شانه بل في ايمانه فلعنة الله عليه واعوانه.

**درويش وايي:** چي يزيد په قتل كي د حسين رضي الله عنه مرتكب د گناه كبيرې سو كافر نه دى، نو لعنت نه دى پر روا. او بعض علماؤ د يزيد په باره كي د توقف لارخيل كړې ده يعني نه حكم د كفر پر ده كوي او نه حكم په اسلام دده كوي، ځكه تفتازاني وويل ونحن لانوقف في شانه رداً على هو العلماً.

**درويش وايي:** چي ابن صلاح په خپله فتاوى كي وايي چي قاتل د حضرت حسين رضي الله عنه لايكفر بذالك وانما ارتكب ذنباً عظيماً. وانما يكفر بالقتل قاتل نبي من الانبياء. بيا ابن صلاح ويلي دي چي مسلمانان د يزيد په باره كي درې ډلي دي، يوه ډله ډېر محبت ورسره كوي. او بله ډله ښكنځل ورته كوي او لعنت پر وايي، او بله فرقه متوسطه فرقه ده چي نه محبت ورسره كوي او نه لعنت پر وايي ابن صلاح زياتوي چي وهذه الفرقة هي المصيبة (يعني حق ته رسېدلې ده) ومذهبها هو اللائق بمن يعرف سير الماضيين ويعلم قواعد الشريعة المطهرة انتهى. علامه تفتازاني رحمه الله دا دوه بيته په غير كي د شرح العقائد ويلي دي:

اللعن على يزيد يجوز .......... والا عن يجزى حسنات ويفوز
قد صح لدى انه معتل .......... واللعن مضاعف فذالك مهموز

**درويش وايي:** چي په عقدر الدرر واللآلى كي يې داسي ويلي دي ويح قاتل الحسين رضي الله عنه كيف حاله مع ابويه يعني فاطمة و علي رضي الله عنهما وجده يعني محمد ﷺ وانشدوا:

لابدان ترد القيامة فاطم ........ وقميصها بدم الحسين ملطتخ
ويل لمن شفعائه خصاؤه ........ والصور في يوم القيامة ينفع

وروى في الخبر على طريق المعجزة قاتل الحسين رضي الله عنه في تابوت من نار عليه نصف عذاب اهل الدنيا.

**درويش وايي**: چي وهذا الخبر ان صح يدل على اعلى مرتبة يزيد في الكفر والله اعلم.

## وَجَعَلُوا لِلَّهِ أَندَادًا لِّيُضِلُّوا عَن سَبِيلِهِ

او دوی گرځوي خدای ﷻ لره امثالاً في العبادة وفي التسمية باسم الآلهة مع انه ليس له مثل، تاچي دوی گمراهان کړي خلگ.

**پوه سه**: چي لام د عاقبت دی نحو لدوا للموت وابنوا للخراب لام غرض نه دی. ولي چي ددوی غرض په اتخاذ د انداد خدای ته اضلال الناس نه ؤ بلکې دوی د اتخاذ الانداد لار حق او هدايت بلل. لكن لما كان النتيجة اضلال الناس جعل كالغرض لهم "عن سبيله" له لاري ځخه د خدای ﷻ يعنی دين الاسلام ودين الحق.

## قُلْ تَمَتَّعُوا فَإِنَّ مَصِيرَكُمْ إِلَى النَّارِ ﴿٣٠﴾

ته ورته ووايه چي تاسي نفع اخلئ په خپلو شهواتو سره او په عبادت سره د بتانو او په اضلال سره د خلگو چي اتباع مو دپرسي الى ان ياتي عذاب الله المقدر لكم (دا امر تهديد دی) او ستاسي رجوع يعنی في الآخرة و اور ته د دوزخ ده.

## قُل لِّعِبَادِيَ الَّذِينَ آمَنُوا يُقِيمُوا الصَّلَاةَ وَيُنفِقُوا مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ

ته ووايه يا محمد (ﷺ) و بندگانو ته زما چي ايمان يې راوړی دی.

**پوه سه**: چي دا تخصيص د خطاب و مؤمنانو ته دی او وصف ددوی په عبوديت سره او اضافت ته يې لپاره د تشريف د مضاف دی او تنبيه پر دې دی چي انهم هم المقيمون لحقوق العبودية اهلاً وللخطاب.

**نكته**: بعض پوهان وايي چي خدای پاک چي مشرف کړه په يا د اضافت و خپل ځان ته دا ددوی لپاره خير دی تر دنيا و مافيها لان الاضافة الى النفس تدل على العتق من النار، ولهذا قال الفقها رحمهم الله که يو سړي خپل مريي ته ووايل يا ابن و يا ولد بدون الاضافة لا يعتق العبد ولو قال يا ابني او يا ولدي بالاضافة الى نفسه يعتق. قال المولى الجامي.

کسوت خواجگی وخلعت شاهی چه کند .. هر کرا غاشيه بندگيت بردوشست

**پوه سه**: چي "يقيموا" مجزوم ده على انه جواب للامر اى قل عند بعض المفسرين كصاحب روح المعاني، او ابو علي وايي چي "يقيموا" لفظاً خبر دى په معنى د امر دى فالجزم للامر وهو مقول قل. وقس عليه وينفقوا، والمعنى چي دوى دي ادامه ورکړي و کولو ته د لمونځو اى الصلوة الخمس او دوى دي انفاق کوي له هغه مال څخه چي په رزق ورکړى دى دوى ته موږ.

سِرًّا وَّعَلَانِيَةً

اى انفاق سر وعلانية فهما مفعول مطلق لينفقوا.

**مسئله**: که له انفاق څخه مراد عام وي که فرضي وي لکه زکوة او که نفلي وي. نو په نفلي کي سر اولى دى لكونه ابعد من الريا او په فرضي کي علانية افضل دى لدفع التهمة، او که يوازي فرضي وي، نو سر يې د هغه چا لپاره افضل دى چي مشهور په غنى سره نه وي لدفع اهل الظلم والفساد، او علانية د هغه لپاره افضل دى چي مشهور په غنى سره وي دفعاً للتهمة.

**فائده**: خداى ﷻ لفظ د تبعيض په "مما" کي چي اصل يې "من ما" راوړى له دې سببه چي فرضي انفاق خو دى بعض کمالا يخفى او په نفلي کي تبعيض نهي دى له اسرافه څخه بانفاق جميع المال، وهذا يختلف باختلاف الاشخاص لان ابابكر ﷺ اتى بجميع ماله في غزوة تبوک، حتى چي عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي كور ته دي څه شى پرېښو؟ ابوبكر ﷺ ورته وويل الله ورسوله، نو عليه الصلوة والسلام دا دده ټول مال راوړل رد نه کړل او عمر ﷺ نيمى د مال راوړى، عليه الصلوة والسلام ورته وويل كور دي څه شى پرېښود ده ورته وويل نيمى.

مِّن قَبۡلِ أَن يَأۡتِيَ يَوۡمٞ لَّا بَيۡعٞ فِيهِ وَلَا خِلَٰلٌ ۝٣١

د مخه تر دې چي راشي هغه ستا ورځ يعني يوم القيامة چي په هغه ورځ کي بيع نسته چي گناه كار دي د تقصير دفع وكړي او يا دي په فديه کي د ځان ورکړي او له عذابه دي ځان په خلاص کړي او نه په هغه کي خلت او قرابت سته چي خليل دده شفاعت وکړي لانه لا يشفع عنده الا باذنه ولا اذن من الله في الشفاعة في حق الكفار.

**پوښتنه**: په ورځ د قيامت خلت خو ثابت دی للمتقين لقوله الاخلاء يومئذ بعضهم لبعض عدو الا المتقين. وايضاً شفاعة بعض المؤمنين لبعض ايضاً ثابتةٌ كما يدل عليه الآحاديث النبوية فما وجه النفي لجنس الخلال؟

**ځواب**: مظهري رحمه الله ددې سوال په ځواب کې وايي چې امر باقامة الصلوٰة وايتاء الزكوة امر دی بالتقوی فالمراد نفي د جنس الخلة عند عدم التقوى والمعنى ان لم يتقوا باقامة الصلوة وايتاء الزكوة لايكون لهم يومئذ جنس الخليل.

**درويش وايي**: چې دا ځواب د آيت مذكوره كېداى سي يعني قوله الاخلاء يومئذ آه. لكن ځواب د شفاعت د بعض مؤمنانو بعض لره لکه چې دمخه تېره سوه نسي کېداى الا ان يقال شفاعت د بعض مؤمنانو بعض لره مبني پر خلت نه دی بلکې صرف کومک دی فلا ينافي قوله تعالى ولا خلال فافهم، او دا ځواب موافق دی لما قال صاحب روح البيان. والمراد المخالة بسبب ميل الطبع ورغبة النفس انتهى. حاصل دادی چې مخالة د متقين په منځ کې په ميل الطبع ورغبة النفس سره دی او شفاعت د مؤمن و مؤمن ته د زړه سوي له لارې دی.

**درويش وايي**: چې ددې مثال دادی چې يو قريب د بل قريب سره کومک مالي يا قولي وکړي بكمال الرغبة وطيب النفس وهذا حال المتقين، او يا يو سړی د بل بېگانه سړي مالي يا قولي مرسته وکړي د زړه سوي له سببه وهذا حال المؤمنين بعضهم لبعض في الشفاعة فافهم لعلک لاتجد هذا التفصيل في مطاوي کتب التفاسير. کريمه "واما بنعمة ربک فحدث" فادفع تهمة الحاسدين.

ٱللَّهُ ٱلَّذِي خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ وَأَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً فَأَخْرَجَ بِهِۦ مِنَ ٱلثَّمَرَٰتِ رِزْقًا لَّكُمْ

الله (جل جلاله) يعني چې معبود بالحق دی هغه ذات دی چې پيدا کړي يې دي اسمانونه يعني سره د مافيها او ځمکه سره د مافيها و ما عليها، او نازلې کړي يې دي له اسمانو څخه اوبه يعني بارانونه. نو را ايستلي يې دي په هغو اوبو سره يعني له ځمکې څخه بعض له مېوو څخه (د تبعيض وجه داده چې ټولې مېوې

په اوبو نه راوځي كثمرات الجنان لپاره د رزق ستاسي)

**پوه سه**: چي دا مبتدا ده او موصول سره د صلې يې خبر دی.

**پوه سه**: چي "رزقاً" مفعول د "اخرج" دی او من الثمرات بيان دی يا حال دی.

**فائده**: لره رزق څخه يوازې خوراکي مواد نه دي مراد بلکې ما تعيشون به فيشتمل المطعوم والمشروب والملبوس.

**فائده**: بعض ملبوسات يا مفروشات که د پسو د وړيو وي او که د کتان وي او که د بزو له وڅونو څخه وي او که د اوښ له وړيو څخه وي چي وبر يې بولي همه و همه په اوبو پوري مربوط دي كما لا يخفى.

وَسَخَّرَ لَكُمُ الْفُلْكَ لِتَجْرِيَ فِي الْبَحْرِ بِأَمْرِهِ ۖ وَسَخَّرَ لَكُمُ الْأَنْهَارَ ﴿٣٢﴾

او مسخر يې ګرځولي دي تاسي لره کښتۍ تاچي په سمندر کي روان وي يعني تاسي پکښې ناست ياست او بارونه مو پکښي ايښي وي په امر يعني په مشيت د خدای ﷻ هري خواته چي تاسي ځئ شرقاً وغرباً جنوباً و شمالاً او سره ددې چي کوچنۍ ډېره چي درياب ته ورواچول سي سم له لاسه ډوبيږي او کښتۍ سره د اثقالو نه ډوبيږي په قدرت د خدای ﷻ، او مذلل او فرمانبرداره يې ګرځولي تاسي لره لوی او کوچني رودونه او لوی او کوچنۍ ويالې. نو د انهار متعارف د پښتو نه دي مراد چي رودونه نه دي شامل، ددې رودو اوبه په ذريعه د ولو هري خواته چي بيا ياست خدای پاک درته مسخر ګرځولي دي او هر ځای تاسي په دغو اوبو سره نفع اخستلای سئ، او لوی او کوچني پولونه لپاره د عبور پر جوړوئ.

**فائده**: په لفظ د "فلک" کي مفرد او جمع سره برابر دی فرق يې صرف تقديري دی يعني که يې پر وزن د قفل و بولې مفرد دی او که يې پر وزن د اُسد چي جمع د اسد و بولې نو جمع د قرينه ده فرق يې تذکير او تانيث دی صفت دی يا د حال يا د فعل مسند کي دا شيان مذکر وه نو لفظ "الفلک" مفرد دی او که يې دا امور مونث وه نو جمع دي په مذکوره آيت لفظ د فلک جمع دی، ولي د "لتجري" مونث ضمير يې ورته راجع کړی دی.

وَسَخَّرَ لَكُمُ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ دَآئِبَيْنِ ۖ وَسَخَّرَ لَكُمُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ ﴿٣٣﴾

او مسخر يې ګرځولي دي تاسي لره لمر او سپوږمۍ چي ددوی د خپل مدار په تګ مصالح کثيره د عبادالله نغښتي دي کما لايخفی لان الامور الشرعية کالحج والعمرة والصوم وغيرها مربوطة بسير القمر في فلکه والامور الدنيوية کالزراعة والثمرات منوطة بسير الشمس في بروجها چي دوولس دي "دائبين" چي هر يو پر خپل سير که سريع وي که بطئ پابند دی بقدرة الملک المعبود. او مسخر يې ګرځولي دي ستاسي د نفع لپاره شپه او ورځ چي په شپه کي ارام وکړي له سترړيا څخه د عمل د ورځي او ورځ يې روښانه ګرځولې ده چي تاسي دنياوي کاروته، تجارتونه، طلب د علم او د يارانو او دوستانو سره ملاقات وکړئ "وان تعدوا نعمت الله لاتحصوها"

**درويش وايي:** چي په هر ځای کي د قرآن کريم شپه تر ورځي دمخه راوړل سوې ده، سِر يې دا دی چي شپه وخت د راحت او ارام ده، نمونه د جنت ده. او ورځ وخت د سترتيا، تکليف او اضطراب ده. نو نمونه د دوږخ ده او د ورځي عاصي او مطيع يو ځای سره ګرځي په شپه کي مطيع په عبادت او تهجد وغير ذالک کي مشغول وي او عاصي په طلب د غلا پسي روان وي، يا و تلويزيون يا کورني فحش سينما ته ناست وي چي کيبل يا (ډش) يې بولي چي د کفري دنيا ټوله فواحش ښکاره کوي حتی الجماع او د کور نر او ښځي پيغلاني او ميږه والا او بالغ ځوانان او نابالغه هلاکان ټوله يې ويني. او دا کيبل اوس عمومي رواج دی په عوامو کي که څه هم په ظاهره صوفيان وي.

**فوائد شتی:** (۱) في قوله تعالی من السمآ مآ "پوه سه! چي سمآ يا په معنی د وريځي دی لان کل ما علاک سمآ او يا په معنی د فلک دی.

(۲) في قوله تعالی من الثمرات په حديث صحيح کي راغلي دي چي احب د فواکه وعليه الصلوة والسلام ته رطب خورما او خټکی و وکان ياکل البطيخ بالرطب ويقول يکسر حر هذا (يعني خورما چي طبعاً ګرمه ده) وبرد هذا (يعني خټکی چي طبعاً بارد دی) بحر هذا يعني خورما کما في شرح المصابيح، وفي

الحديث که چا سهار وخت اووه دانې عجوه خورما وخوړل ضرر به ونه رسوي وه ده ته په دغه ورځ کي نه سحر او نه زهر، لکن شرط دادی چي دا عجوه خورما به په نهاره وخوري يعني د مخه تر خورک د هر شي.

**پوه سه:** چي عجوه له ښو خورماوو څخه د مديني منورې ده چي کوچنۍ دانې يې دي مائل و سور دا ته او نن صبا دا خورما ډېره قيمتي ده تر ټولو خورما وو.

(۳) احتمال لري چي دا خاصيت به په دغه نوع کي د تمر وي او دا هم احتمال لري چي عليه الصلوة والسلام دعا کړې وي حين قالوا احرق بطوننا تمر المدينة.

(۴) قال عليه الصلوة والسلام کلوا التمر على الريق (يعني په نهاره) فانه يقتل الديدان في البطن (يعني چينجيان)

(۵) عليه الصلوة والسلام به د انگورو وانبکی په چپه لاس کي ونيوی او په رسته لاس به يې يوه يوه دانه ځني خوړل.

(٦) عليه الصلوة والسلام ټوله انواع د مېوو چي په هغه وخت کي موجودي وې خوړلي دي کذا في الطب النبويﷺ.

## وَاٰتٰىكُمۡ مِّنۡ كُلِّ مَا سَاَلۡتُمُوۡهُ

**پوه سه:** چي کلمه د "من" لپاره د تبعيض ده والمعنى اعطاكم بعض من كل ما سالتموه، نو من كل مفعول ثاني د "اتاكم" دی. روح المعاني وايي چي بعض کاملو علماؤ ويلي دي چي کلمه د "کل" لپاره د تکثير ده لا للاحاطة والتعميم كما في قوله تعالى "وفتحنا عليهم ابواب كل شيئ" او مظهري ورته بيان کړی دی حيث قال ای بعض جميع ماسئلتموه يعني اتاكم شيئا كائنا لان يسئل لاحتياج الناس اليه سئال او لم يسئل آه.

**پوه سه:** چي کلمه د ما يا موصوفه ده يا موصوله يا مصدريه لکن مصدر په معنى د مفعول دی، قال المظهري رح لفظة كل لمجرد التكثير لا للاستغراق والتعميم نحو فلان يعلم كل شيئ لان علم كل شيئ مختص به تعالى ليس الا الله.

**درويش وايي:** چي حاصل د کلام د ټولو مفسرينو يو دی اختلاف لفظي دی لکن تر ټولو داسي عبارت ويل چي مقصود ددې کلام مبالغه ده يا داسي ويل

چي مقصود استغراق عرفي دی به له اذهانو سره د متعلمينو ډېر انسب او فهم ته به اقرب وای که څه هم داسي وينا هم راجع و ماقالوا ته ده.

**فائده:** مظهري رح يو احتمال بعيد غاية البعد راوړی دی چي يجوز ان يكون كلمة ما نافية في موضع الحال. يعني اتاكم من كل شيئ والحال انكم ما سألتموه يعني اعطاكم اشياً ماطلبتموها ولا سألتموها انتهى فافهم.

وَإِن تَعُدُّواْ نِعۡمَتَ ٱللَّهِ لَا تُحۡصُوهَآۗ

او که تاسي جميع او ټوله نعمتونه د خدای ﷻ حساب کړئ، تاسي يې نه سئ حصر کولای او طاقت د علم پر ټولو ستاسي له دائرې څخه د طاقت وتلی شی دی حتی چي صرف انواع د دغو نعمتونو نسئ شمېرلای فضلاً عن افرادها فانها غير متناهية.

**سوال:** په آيت کي لفظ نعمت مفرد راغلی دی، نو ټوله نعمتونه څرنګه څني مراد کېدای سي؟

**ځواب:** اضافة النعمة الى الله للاستغراق.

**پوښتنه:** د نعمت الهي شکر خو پر بنده واجب دی فکيف يطيق العباد شکر هذه النعم الغير المتناهية؟

**ځواب:** اقرار په عجز سره عن شکر الکل شکره للکل ولهذا سمي الله تعالى بعض المؤمنين شکوراً لاعترافهم بالعجز عن الشکر.

**درويش وايي:** چي مجمل بيان د انواع د نعم د خدای ﷻ دادی چي نعم د خدای دوه قسمه دی المنافع کصحة البدن وتحت هذه الصحة افراد وجزئيات لکه صحت د زړه، صحت د پښو، صحت د لاسو، صحت د سترګو، صحت د غوږو، صحت د ملا، صحت د ځيګر الى غير ذالک من اجزا جسد الانسان، والامن: تر امن لاندي هم ډېر جزئيات سته، والعافية تر دي لاندي بيا جزئيات کثيره سته. والتلذذ بالمطاعم والمشارب وله ايضاً افراد لاتحصى. والمناکح والملابس والاموال والاولاد ولکل واحد من هذه الانواع جزئيات لاتحصى ونعمة دفع المضار من الامراض والفقر والشدائد الى غير ذالک.

**درویش وایي**: فما احسن قوله تعالی وان تعدوا نعمت الله لاتحصوها.

**إِنَّ الْإِنسَانَ لَظَلُومٌ كَفَّارٌ**

**پوه سه**: چي ظلوم او کفار دواړي صیغې د مبالغې دي.

**درویش وایي**: چي الف لام په الانسان کي لپاره د جنس دی په اعتبار د بعض افراده یعني هذه قضیة مهملة في فوق الجزئیة فلا یرد ان جمیع افراد الانسان لیس کذالک کالانبیاء علیهم السلام والاولیاء الکاملین رحمهم الله، ومعنی الظلوم چي دی شکایت کوي له خدای جل جلاله څخه په سختي او بلا کي او جزع کوي صبر نه لري، او په دې نه پوهیږي چي دا بلا چي ماته رسېدلې د هغه ذات له خوا ده چي جواد دی رحیم دی حکیم دی، نو هرو مرو په دې بلا کي یو حکمت سته وان لم یدرک الانسان المبتلی حکمته. او معنی د کفار شدید الکفران دی په نعمت کي او خوشالي او غنی او صحة البدن کي والاولاد والاموال کي وغیر ذالک من النعم الالهیة.

**وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّ اجْعَلْ هَٰذَا الْبَلَدَ آمِنًا**

او په یاد که خلکو هغه وخت چي ابراهیم (علیه السلام) وویل اې زما ربه وګرځوه دا ښار یعني مکة المکرمة ځای د امن (آمن صیغه د فاعل لپاره د نسبت) یعني له اهل څخه ددې بلد خوف د دښمن لیرې لري، نو مقصود په دې دعا کي بلدیت نه دی. ولي په دغه وخت کي مکه بلد وه بلکې مقصود امنیت دی او بل ځای په قرآن کریم کي چي داسي راغلي دي "رب اجعل هذا بلد آمناً" مقصود د سوال دادی چي دا شبله ښار وګرځوه له ښارو څخه چي په امن کي وي اهل یې.

**وَاجْنُبْنِي وَبَنِيَّ أَن نَّعْبُدَ الْأَصْنَامَ**

او ساتي او ګوښه کړې ما او زما زامن له دې څخه چي عبادت د بتانو به کوو.

**فائده**: له دې آیت څخه دا معلومه سوه چي عصمت د انبیاء علیهم السلام په توفیق د خدای جل جلاله دی وحفظه. ولهذا سئل ابراهیم علیه السلام السوال المذکور.

**پوښتنه**: د "بني" لفظ خو عام دی لمسیانو کړوسیانو ته وثم ته شامل دی کما في قوله تعالی یا بني آدم یا بني اسرائیل او سره ددې چي د ډېرو له اولادو څخه د

اسماعیل علیه السلام د بتانو عبادت کړې دی؟

**خواب:** "بني" لمسیانو وغیره ته نه دی شامل بلکې بالذات زامنو ته وایي او په هغه دوه آیته کي چي سائل استشهاد په کړی ؤ عموم مجاز دی.

**درویش وایي:** چي چونکه ابراهیم علیه السلام عبادت د اصنامو په ارض مقدس یعني بیت المقدس کي لیدلی ؤ نو په سبب ددې یې دا سوال وکړی چي دا بت پرستي زما زامنو ته په مکه کي سرایت ونه کړي.

**درویش وایي:** چي سفیان بن عیینة رحمه الله په دغه آیت سره دلیل وایی چي اولاد د اسماعیل علیه السلام تر پایه پوري عبادت د صنم نه دی کړی، لکن مظهري رح وایي چي دا قول دده مردود بکتاب الله وسنت نبیه واجماع امته والحدیث المتواتر چي حال د اهل مکه بیانوي فان المشرکین في کتاب الله عبارة عن اهل مکة غالباً وهم من ولد اسماعیل علیه السلام، وایضاً قال الله تعالی "وقال الذین اشرکوا لوشآ الله ما اشرکنا ولا آبائنا الآیة.

**درویش وایي:** چي تاریخ اسلامي وایي چي عرب له عصر څخه د ابراهیم ؑ پر دین د ابراهیم علیه السلام وه تر زماني پوري د عمرو بن لحي چي رئیس د خزاعة قبیلې ؤ، نو اول سړی چي دین د ابراهیم علیه السلام یې بدل کړی همدغه سړی ؤ، او همدغه عمرو بن لحي اول سړی ؤ چي بتان یې په داخل کي د کعبې مبارکې او شاوخوا ودرول او خلګ یې امر کړه په عبادت د اصنامو وقد جرت هذه السلسلة الی زمن النبي صلی الله علیه وسلم وهو صلی الله علیه وسلم اعلن التوحید ومنع الناس عن عبادة الاصنام.

**پوښتنه:** په سورت حٰمٓ الزخرف کي راغلي دي وجعلها (ای کلمة التوحید) کلمة باقیة في عقبه (ای اولاد ابراهیم) نو له دې آیت څخه دا فهمېږي چي ټوله اولاد د ابراهیم علیه السلام من الابنآ والاحفاد ثم وثم کانوا علی کلمة التوحید؟

**خواب:** صحیح داده چي دا آیت چي لفظ د عقب پکښې راغلی اقتضآ ددې نه کوي چي ټوله عقب د ابراهیم علیه السلام پر توحید وه بل غایة مایدل علیه الآیة المذکورة ان عقب ابراهیم علیه السلام في زمن من الازمان لم یخلوا عن التوحید که ډېر وي او که لږ حتی ولو کان فرداً واحداً وکان کذالک الی زمان النبي صلی الله علیه وسلم.

رَبِّ إِنَّهُنَّ أَضْلَلْنَ كَثِيرًا مِّنَ النَّاسِ

اې زما خدايه دغو بتانو گمراه کړه ډېر له خلگو څخه.

**پوه سه**: چي نسبت د اضلال و بتانو ته مجاز دی په اعتبار د سببيت يعني په سبب د عبادت د بتانو ډېر خلگ گمراهان سوه له حقي لارې څخه د توحيد و شرک ته.

فَمَنْ تَبِعَنِي فَإِنَّهُ مِنِّي وَمَنْ عَصَانِي فَإِنَّكَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ

نو که څوک متابعت زما وکړي په دين حق کي د توحيد هغه بعض زما دی په دنيا او آخرت کي حتى يدخل معي الجنة. او که څوک زما نافرماني وکړي په توحيد سره بلکي د شرک تناؤ ټينگ کړي نو ته خدای (ﷻ) غفور او رحيم يې.

**پوه سه**: چي بعض مفسران تقدير ددې آيت داسي بيانوي فاغفرله وارحمه فانک غفور رحيم، نو پر دې تقدير دعا د مغفرت ده د مشرک.

**سوال**: دعا د مغفرت وه مشرک بلکي نفس کافر ته خو نه ده روا؟

**ځواب**: دا دعا د ابراهيم عليه السلام هغه وخت وه چي خدای پاک دی نه ؤ خبر کړی چي انه تعالى لا يغفر ان يشرک به ويغفر مادون ذالک لمن يشاء" هغه وخت چي خدای پاک ابراهيم عليه السلام په عدم مغفرت د مشرک خبر کړی، نو يې داسي سوال وکړی وارزقهم من الثمرات من آمن منهم بالله واليوم الآخر. په دې سوال کي د ابراهيم عليه السلام گمان دا ؤ چي مشرک ته دعا د رزق نه ده روا ځکه خدای ﷻ د ده زعم رد کړی بقوله ومن کفر فامتعه قليلاً ثم اضطره الى عذاب النار الآية، حاصل د رد دادی چي رزق د دنيا پر عدم مغفرت د شرک نه دی قياس لان رزق الله في الدنيا يعم الكافر والمؤمن.

**درويش وايي**: چي فقير چي مذکوره ترجمه د آيت وکړه او توجيه د هغه يې هم په تفصيل سره وکړه، نو هغې توجيه او تفسير ته د سدي رحمه الله چي دی وايي معناه من عصاني ثم تاب فانک غفور الآية ضرورت نسته لانه معلوم في جميع الشرائع، وكذا لاحاجة الى تفسير مقاتل بل حيان رح من عصاني في مادون الشرک.

**فائده**: بعضي مفسرينو ددې آيت تفسير داسي کړی دی فانک قادر على مغفرته ويجوز منه تعالى مغفرة الشرک وانما المنع من مغفرته معلوم شرعاً

فامكان المغفرة باق قال النووي رح في شرح المسلم ان مغفرت الشرك كانت في الشرائع القديمة في اممهم وانما امتنعت في شرعنا انتهى.

**درويش وايي:** چي اكثره محققان علماً پر دې مذهب دي چي مغفرت د شرک لم تكن جائزة في شريعة من الشرائع لان الشرک قبيح ذاتاً فكيف يجوز مغفرته في شريعة من الشرائع.

**درويش وايي:** وعلى هذا فكلام النووي رحمه الله محمول على حذف المضاف يعني دعا مغفرت الشرک كانت جائزة في الشرائع القديمة وانما منعت في شرعنا وهذا صحيح لان النبي ﷺ كان يدعوا المغفرة لعمه ابي طالب حين مات مشركاً حتى نزل هذه الآية "ما كان للنبي ان يستغفر للمشركين ولو كان اولى القربى الآية" فترک الدعا لعمه.

**درويش وايي:** چي وهذا تأويل حسن لقول الامام النووي رح والتأويل اولى واحرى من رد كلامه بالكلية فافهم.

**رَبَّنَآ اِنِّیٓ اَسۡکَنۡتُ مِنۡ ذُرِّیَّتِیۡ بِوَادٍ غَیۡرِ ذِیۡ زَرۡعٍ عِنۡدَ بَیۡتِکَ الۡمُحَرَّمِ**

اې زمونږ پرورد گاره! ما سکونت ورکړی بعض ته د اولاد خپل چي اسماعيل[۴] او دده اولاد ږولي چي اسكان د اسماعيل عليه السلام متضمن اسكان لره د هغو هم دي "بواد" په يوه شېله کي چي مراد ځني وادي د مكة المكرمة ده چي يوه شېله وه په منځ کي د غرو چي ځای د کښت نه وه، ولي چي ځکه د مكة المكرمة ږېرينه ځمکه وه هيڅ کښت نه سوای پکښي کېدای البته غرنی درختي پکښي وې.

**فائده:** لفظ د متكلم مع الغير يې راوړی ولي دا آيت متعلق په ذريه پوري دی فالتعرض لوصف ربوبيته تعالى لهم ادخل في القبول.

**سوال:** "لا ما" لفظ يې نه ووايه؟

**ځواب:** له نفي ځخه د کښت نفي د اوبو لازمي دی اذ لا زرع بدون الما، په بحر العلوم کي وايي چي په اوسنی زمانه کي فقد رزق الله تعالى لاهل مكة ما جارياً يعني ما زمزم حتى بلغ ذالک الما الى المدينة وفي كل دور مكة ما زمزم وقريب من مكة قنات جاري لزينب رح.

**پوه سه:** چي لفظ د "عند" ظرف دی د "اسکنت" والمراد بها الكعبة المكرمة او اضافت د "بيت" و خدای ﷻ ته لپاره د تشريف د مضاف دی اذ لا مكان له تعالى لا في السموات ولا في الارض كما هو مذهب اهل السنة والجماعة بخلاف المجسمة.

**پوه سه:** چي په وخت کي د سوال د ابراهيم علیه السلام خو خونه د مکې نه وه البته موضع د بيت الله داسي يو لوړ ځای وو چي سېلونه چي به راغله شاه وخوا پر راګرځېدله او پر لوړ ځای چي د بيت الله ځای وو نه اوښتله. نو مراد د ابراهيم علیه السلام هغه بيت الله چي قبل الطوفان دالته وه.

وجه التسمية بالمحرم لانه عظيم الحرمة عند الله حرم الله التعريض له بسوء يوم خلق السموات والارض، او قتال يې په دې کي حرام ګرځولی دی او دغه رنګه ښکار د حرم مکي في جميع اطرافه الى ان ينتهي الحل، او دغه رنګه بېله احرامه دخول و مکې ته حرام دی، او بل طوفان نوح علیه السلام غلبه پر ونه کړه ولذا سمي عتيقاً، وفي الحديث المتفق عليه للبخاري ومسلم قال رسول الله ﷺ يوم فتح مكة ان هذا البلد حرمه الله يوم خلق السموات والارض فهو حرام بحرمة الله الى يوم القيامة، او نه دی روا جنګ د مکې والو سره هيڅ چا ته. او ماته جنګ لپاره د فتح نه دی روا سوی مګر يو ساعت د ورځي فهو حرام بحرمة الله الى يوم القيامة الى اخير الحديث.

**پوه سه:** چي ابن عساكر په سند د عامر بن سعيد عن ابيه داسي روايت کړی دی چي ساره رضي الله عنها چي د ابراهيم علیه السلام مابينه وه چي ډېره زمانه يې عيال نه کېدی يعني وچه وه، نو ددې پر ابراهيم علیه السلام زړه وسو چي عيال نه لري، نو د ساره مينځه چي هاجره يې نوم وُ او په قوم قبطيه وه و ابراهيم علیه السلام ته وبخښله.

(درويش وايي: چي دغه مينځه هاجره ساره ته له کومې پيدا سوې وه؟ دا قصه ډېره وږده ده چي په خپل ځای کي به راسي ان شا الله تعالى) نو دې هاجرې ته خدای ﷻ له ابراهيم علیه السلام څخه زوی ورکړی چي نوم يې اسماعيل پر کښېښو چي په نسب کي د آنحضرت ﷺ نيکه هم راځي، ساره ته په زړه کي غيرت غلبه وکړه

او په دې نه وه راضي چي هاجره زما سره يو ځاى وي، نو ابراهيم علیه السلام ته يې وويل چي هاجره به سره له زويه داسي ځاى ته بيايې چي هلته نه اوبه او نه انسان وي (درويش وايي: چي له دې قصې څخه دې خلګ بغض او عداوت د ښڅو وفهموي) ابراهيم علیه السلام ته په دې خبره کي ډېر درد ورغلی بيا هم په قرار د روايت د بخاري او بغوي له ابن عباس رضی الله عنهما څخه په امر د خداى جل جلاله ابراهيم هاجره او ددې زوى اسماعيل راوستل په شپله کي د مکې چي هاجرې و زوى ته خپل تې ورکاوه عند البيت اى الكعبة تر يوې غرنۍ درختې چي تر زمزم لوړې خوا ته وه پياده کړل.

**پوښتنه**: په دغه وخت کي خو کعبه نه وه بلکې صرف د کعبې ځاى يو لوړ ځاى ؤ چي وروسته ابراهيم ؑ په په مرسته د اسماعيل ؑ هوري کعبه بنا کړه کما سيئاتي ان شاء الله تعالى او نه په دغه وخت کي د زمزم څاه ؤ کما سيئاتي فكيف يصح قوله عند البيت فوق زمزم؟

**ځواب**: دا تسميه په اعتبار د مايؤل اليه ده يعني چي په وروسته کي به کعبه او زمزم دلته پيدا کېږي كما سيئاتي من قبيل قوله تعالى اني رئيت اعصر خمراً كما سيئاتي، راوي وايي چي په دغه وخت کي چي ابراهيم ؑ هاجره او اسماعيل ؑ د مکې په شپله کي پياده کړل په دې شپله کي د ابو يو غړپ هم نه ؤ او نه هيڅ انسان ؤ، ابراهيم علیه السلام يوه کڅوړه يا يوه توبره خورما او يو ژى (ګودى) د اوبو ورته کښېښو او ابراهيم علیه السلام څني راهي سو د شام پر خوا، نو د اسماعيل علیه السلام مور په پسې سوه او داسي يې ورته وويل يا ابراهيم اين تذهب؟ يعني ته چېرې ځې وتتركنا بهذا الوادي التي ليس بها انس ولا شيئ، او موږ پرېږدې په دې شپله کي چي په هغه کي هيڅ انسان نسته او نه يو شى يعني اوبه وغيره، ابراهيم علیه السلام چي زړه يې له غمه ډک ؤ هيڅ يې په ځواب کي ورته وه نه ويل او د اسماعيل علیه السلام مور څو واره مکرره دا خبره ابراهيم علیه السلام ته وکړه د ابراهيم علیه السلام سترګي د اوښکو ډکې او زړه يې له غمه ډک ؤ نه يې ورته وکتل او نه يې ځواب ورکاوه. اخير ام اسماعيل علیه السلام ورته وويل آلله امرک بهذا؟ آيا ته خداى پاک امر کړى يې په دغه سره؟ ابراهيم علیه السلام ورته وويل نعم! د اسماعيل علیه السلام مور وويل

اذا لا یضیعنا، چي خدای پاک درته ویلي دي نو خدای پاک موږ نه ضائع کوي. نو ځني راوګرځېدله. نو ابراهیم ﷺ داسي ځای ودرېدی چي ام اسماعیل نه لیدی، نو مخ یې د کعبې د جهت پر خوا کړی. نو لاسونه یې پورته کړه (کما هو من اداب الدعا) او دعا یې وکړه "رب اني اسکنت من ذریتي بواد غیر ذي زرع الی یشکرون" ام اسماعیل خپل زوی ته تی ورکاوه او خورما یې په خوړله او د مشکولا اوبه یې څښلې حتی چي د ژي اوبه ختمې سوې دا تږې سول او اسماعیل ﷺ هم تږی سو، ولي چي ددې شیدې قطع سوې او مور ورته کتل چي دی له تندې لغښتی او پر له پېچل کېدی. نو هاجره ﷺ د خپل زوی اسماعیل [۴] څخه رهي سوه، ولي چي دې طاقت د کتلو و زوی ته په داسي سخت حالت کي نه درلودی، نو نژدې غره صفا ته وختل نو پر غره یې شاوخوا وکتل چي ګوندي یو انسان ووېني خو په شېله کي یې هیڅ انسان نه ولیدی، نو له صفا څخه راکښته سوه لاندي تر صفا چي ژوره شېله وه قمیص یې راپورته کړی حتی چي په ځغاسته تر دې شېلې تېره سوه که څه هم اوس دا شېله نسته لکن د سعودي حکومت د ځغاستي ابتدا او انتها په دوه میله زرغونه سره معلومه کړې ده، بیا ام اسماعیل مروه ته ورغله پر هغه ودرېدل او شاوخوا یې وکتل هیڅ انسان یې ونه لیدی. حاصل دا چي اووه واره ام اسماعیل [۴] دا ځغاستې وکړې. قال ابن عباس ﷺ قال النبي ﷺ فلذالک سعی الناس بینهما (یعني سعي الحج والعمرة) اخیر وار چي ام اسماعیل پر مروه ودرېدله یو اواز یې واورېدی خپل ځان ته یې وویل "صه" چپ سه بیا یې غوږ ونیوی بیا یې اواز واورېدی. نو دې وویل اواز دي ما واورېدی ان کان عندک غواث. که ستا سره کومک وي فاذا هي بالملک عند موضع زمزم (اي بصورة انسان) نو هغه پنده کښېکښل اوبه را وخوټېدلې، نو ام اسماعیل را میدان کړه چابک چابک یې پر اوبو خاورې راجمع کولې چي ونه بهېږي او په ډېر تلوار یې خپل د اوبو ژی ځني ډک کړی اوبه سم له لاسه راوتلې. قال ابن عباس ﷺ قال النبي ﷺ رحم الله ام اسماعیل لو ترکت او قال لو لم تغرف من الما لکان زمزم عینا معینا (یعني چینه به وای جاري په شېله

کي د مکې) نو ام اسماعیل اوبه وڅښېلې او چې په تیږو کې یې شېدې پیدا سوې زوی یې په شیدو موړ کړی. نو هغې ملکي چې په صورت د انسان ودې ته وویل چې ته مه بېرېږه پر هلاک او ضائع والي، ولې چې پر هغه لوړ ځای بیت الله چې دغه ستا زوی او پلار یې یعني ابراهیم علیه السلام به یې بنا وکړي او خدای پاک نه ضائع کوي اهل ددې بیت الله تر ابده پورې یعني حتی یأتي امر الله تعالی نو هاجره او زوی یې د شپې او د ورځې دلته اوسېدله (خورک د هاجرې د بعض درختو بلگونه وه)

**تبصره:** درویش وایي چې انسانان باید د خدای جل سلطانه په عظمت او قدرت کې فکر ووهي چې سره ددې چې هاجره ښځه وه او یو کوچنی زوی اسماعیل ع ورسره په شپله کې د مکې چې شا وخوا غرونه پر راگرځېدلي وه او هیڅ انسان هورې نه وُ ډېرې شپې ډېرې شپې او ورځې یې په دغه شپله کې تېرې کړې خدای پاک یې په زړه کې دا قوت اینښی وُ چې نه د شپې او نه یې د ورځې د هیڅ خطره بېرېدله حتی چې زموږ یو نر چې قوي هم وي په داسې شپله کې چې یې پر بېږدې له بېرې به یې زهره وچوي وهذا الذي اعطاه الله لهاجر من قوة القلب وعدم الخوف في وادي مكة انموزج من قدرته تعالی، تبصره پای ته ورسېدله.

**بقية القصة:** راوي د بخاري وایي چې هاجره سره د زوی پر خپل ځاه د زمزم د خوشالۍ شپې او ورځې تېرولې، حتی چې یوه قافله د جرهم د قبیلې د کدا د لارې را روانه وه.نو د کدا په گښته برخه کې یې اړولي وه، نو دوی مرغان ولیدل چې د زمزم د اوبو پر شاوخوا گرځېدله، نو دوی په خپلو کې سره وویل چې دا مرغان خو حتماً پر اوبو گرځي او موږ خو لږ وخت د مخه پر دې شپلې د مکې تېر سوي وو چې په دې شپلې کې هیڅ اوبه نه وې، نو یو یا دوه کسه یې وروا ستول چې تاسې وگورئ چې په شپله کې د مکې یوه چینه پیدا سوې ده او که څرنگه خلگ راغله د زمزم چینه یې ولیدله چې یوه ښځه سره د خپل کوچني شیر خور زوی هورې ناسته وه، دې کسانو قافلې والو ته د اوبو خبر ورورې، نو قافلې وال راغله ام اسماعیل ته یې وویل چې موږ ته اجازه راکوې چې موږ ستا سره واړود

او خپلي کډې او ښځې دلته راولو؟ ام اسماعیل ورته وویل چې نعم لکن د اوبو د ملکیت دعوې به نه کوئ هغو ورته وویل نعم. قال ابن عباس رضی الله عنهما قال النبي ﷺ چې ام اسماعیل د دوی د کډو راتګ غنیمت وباله وهي تحب الانس، نو قافلې وال هلته پاته سوه او خلګ یې واستول چې کډې راولي نو کډې یې راوستلې او هورې یې واړول حتی چې څو کوره پر حوالي د زمزم جوړ سوه یعني بعضي خلګو خېمې و درولې او بعضو له غرني درختو څخه لرګي راوړل کوډلې یې جوړې کړې او ام اسماعیل ته یې هم یوه خېمه ورکړه تر څو چې اسماعیل علیه السلام ځوان سو او عربي ژبه یې له هغو څخه زده کړه ولې چې دده ژبه عبراني وه، او د اسماعیل علیه السلام ښه رنګ قد او قامت ؤ، نو چې بلوغ ته ورسېدی جرهمیانو یوه ښځه په نکاح ورکړه او څه زمانه وروسته ام اسماعیل وفات سوه.

**درویش وایي**: چې پاته قصه یعني راتګ د ابراهیم علیه السلام او بنا د بیت الله شریفې د سورت بقره په تفسیر کې تېره سوې ده.

## رَبَّنَا لِيُقِيمُوا الصَّلٰوةَ

**یوه سه**: چې کلمه د لام په "لیقیموا" کې متعلق په "اسکنت" پورې ده یعني ما چې خپل اهل په دې خالي شبلې کې واوړل چې هیڅ شی د رزق او نفع نسته پکښې ددې لپاره چې دوی اقامة الصلوة وکړی عند بیتک المحرم والمقصود من الدعا المفهوم من ربنا خواست دی د توفیق ددې د اقامة الصلوة.

## فَاجْعَلْ اَفْئِدَةً مِّنَ النَّاسِ

ته وګرځوه زړونه د بعضې خلګو

**فائده**: "افئدة" جمع د فواد ده وهو القلب او کلمه د من لپاره د تبعیض ده، مجاهد رحمه الله لو قال افئدة الناس یعني کلمه د تبعیض یې نه وای راوړې ستاسې سره به مزاحمت کولای پر بیت الله باندې فارس، روم، ترک او هند. او سعید بن جبیر رضی الله عنه وایي چې حج به کولای الیهود والنصاری والمجوس لکن ده چې کلمه د تبعیض وویل فهم المسلمون في کل زمان.



Scanned by CamScanner

تَهْوِيْ إِلَيْهِمْ وَارْزُقْهُمْ مِّنَ الثَّمَرٰتِ لَعَلَّهُمْ يَشْكُرُوْنَ ﴿۳۷﴾

چي ميل کوي په محبت تامه و اهل ته د مکې او دوی ته په رزق ورکړي ميوې سره ددې چي دوی په وادي غير ذي زرع کي دي يعني داسي ميوې لکه د هغو خلګو چي په قری ذوات الماٰ کي استوګنه لري، لپاره ددې چي دوی يعني اهل مکه شکر وايي د دغه نعمت د ميوو فاجاب الله دعائه فجعله حرماً آمناً يجبى اليه ثمرات کل شيئ کمامر عنقريب.

**درويش وايي:** چي په اثر د دعاٰ د ابراهيم عليه السلام هر وخت د اطرافو او اکنافو څخه ميوې په کثرت په څلور سره فصله کي د پسرلي، دوبي، مني او ژمي په مکه کي موجودي وي.

**درويش وايي:** چي له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چي طائف چي درې مزله له مکې څخه لېرې واقع دی او هره ميوه پکښي سته او جاري اوبه هم لري اصلاً يوه قريه د فلسطين وه څه وخت چي ابراهيم عليه السلام دا خواست وکړی "وارزقهم من الثمرات" خدای پاک په خپل قدرت سره هغه قريه راوړل پر موجوده ځای يې کښېښول رزقاً لاهل مکة او په بعضې رواياتو کي راغلي دي چي جبرائيل عليه السلام په امر د خدای جل جلاله دا قريه راوړل او اووه واره يې طواف د بيت الله شريفي په وکړی او پر موجوده ځای يې کښېښو ولذالک يسمى بالطائف، والله اعلم، حضرت مولى جامي قدس سره وايي:

رو بحرم نه که دران خوش حريم ......... هست سيه پوش نګاری مقيم
قبله خوبان عرب روی او ......... سجده شوخان عجم سوی او

رَبَّنَآ إِنَّكَ تَعْلَمُ مَا نُخْفِيْ وَمَا نُعْلِنُ

اې ربه زموږ! په تحقيق ته خبر يې په احوال او مصالح زموږ چي موږ يې پټ ساتو او که يې ښکاره کوو، مطلب له دې جملې څخه دادی چي موږ چي ستا څخه سوالونه کوو او خپل حاجتونه در څخه غواړو ددې سبب نه دی چي زموږ هر حاجت تاته نه دی معلوم بلکې په دعاٰ کي زموږ غرض اظهار د عبوديت او او

اظهار د احتیاج دی ستا و رحمت ته او تعجیل دی لپاره د میل ما عندک که څه هم موږ پوهېږو چي ته یا الله ارحم بنا من انفسنا یې. نو طلب ته باید ضرورت نه وای لکن پر بنا د هغه آیت ادعوني استجب لکم موږ لاسونه د ضراعت او عاجزۍ تاته پورته کړي دي. سعدي شیرازي قدس سره وایي.

تانگرید ابر کی خندد چمن ........ تا نگرید طفل کی جوشد لبن

وَمَا يَخْفَىٰ عَلَى اللَّهِ مِن شَيْءٍ فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاءِ ﴿٣٨﴾

او نه پټېږي پر خدای (ﷻ) باندي یو شی په مځکه او نه په اسمان کي.

**پوه سه:** چي مراد د مافي الارض نباتات، حیوانات، معدنیات وغیرها دي او مراد له مافي السما ځنځه ملائکه کرام، لمر، سپوږمۍ، ستوري وغیرها دي.

الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي وَهَبَ لِي عَلَى الْكِبَرِ إِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ

حمد او ثنا دي وي الله (ﷻ) لره هغه الله چي ماته یې هبه یعني راکړه سره له کبر سن او چي نا امیده وم له اولاد ځنځه نه ستا د قدرت پر بنا بلکې د خپل سن په تقاضا او په دې آیت کي لفظ "وهب" اظهار دی د عظیم قدرت د خدای ﷻ ورنه د عالم اسباب په لحاظ ولادت زما له کبر السن ځنځه د پر لیري ؤ.

**پوه سه:** چي ابن عباس رضي الله عنهما وایي چي ابراهیم ؑ د اسماعیل ؑ د ولادت په وخت کي د نهه نیوي (۹۹) کالو ؤ، او د اسحاق ؑ د ولادت په وخت کي د یو سل او دوولس (۱۱۲) کالو ؤ، او سعید بن جبیر رحمه الله وایي چي ابراهیم ؑ د اسحاق ؑ د تولد په وخت کي د د یوسل او اوولس (۱۱۷) کالو ؤ کذا اخرج ابن جریر رحمه الله.

إِنَّ رَبِّي لَسَمِيعُ الدُّعَاءِ ﴿٣٩﴾

په تحقیق زما خدای اورېدونکی د دعا دی.

**پوه سه:** چي مراد له اورېدلو ځنځه اجابت دی في محاورة العرب کما یقال سمع الملک کلامي یعني زما حاجت یې له سره کړی.

**فائده:** چي سیبویه رحمه الله وایي چي "سمیع" صیغه د مبالغې ده چي عمل کوي لکه فعل مضاف ده په آیت کي و مفعول ته.

**درویش وایي**: چي له دې آیت څخه دا معلومه سوه چي ابراهیم ؑ له خدای ﷻ څخه طلب د ولد کړی ؤ لکن خدای پاک اجابت لپاره اظهار د عظیم قدرت په حال کي نا امیدي د ابراهیم ؑ وکړی لان النعمة بعد الیاس الذ. جامي ؒ مېګوید:

چه خوش باشد که بعد از انتظاری ...... با امید رسد امیدواری

رَبِّ اجْعَلْنِي مُقِيمَ الصَّلٰوةِ وَمِنْ ذُرِّيَّتِيْ

اې ربه زما وګرځوې ما ادا کونکی د لمانځه په تعدیل د ارکانو او واجباتو او آدابو او مداوم او محافظ د لمانځه.

**پوه سه**: چي اقامت د لمانځه ماقلنا ته وایي او قیام د لمانځه د مطلق کولو ته د لمانځه وایي، ولهذا په وصف کي د مؤمنانو یا د فعل په صیغه د باب د افعال په قرآن کي راځي مثل "ویقیمون الصلوة" یا په صیغه د اسم فاعل راځي مثل "ماهنا مقیم الصلوة" ځکه علما وایي چي مقیمین الصلوة لږ دي او کونکي د لمانځه ډېر دي.

**پوه سه**: چي "ومن ذریتي" جار ومجرور عطف دی پر مفعول د "اجعلني آه" او کلمه د "من" تبعیضیه ده. والمعنی وګرځوې یا رب بعض له اولادو څخه زما هم مقیمي الصلوة.

**سوال**: ابراهیم ؑ د بعض ذریت لپاره خواست وکړی؟

**ځواب**: خدای پاک دی خبر کړی ؤ چي ستا په اولاد کي به کافران هم وي کما یدل علیه قوله تعالی لابراهیم ؑ "لاینال عهدي الظالمین"

رَبَّنَا وَتَقَبَّلْ دُعَآءِ

او خدایه زما ته قبوله کړې دعا زما.

**پوه سه**: چي کسره د همزه دال پر یای محذوفه ده. او یعقوب ؒ چي له قرا سبعه وو څخه دی په اثبات د یا یې وایي په حال د وصل او د وقف.

**درویش وایي**: چي وروی في الحدیث الصحیح الذي رواه البخاري و اصحاب السنن الاربعة بعضهم عن انس ؓ وبعضهم عن البرا بن عازب ؓ قال رسول

اللهﷻ الدعا مخ العبادة" چي دعا او سوال د خدای ﷻ د عبادت مغز دی لان المقصود من العبادة اظهار التذلل الی الله عزوجل، والدعا اصرح في ذالک الاظهار.

رَبَّنَا اغْفِرْ لِي وَلِوَالِدَيَّ

**پوه سه**: چي مظهري رحمه الله وايي چي له دې آيت څخه دا معلومه سوه چي والدين د ابراهیم علیه السلام مسلمانان وه "لان دعا المغفرة لايجوز للكافر" او دی وايي چي آذر د ابراهیم علیه السلام پلار نه ؤ بلکې اکا يې ؤ او د ابراهیم علیه السلام پلار تارخ نومېدی يعني پلار يې مسلمان ؤ او اکا يې کافر ؤ، مظهري رح دا دليل ويلی دی چي دلته يې "وٰالدي" ويلی دی چي معنا يې داده چي دوی حقيقةً زه زېږولی يم ابوی يې نه ووايه لان الاب يطلق مجازاً علی العم آه.

**درويش وايي**: چي روح البيان وايي چي وهذا الاستغفار انما كان قبل تبين الامر له عليه السلام يعني قبل از نهي ؤ، او په تفسير کواشي کي وايي استغفار لوالديه وهما حيان طمعاً في هدايتهما نو معنی داده چي ته خدای دوی مسلمانان کې او بخښه د کفر ورته وکړې، او بعض مفسرين وايي چي د ابراهیم علیه السلام مور مسلمانانه وه فاراد اسلام ابيه، وفي روح المعاني ای لامي وابي وكانت امه مؤمنة فلا اشكال في الاستغفار لها واما استغفاره لابيه فقد قيل في الاعتذار عنه انه كان قبل ان يتبين له انه عدو لله سبحانه، وفي تفسير الخازن انه عليه الصلوة نوی شرطية الاسلام التوبة يعني دوی ژوندي وه، نو د ابراهيم ع غرض دا ؤ چي که دوی اسلام راوړي او له شرکه توبه وکاږي ته بخښه ورته وکړې ومثل هذا الاستغفار جائز للكافر كما لايخفی، او امام دميري په حيوة الحيوان کي وايي چي په حديث شريف کي راغلي دي چي ابراهيم ع د خپل پلار آذر سره ملاقي سي په ورځ د قيامت او پر مخ د آذر تورروالی او گرځ وي، نو ابراهيم علیه السلام ورته ووايي "الم اقل لک لاتعصيني" ما تاته نه وه ويلي يعني په دنيا کي چي ته زما څخه عصيان مه کوه يعني ايمان راوړه، نو پلار يې ورته ووايي چي ننه ورځ دي عصيان نه کوم، نو ابراهيم علیه السلام خدای پاک ته وايي "يارب انک وعدتني ان لاتحزني يوم يبعثون فای خزي من ابی ان يكون في النار فيقول الله

تعالى اني حرمت الجنة على الكافرين الى اخير الحديث.

**زباړه:** اې خدایه زما تا زما سره وعده کړې وه چې تا نه رسوا کوم او نه دې ذلیل کوم په هغه ورځ چې خلګ بعث کېږي یعني بعد الموت. نو تر دې لویه رسوایي او ذلت به چېرې وي زما تر پلار چې په اور کې وي. خدای پاک ورته ووايي چې ما حرام ګرځولې دی جنت پر کافرانو. یعني ستا پلار کافر ؤ او جنت ما حرام کړی دی پر کافرانو.

**درویش وايي:** چې دا ؤ تحقیق ددې آیت بحسب الوسع والطاقة ونقل اقوال المفسرین رحمهم الله والعلم عند الله العزیز العلام. او دا آیت چې په سورة توبه کې راغلی دی "وَمَا كَانَ ٱسْتِغْفَارُ إِبْرَٰهِيمَ لِأَبِيهِ إِلَّا عَن مَّوْعِدَةٍ وَعَدَهَآ إِيَّاهُ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُۥٓ أَنَّهُۥ عَدُوٌّ لِّلَّهِ تَبَرَّأَ مِنْهُ ۚ إِنَّ إِبْرَٰهِيمَ لَأَوَّٰهٌ حَلِيمٌ ﴿١١٤﴾ ښه په غور سره مطالعه کړئ حتی یتبین لکم الحال.

وَلِلْمُؤْمِنِينَ يَوْمَ يَقُومُ ٱلْحِسَابُ ﴿٤١﴾

او بخښنه وکړې ټولو مؤمنانو ته هغه ورځ چې شروع کېږي حساب یا ښکاره کېږي چې ورځ د قیامت ده بالاجماع.

**درویش وايي:** چې د مؤمنانو بخښنه یې نه وغوښتل ولې چې ښځې تبع دي د نرانو في اکثر آیات القرآن کما لایخفی علی قاري القرآن العزیز.

وَلَا تَحْسَبَنَّ ٱللَّهَ غَٰفِلًا عَمَّا يَعْمَلُ ٱلظَّٰلِمُونَ ۚ

ته ګمان مه کوه پر خدای (جل جلاله) باندې چې غافله دی له هغه عملو څخه چې ظالمان یې کوي یعني په سبب د امهال د خدای جل جلاله و ظالمانو ته چې دا منشأ د توهم د غفلت ده.

**پوه سه:** چې غفلت عدم العلم دی پر حقیقت د کارو.

**تنبیه:** خطاب په "تحسبن" کې یا علیه الصلوة والسلام ته دی.

**سوال:** آنحضرت صلی الله علیه وسلم خو دا حسبان هرګز نه کاوه، نو د نهي څه فائده ده؟

**خواب**: هو! خو مقصود تینګول دي د علیه الصلوة والسلام پر دې باندي چي خدای پاک مطلع پر احوالو او افعالو د ظالمانو دی لانه لایخفی علیه تعالی خافیة. عذاب ورکوي پر قلیل او کثیر لامحالة. او یا مخاطب هغه کسان دي یعني هر هغه سړی چي توهم د غفلت د خدای ﷻ کوي په سبب د جهل په صفاتو د خدای ﷻ من انه لایخفی علیه ذرة في السموات والارض. او یا په امهال د خدای غولېدلي وي چي دا ګمان کوي او په حقیقت کي دا آیت تسلي ده و علیه الصلوة والسلام ته او تهدید دی و ظالمانو ته.

إِنَّمَا يُؤَخِّرُهُمْ لِيَوْمٍ تَشْخَصُ فِيهِ الْأَبْصَارُ ﴿٤٢﴾

**پوه سه**: چي دا جمله استیناف بیاني یعني ځواب د سوال مقدر دی چي خدای غافله نه دی، نو ولي عذاب نه پر نازلوي، حاصل د ځواب دادی چي خدای ﷻ ددوی عذاب و لویه ورځ ته ځنډولی دی چي ورځ د قیامت ده چي په هغه ورځ کي به دهول او بېري څخه سترګي د ظالمانو رډي پاته وي یعني رپولای به یې نه سي او بعض مفسرین وایي چي سترګي ددوی به له ډېره غالبه څخه د باندي راوتلي وي.

مُهْطِعِينَ مُقْنِعِي رُءُوسِهِمْ لَا يَرْتَدُّ إِلَيْهِمْ طَرْفُهُمْ ۖ وَأَفْئِدَتُهُمْ هَوَاءٌ ﴿٤٣﴾

"مهطعین" قتاده ؒ وایي چي معناه مسرعین الی الداعي، او مجاهد وایي کتل به یې یو شي ته همېشه وي لایرتد الیهم طرهم کما في آیة اخری، او بعض وایي مسرعین لایلتفتون یمنیاً وشمالاً ولا یعرفون مواطن اقدامهم مثال یې نه ورځ د ګاډوی اسان دی فافهم، او قاموس والا وایي چي "هطع" هطوعاً اسرع مقبلاً خائفاً او اقبل ببصره علی الشیئ لایقلع عنه، پورته یې نیولي وي سرونه، او حسن بصري رحمه الله وایي چي مخان د خلګو به په ورځ د قیامت د آسمان و خوا ته وي لاینظر احد الی احد په سبب د ډېر خوف، نه سي کتلای و خپلو ځانو ته بلکي سترګي به یې شخي ولاړي وي رپولای یې هم نسي، او زړونه ددوی به خالي د عقل او فهم څخه په سبب د ډېر دهشت او حیرت، محاروه عربیه، و بې عقل او احمق ته دوی وایي قلبه هواً لارئ فیه ولا قوة. او قتاده رحمه الله یې داسي تفسیر

کړی دی چي زړونه به يې له ځيګر څخه راپورته سي وکرنګي ته نه به تر خوله راوځي او نه به خپلو ځايو ته تلای سي وقيل غير ذالک.

## وَأَنذِرِ النَّاسَ يَوْمَ يَأْتِيهِمُ الْعَذَابُ

وبېروه ته يا محمد (عليه السلام) خلګ په ورځ يعني د قيامت چي رابسي ودوی ته عذاب او يا له ورځ څخه د مرګ چي دا ورځ اول ورځ د شروع د عذاب ددوی لان القبر اول منازل الآخرة او يا له عذاب عاجل څخه د دنيا.

## فَيَقُولُ الَّذِينَ ظَلَمُوا رَبَّنَا أَخِّرْنَا إِلَىٰ أَجَلٍ قَرِيبٍ

نو وبه وايي هغه کسان چي ظلم يې کړی بالکفر والمعاصي ای زمونږ ربه مونږ ته مهلت راکړه په دنيا کي او يا معنی دا چي وځنډوه عذاب او مونږ دنيا ته رد کړه تر لږ زمانې پوري يعني دومره مقدار چي مونږ ايمان راوړو او ستا د نبي دعوت قبول کړو.

## نُّجِبْ دَعْوَتَكَ وَنَتَّبِعِ الرُّسُلَ

دا ځواب د امر دی يعني اخرنا چي مونږ قبول کړو دعوت ستا او مونږ متابعت وکړو د رسولانو ، ورته آيت کريمه په بل ځای کي د قرآن عزيز داسي راغلی دی لَوْلَا أَخَّرْتَنِي إِلَىٰ أَجَلٍ قَرِيبٍ فَأَصَّدَّقَ وَأَكُن مِّنَ الصَّالِحِينَ ﴿١٠﴾ په ځواب کي ددوی خدای پاک وايي.

## أَوَلَمْ تَكُونُوا أَقْسَمْتُم مِّن قَبْلُ مَا لَكُم مِّن زَوَالٍ ﴿٤٤﴾

آيا نه واست تاسي چي قسم مو اخستی و يعني په دنيا کي چي نسته تاسي لره زوال.

**پوه سه:** چي "مالکم آه" جواب د قسم ددوی دی جا بلفظ الخطاب للمطابقة لقوله تعالی تکونوا واقسمتم لالحکاية قولهم لان قولهم مالنا من زوال.

**درويش وايي:** چي د "مالکم من زوال" مظهري رح دا ترجمه کړې ده چي مونږ به باقي په دنيا کي يو مرو به نه آه، او روح البيان يې ورته ترجمه کړې ده مما انتم عليه من التمتع بالحفوظ الدنياوية آه.

**درويش وايي**: چي دا تولي ترجمې پر دې دلالت چي دوی په خوله دا خبره کوله وهذا بعيد لان الموت كان معلوماً بداهةً لهم من موت آبائهم واجدادهم فكيف ينكرون موت الدنيا. وما قال المظهري رح لعلهم قالوا ذالک بطراً وغروراً لايجدي نفعاً في دفع السؤال، د فقير په نيز هغه ترجمه اولى او اقرب الى الصواب ده چي نامورو مفسرينو رحمهم الله وروسته کړې ده چي دا قسم ددوی مالهم من زوال من الدنيا په زبان حال او په دلالة الافعال ددوی ده چي دوی به ګچ کړي کوټې جوړولې او په ډبرو به يې ډېوالونه پورته کوله. یا په سيخ او کانګرېټو به يې بنګلې جوړولې، نو ګويا دوی په زبان حال دا ويل او قسم يې اخستی چي موږ به په دنيا کي باقي يو او مړو به نه. او بل هغه معنی چي بيا نامورو مفسرينو تولو کړېده چي دوی قسم اخستی چي موږ له دار دنيا څخه و بل دار ته چي قيامت دی نقل کېږو چي معنی يې انکار د بعث بعد الموت دی وهم كانوا على ذالک المذهب المذكور ډېره زېباده کما قال الله تعالى "واقسموا بالله جهد ايمانهم لايبعث الله من يموت" وروى هذا الجواب عن مجاهد رحمه الله.

**درويش وايي**: چي پر هر تقدير لفظ د من زائد لپاره د تاكيد د نفي دی کما صرح به المفسرون بالاجماع.

**پوښتنه**: اوله معنی چي نامورو مفسرينو کړې ده آيا بې ځايه اوغلطه معنی ده؟

**ځواب**: د اولې معنا تصحيح په دې ډول کېدای سي چي انبياء عليهم السلام دوی ته په کراتو مراتو دا ويل چي دا ژوند د دنيا بې بقا دی او دوی به يې ډېر سوخته کړل او وينه د غضب به ددوی پر جوش راغله. نو به يې قسم واخستی مالهم من زوال من هذه الحيوة الدنيا.

**تجربه**: حالت د غضب چي انتها ته ورسېږي هر رنګه که خبري که څه هم له عقل څخه لېري وي د سري تر خوله يې باسي کما يدل عليه التجربة چي له مسلمان څخه په حال کي د سخت غضب کلمه د کفر تر خوله وځي.

**درويش وايي**: چي دا نهايته توجيه وه د تصحيح د معنى اولى والعلم عندالله.

وَسَكَنتُمْ فِي مَسَٰكِنِ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ وَتَبَيَّنَ لَكُمْ

او تاسي اوسېدل کړي وه (من السكنى بمعنى الاقامة) په وطنو او په ځايو کې د اوسېدلو د هغو کسانو چې ظلم يې کړی ؤ پر خپلو ځانو بالكفر والمعاصي ممن كان قبلكم قوم نوح وعاد و ثمود وغيرهم الذين اهلكهم الله بالاستيصال.

**يوه سه:** چې مفعول د "تبين" محذوف دی بدلالة الكلام والتقدير تبين لكم حالهم يعني په ليدلو د آثارو د منازلو ددوی او د تاريخ په پاڼو کې ثبت سوي احوال ددوی.

كَيْفَ فَعَلْنَا بِهِمْ وَضَرَبْنَا لَكُمُ ٱلْأَمْثَالَ ﴿٤٥﴾

چې موږ څه کار وکړی په دوی سره يعني لم ينزجروا من الكفر والمعاصي فاهلكناهم بالمرة. يعني بايد تاسي موجودين کافران د هغو له کړو وړو څخه پند واخلئ. او موږ بيان کړي دي تاسي لره احوال د هغو کافرانو پر ژبه د رسولانو چې د هغو تائيد د رسالت په معجزاتو سره کړل سوی ؤ.

سعدي شيرازي قدس سره وايي:

پند گير از مصائب ديگران ....... تا نه گيرند ديگران زتو پند
نرود مرغ سوی دانه فراز ....... چو ديگر مرغ بيند اندر بند

**يوه سه:** چې و احوالو ته د کفر ماضيين امثال ووايه لان احوالهم في الغرابة كالامثال المضروبة في الامور الغريبة النادرة.

وَقَدْ مَكَرُوا۟ مَكْرَهُمْ

بعض مفسرين چې د "مكروا" ضمير راجع و کفارو ته د مکې دی چې دوی مکر وسنجاوه په شان کې د نبي عليه السلام په دار الندوة کې چې بعضو وويل چې بندي به يې کړو بعضو وويل چې له مکې څخه به يې فرار کړو، بعضو وويل چې قتل به يې کړو. نو پر دې تقدير ضمير مجرور د "مكرهم" راجع دی و هغه چا ته چې ضمير مرفوع په مكروا کې راجع دی يعني کفار د مکې وح ء فالمعنى انهم مكروا مكرهم البليغ چې دوی خپل تمام کوشش پکښې مبذول کړی ؤ لپاره د ابطال د حق چې دين

د اسلام ؤ او اثبات د باطل چي شرک د مکې والو ؤ، ویرد علی ذالک التفسیر ان کفار مکة وان فعلوا ومکروا بالنبي ﷺ ودین الاسلام ذالک المکر المذکور لکن لاتعلق له بهذا المقام کما لایخفی. ولې چي ماقبل کلام په کفارو کي د امم سابقه ؤ او بل دا ده چي د مکروا او مکرهم په ضمیر کي اضمار قبل ذکر المرجع لازمېږي لان کفار مکه لم یذکرو فیما قبل القریب. فالاولی ماقال صاحب روح البیان حیث قال ای فعلنا بالذین ظلموا ما فعلنا والحال انهم قد مکروا في ابطال الحق وتقدیر الباطل مکرهم العظیم الذي استفرغوا في عمله المجهود وجاوزوا فیه کل حد معهود آه. او صاحب د روح المعاني دغه احتمال او معنی مختاره کړې ده چي دی وایي د قد مکروا مکرهم په تفسیر کي حال من الضمیر الاول في فعلنا بهم او من الثاني او منهما وبین معنی الآیة والحال انهم قد مکروا في ابطال الحق الی اخیر ما قال صاحب روح البیان چي نژدې تېر سو، او مظهري نسبت و ځان ته کړی دی حیث قال وعندي ان الجملة معطوفة علی قوله وسکنتم. والضمیر المجرور راجع الی الموصول یعني الذین ظلموا، والمراد الکفار السابقون آه. لکن روح البیان یوه لویه قصه راوړې په تفسیر کي ددې آیت او نسبت یې و علي رضي الله عنه ته کړی دی چي دا آیت په قصه کي د نمرود جبار نازل سوی دی بیا یې هغه قصه په ډېر بسط سره راوړې ده لکن صاحب د روح المعاني ص ۲۵۲ کي وایي وما روی من قصة نمرود بن کوش بن کنعان چي د څلورو بانبو مرغانو په مرسته ځان و قرب ته د اسمان ورساوه آه. دی وایي چي دا داسي قول دی چي ظاهر د لفظ القرآن ابا ځنی کوي وبعید جداً، وقال ان الخطر في ذالک عظیم ولایکاد العاقل یقدم علیه. او په هیڅ حدیث معتمد صحیح کي نه دی راغلی ولاحاجة في تأویل الآیة الیه. روح المعاني وایي چي ددې خبري نسبت که څه هم و حضرت علي رضي الله عنه ته کړل سوی دی یا نورو رواتو ته لکن اسانید د هغو ضعیف دي الی اخیر ما قال من رد القول المذکور ثم قال في اخیره والله تعالی اعلم.

**درویش وایي:** چي ما اقوال د تفاسیر مذکوره وو را نقل کړل. نو زه هم وایم چي والله اعلم بالصواب والیه المرجع والمآب.

وَعِنْدَ اللّٰهِ مَكْرُهُمْ ط

يعني مكتوب دی په نېز د خدای (جل جلاله) مکر ددوی، نو خدای (جل جلاله) به جزا ورکړي د دوی او یا معنی داده چي په نېز د خدای جل جلاله مکر سته چی جزا د مکر ددوی به په مکر سره ورکړي. وقد مر ان اطلاق المکر علی فعله تعالی مشاکلة.

وَاِنْ كَانَ مَكْرُهُمْ لِتَزُوْلَ مِنْهُ الْجِبَالُ ﴿٤٦﴾

که څه هم دی مکر ددوی يعني الشرک عظيماً شديداً بحيث نزول منه الجبال.

**پوه سه**: چي تزول منه الجبال کناية له عظمت څخه د شرک ددوی کما في قوله جل ذکره تخر الجبال هداً ان دعوا للرحمن ولداً.

**درويش وايي**: چي هغه قصه طويله چي روح البيان راوړې ده، او روح المعاني په شدت سره رد کړې ده مظهري په نقل له بغوي څخه هم راوړې ده لکن په اخير کي يې ويلي دي وهذه القصة يأبى عنها العقل ولم يثب بنقل يعتمد عليه.

**درويش وايي**: چي ولنعم ما قال صاحب روح المعاني في امثال هذه القصة وقد شاع تلک من اخبار القصاص وخبرهم مدفوع عن القبول وان طاروا الى النسر الطائر انتهى پـه اوسنی زمانه کي هم بعض بېعلمه امامان يا خطيبان ورته د درواغو قصې عوامو ته کوي، او ده پر سترګو توري عينکي اېښې وي چي خلګ مي سترګي ونهويني او د ژړا په لهجه دغه د دروغو قصې کوي د عوامو دا خيال وي چي خطيب صاحب ژاړي نو دوی پر ژړا متاثر اېښې وي والى الله المشتکی من صنيع هؤلاء الخطباء الجامعين للنقود بالکذب على الله وعلى الرسول.

**فائده**: کسائي او ابن جريج رحمهما الله کلمه د "لتزول" په فتح د لام لپاره د تاکيد او تزول په رفع سره وايي او لفظ د ان مخفف له مثقل څخه بولي، او ضمير شان ورسره محذوف بولي، والتقدير انه ای الشان کان مکرهم ای شرکهم عظيماً شديداً بحيث تزول منه الجبال، او جمهور قرأ لام د "لتزول" په کسره وايي او تزول منصوب وايي په ان مقدره سره وروسته د حرف جر ده لتزول کما هو القانون النحوي من ان الحروف الجارة لاتدخل على الافعال فلابد من تقدير ان او یا ان مخفف د مثقل دی او لفظ د کان تامه دی او لام په معنی د کی دی فافهم، والمراد

بالجبال شرائع الانبياء وايات الله التي هي كالجبال في الثبات والدوام حسن بصري وايي چي مكر ددوى اضعف من ان تزول منه الجبال بل هو محال.

فَلَا تَحْسَبَنَّ اللّٰهَ مُخْلِفَ وَعْدِهٖ رُسُلَهٗ

ته مه کوه گمان ای مخاطبه غیر معینه پر خدای (جل جلاله) چي خلاف دي وکړي د خپلي وعدې چي د رسولانو دده سره يې کړې ده بالنصر لرسله وهلاک اعدائه، کریمه "انا لننصر رسلنا" کریمه "کتب الله لاغلبن انا ورسلي" کریمه "لنهلكن الظالمين ولنسكننكم الارض من بعدهم.

**پوه سه:** چي "مخلف وعده" مفعول ثاني د "تحسبن" او "رسله" يې مفعول اول دی. مفعول ثاني چي يې تر اول دمخه کړی دی لپاره د تنبيه پر دې چي خدای جل جلاله د هيڅ چا سره خلاف الوعد نه کوي فضلاً مع الرسل.

اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ ذُو انْتِقَامٍ ﴿۴۷﴾

په تحقيق خدای (جل جلاله) دی د چا مکر پر ده نه چلیږي، خاوند د کسات د دوستانو لپاره له دښمنانو څخه.

يَوْمَ تُبَدَّلُ الْاَرْضُ غَيْرَ الْاَرْضِ وَالسَّمٰوٰتُ

هغه ورځ چي بدل کړل سي مځکي په بله مځکه او اسمانونه.

**پوه سه:** چي "يوم" منصوب دی محلاً په "اذكر" مقدر سره كما هو التفسير الشائع في امثاله من القرآن، "والسموات" عطف دی پر "ارض" باندي والتقدير والسموات غير السموات ولم يذكره لدلالة ماقبله عليه.

**پوه سه:** چي تبديل گاهي په ذات کي وي لکه په دې قول کي بدلت دارهم بالدنانير، والمراد في قوله تعالى في حال الجهنميين بدلناهم جلوداً غيرها او گاهي په صفت کي وي نحو بدلت الحلقة خاتماً.

**فائده:** په تبديل کي د مځکي او اسمانو احاديث راغلي دي چي بعض يې پر تبديل د ذات دلالت او بعض يې پر تبديل د صفاتو دلالت کوي، والآية ليست بنص في احد الوجهين وفي حديث ابن عباس رضي الله عنه چي د مځکي تبديل دادی چي بعض

ځايونه زیاتوب پکښي وسي او بعض ځايونه کمښت، يعني غرونه، غونډۍ، شيلي او درختي ټولي د مځکي ولاړي سي او مځکه سره کش سي لکه يو څوک چي څرمن کشوي چي فراخه سي، نو ټوله مځکه يو رنګ سي نه لوړه او نه جوره پکښي وي. لکه اميان چي وايي چي مځکه يوه هګۍ سي او تبدل د اسمانو دادی چي لمر او ستوري او سپوږمۍ ورک سي والحاصل بغير كل واحد عما عليه في الدنيا.

**درويش وايي:** چي دا تفسير تفسير د فهم د متعلمينو ډېر زيبا دی، والاحاديث الدالة على تغيير الذات او تغيير الصفات قد اورد المظهري في نحو ثلث صفحات وفي نقلها بالعربية وترجمتها باللغة الافغانية تطويل كثير لا يليق بشان متعلمي هذا التفسير.

**درويش وايي:** چي امام همام فخر الدين الرازي رحمه الله په تفسير كبير كي وايي چي دا بعيد نه ده چي له تبديل څخه د مځکي دي مراد دا وي چي جهنم په ځني جوړ سي او د تبديل د سماواتو څخه دي مراد دا وي چي جنتونه به ځني جوړ سي. او ټولو اهل التفسير د امام دا خبره تر تنقيد لاندي نيولې ده چي له دي څخه خو دا لازميږي چي جنت او دوږخ اوس مخلوق نه دي كما يقوله المعتزلة والثابت في علم الكلام والاحاديث خلافه. علامه آلوسي په روح المعاني كي كه څه هم په دفع كي ددې سوال له كلام څخه د امام ډېره سعي كړې ده لكن په سر يې نه ده رسولې والله اعلم بمراد عباده.

وَبَرَزُوا لِلَّهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ ﴿٤٨﴾

ښکاره به سي ټوله بندګان يعني له قبرو وغيرها څخه به را ووځي، درويش "غيرها" ووايه لان الانسان قد ياكله الحوت في البحر او بل هندوان د نن زماني خپل مړي سوځوي قبرونه نه لري وكذا قد ياكل الانسان سباع البر الى غير ذالك "لله الواحد القهار" يعني لمحاسبته ومجازاته بالجنة او النار.

**فائده:** ددې دوو صفاتو جمع کول دلالت پر دې دی چي ورځ د قيامت ډېره سخته ده، ولې چي آمر يو وي او هغه هم غالب وي چي څوک يې مقابله نه سي کولای، نو ځای د استغاثې او د پناه بل نسته.

وَتَرَى الْمُجْرِمِينَ يَوْمَئِذٍ مُّقَرَّنِينَ فِي الْأَصْفَادِ

او ته به وینې یا محمد (ﷺ) یا مخاطب غیر معین. کافران په دغه ورځ کې تړلي یو له بل سره په سبب د اشتراک في العقائد والاعمال کالمشرکین في الشرک وهکذا الیهود والنصاری والزانین منهم مثلاً په قیود او اغلالو کې د اصفاد مفرد صفد دی لکن صفد. سخت تړلو ته وایي او قریناً مع شیاطینهم.

ابو سعید الخدري ﷺ له عمر بن خطاب ﷺ څخه روایت کړی دی قال یقرن الصالح مع الصالح في الجنة ویقرن الرجل السوء بالسوء في النار.

سَرَابِيلُهُم مِّن قَطِرَانٍ وَتَغْشَىٰ وُجُوهَهُمُ النَّارُ

جمع سربال وهو القمیص. په غیاث اللغات ص ۵۳۶ کې وایي قطران بالکسر نام شاعري ونام شهر ونام روغني باشد سیاه وبد بوه که از درخت عرعر که سرکوه می باشد میگیرند وآنرا بر اشتران خارش یعني الجربی چې په پښتو یې ګرګ بولي چې ګرګ یې ورسوځي په سبب د تیزی رنګ یې تور دی بدبویه یې اور ژر اخلي. نو په قطران بدن د اهل النار ورلړي، نو دوی لره لکه قمیص ګرځي. نو پر دوی سوي او کا د قطران او وحشته د رنګ یې او بد بوی تو له سره جمع سي مع اسراع النار في جلودهم وفي روح المعاني هو مایحلب من شجرة الابهل وتهنأ به الابل الاجرب فیحرق الجرب بما فیه من الحدة وقد تصل حرارته الی الجوف وهو اسود منتن یسرع فیه اشتعال النار حتی قیل انه اسرع الاشیا اشتعالاً وهو حار یابس في الثالثة او الثانیة انتهی "وتغشی وجوههم النار" او پټ کړی وي او پر سربېره وي پر مخانو ددوی اور.

**پوه سه**: چې د "وجه" تخصیص یې له دې جهته وکړی چې مخ په انسان کې هغه عزت مند ځای په ظاهر کې د بدن دی لکه زړه په باطن کې د بدن، ولهذا قال الله تعالی "تطلع علی الافئدة" او بل سبب یې دادی چې دوی په دنیا کې د خدای ﷻ وخوا ته توجه نه وکړې، او حواس د مخ یې لکه سمع او بصر یې د حق او معجزاتو ولیدو ته او سمع د حق و اورېدلو ته نه وه سپارلې.

## لِيَجْزِيَ اللّٰهُ كُلَّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ

**پوه سه**: چي كلمه د لام متعلق ده په محذوف پوري، تقديره يفعل ذالك ليجزي اليه او بقوله مقرنين، او بقوله تغشى والمعنى تا چي جزا وركړي خداى پاك و هر نفس ته كه مطيع وي او كه عاصي په ما كسبت سره لانه اذا بين الله ان المجرمين يعاقبون باجرامهم كما في الآيات السابقة علم ان المطيعين يثابون بطاعاتهم. نو د لام كلمه متعلق ده په برزوا پوري فافهم.

## اِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ﴿٥١﴾

په تحقيق خداى ﷻ ژر دى حساب ده لانه لايشغله حساب عن حساب، امام سيوطي رحمه الله په جلالين كي وايي چي خداى پاك حساب كوي د ټولو خلګو سره په قدر د نيمي ورځي د دنيا لحديث بذالك.

**درويش وايي**: چي ورته قول ابن المبارك رحمه الله او ابو نعيم عن النخعي رح قال كانوا يرون انه ليفرغ من حساب الناس في مقدار نصف يوم وروسته به قيلوله كوي هؤلاً في الجنة وهؤلاً في النار، ومثل هذا الحديث اخرجه ابن ابي حاتم عن ابن عباس رضي الله عنهما.

## هٰذَا بَلٰغٌ لِّلنَّاسِ وَلِيُنْذَرُوْا بِهٖ وَلِيَعْلَمُوْٓا اَنَّمَا هُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ

اى القرآن او السورة يا ما في السورة من الوعظ من قوله تعالى ولا تحسبن الله الآية، بلاغ كفايت دى دوى لره په نصيحت كي.

**پوه سه**: چي "ولينذروا به" عطف دى پر محذوف باندي اى لينصحوا ولينذروا چي وبېرول سي په دغه بلاغ سره، وقيل معنى الآية هذا القرآن انزل لتبليغ الناس احكام الله ولينذروا به او چي دوى پوه سي، په دې چي نه دى مستحق د عبادت بالحق مګر يو اله.

## وَّلِيَذَّكَّرَ اُولُوا الْاَلْبَابِ ﴿٥٢﴾

او چي پند واخلي په مواعظو د قرآن خاوندان د عقولو يعني العقول السليمة عن الهوى وعن تقليد الآبا.

**پوه سه:** چي اصل د يذكروا يتذكروا وُ تا يې په ذال كي مدغم كړه او لفظ د "الوا" جمع د "ذو" ده من خلاف لفظه.

**فائده:** الباب په اصل کي جمع د لب ده چي مغز ته وايي يا د بادام يا د جوز مثلاً دلته مراد ځني عقل دی مجازاً. علماً وايي چي مغز د انسان عقل دی او بدن يې قشر دی يعني پوست او كالي يې قشر القشر دي نو انسان لره لازم ده چي د عقل په تصفيه کي کوشش وكړي بالايمان والطاعة واجتناب المنهيات والتفكر في الآء الله وشكرها وقطع الطمع عن غيره تعالى في الرزق، كمال خجندي وايي:

نيست مارا غم طوبی وتمنای بهشت ..... شيوه مردم نااهل بود همت پست

مولانا جامي قدس سره وايي:

يا من ملكوت كل شيئ بيده ........ طوبى لمن ارتضاك ذخراً لغده

اين بس كه دلم جزء تو ندارد كامی ........ تو خواه بده كام دلم خواه مده

**درويش وايي:** چي په توفيق د خدای ﷻ له تفسير څخه د ديارلسمي پارې د قرآن عزيز په ساعت کي د لسو بجو په ورځ د پنجشنبې اووه ويشت شعبان المبارک سنه (۱۴۲۹ هـ ق) فارغ سوم ولله الحمد والمنة والصلوة والسلام على خير البرية وآله وصحبه الكملة ويليه تفسير الجزء ۱۴ ان شآ الله العزيز.

التجاً وتضرع بدرگاه رب العزة القادر المطلق جل سلطانه:

اللهم وفق عبدك العاصي بانواع المعاصي محمد عبيد الله الايوبي السليمانخيلي غفرله الباري ذنبه الجلي والخفي لتفسير القرآن الكريم الى اخيره بالخير والعافية والصحة والسلامة واجعله خيراً باقياً وعملاً جارياً الى يوم القيامة انك على كل شيئ قدير وبالاجابة جدير،،،، بيت:

غرض نقشيست كزما ياد ماند ..... كه هستى را نمى بينم بقائى

مگر صاحب دلی روز ز رحمت..... كند درحق اين مسكين دعائى

روز محشر هر كه آيد تصوير جانان دربغل

من نيز حاضر ميشوم تفسير قرآن در بغل

سُورَةُ الحِجْرِ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ تِسْعٌ وَتِسْعُونَ آيَةً وَسِتُّ رُكُوعَاتٍ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

ونعوذ بوجهک الکريم من الشيطان الرجيم

الٓرٰ ۚ تِلْكَ آيَاتُ الْكِتَابِ وَقُرْآنٍ مُّبِينٍ ①

**درويش وايي:** چي "آلمر" له متشابهاتو څخه د قرآن کريم دی و قد مر اختلاف اهل التفسير والفقها في اول سورة البقرة.

او "تلک" اشاره ده و آياتو ته ددې سورت. او اضافت و کتاب ته يې په معنی د "منْ" ده.

**يوه سه:** چي مراد له کتاب او قرآن څخه يودی بالتغاير الاعتباري بالکتابة في المصاحف والقرائة بالالسنة.

او تنکير د قرآن لپاره د تعظيم دی ای آيات ما هو جامع لکونه کتاباً کاملاً وقرآناً بين الرشد والهداية والفرق بين الحلال والحرام بياناً عربياً.





# الجزء الرابع عشر

## رُبَمَا

# تيسير الايوبي حنفي


حضرت مولانا محمد عبد الله الايوبي

الكندهاري الحنفي النقشبندي



مكتبة القرآة والتجويد

كاسي روڈ كوئٹه بلوچستان

رُبَمَا يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ كَانُوا مُسْلِمِينَ ۝

**پوه سه**: چي "رب" نافع او عاصم او ابو جعفر رحمهم الله په تخفیف د باً وایي، او نور قاریان په تشدید د باً وایي. او "رب" پر هر تقدیر حرف جر دی او کلمه د ما منع کونکې د "رب" د عمل نو له دې سببه یې دخول پر فعل روا دی.

**سوال**: د "رب" دخول پر ماضي باید وي کما تقرر في النحو، نو دلته پر مضارع چي یو څرنګه داخل سو؟

**ځواب**: مستقبل په اخبار کي د خدای ﷻ لکه ماضي دی لتحققه حتماً.

**فائده**: معنی حقیقي د "رب" تقلیل دی بعض مفسرین یې پر حقیقت حمل کوي ووجه التقلیل ان الکفرة یدهشم اهوال القیامة یو وخت نادر که له دوی څخه دهشت پورته سي تمنوا الاسلام في الدنیا. او بعض مفسران وایي چي "رب" دلته لپاره د تکثیر دی مجازاً له جهته د قیام د تضاد په ځای کي د مناسبت کما تقرر في علم البیان من ان التضاد یقوم مقام المناسبة "یود الذین کفروا لو کانوا مسلمین" خوښ دي یعني په ورځ د قیامت عند معاینة، کلمه د لو په معنی د ان ده یعني ان کانوا مسلمین في الدنیا.

**فائده**: تعبیر له وداد څخه د دوی په لفظ د غیبت یعني کانوا انما هو في الحکایة لا في المحکي عنه لان المحکي عنه لو کنا مسلمین بصیغة التکلم فافهم کما في قول القائل حلف فلان لیقتلن کذا مکان قوله لافعلن کذا فافهم.

**پوه سه**: چي ابن المبارک او ابن جریر، او بیهقي رحمهم الله له ابن عباس او انس رضي الله عنهم څخه روایت کړی دی چي دوی دوو ددې آیت مبارک په متعلق کي وویل چي دا یعني وداد د الذین لو کانوا مسلمین هغه وخت دی چي ګناه کاران د مسلمانانو او مشرکینو په اور کي سره یو ځای وي، نو مشرکان و مسلمانانو ته پیغور ورکړي چي تاسي ته څه فائده وکړه ستاسي ایمان او طاعت، نو خدای پاک له دې پیغور څخه په غضب سي، نو مسلمانان تو له له دوږخ څخه وباسي بفضل رحمته، نو په دې وخت کي "یود الذین کفروا لو کانوا مسلمین" یعني

موږ به هم لـه دوږخه ايستل سوي واى كه مسلمانان واى. او هناد او سعيد بن منصور د ابن عباس رضي الله عنهما څخه داسي روايت كړى دى چي پر لـه پسي خداى ﷻ شفاعت د شفاعت كونكو د عصات المؤمنين قبلوي او عصات په شفاعت سره جنت ته داخلوي او شفاعت قبلوي. او رحم كوي پر عصات د اهل ايمان حتى چي خداى ﷻ حكم عمومي صادر كړى من كان مسلماً فليدخل الجنة فحء "يود الذين كفروا لو كانوا مسلمين" يعني موږ به هم په دي حكم عام كي د ارحم الراحمين داخل سوي واى او جنت ته به تللي واى.

او طبراني رحمه الله په خپل كتاب اوسط كي په سند صحيح د جابر بن عبد الله رضي الله عنه څخه داسي روايت كړى دى چي رسول الله ﷺ وويل چي بعض كسان زما د امت په عذاب ور كړل سي په سبب د گنهو ددوى نو دوى به په دوږخ كي وي ماشا الله ان يكونوا وروسته اهل الشرك دوى ته پېغور ور كړي او وه به وايي دوى ته ما نرى من تصديكم يعني الرسول چي تاسي نفع وكړه يعني چي تاسي هم لكه موږ په اور كي ياست فلا يبقى موحد الا اخرجه الله يعني من النار ثم قرأ رسول الله ﷺ "ربما يود الذين كفروا لو كانوا مسلمين"

**درويش وايي:** چي قريب المعنى د حديث مذكوره وو ته نور هم ډېر حديث په روايتو مختلفه سره په تفسير كي د آيت مذكوره راغلي دي وفيما ذكرناه كفاية.

ذَرۡهُمۡ يَأۡكُلُواْ وَيَتَمَتَّعُواْ وَيُلۡهِهِمُ ٱلۡأَمَلُۖ فَسَوۡفَ يَعۡلَمُونَ ۝

پرېږده يا محمد (ﷺ) يعني الكفار. چي خوړک كوي او تمتع يعني نفع اخلي په شهوات نفسانيه وو سره يعني دا اكل او تمتع متناهي دي. او دوى مشغول كړي وي د كار سازى د اخرت لپاره بالايمان والطاعة اميد د ډېرو عمرو ژر دى چي خبر به سي په خپل سوء يعني عذاب د خداى ﷻ به په ورځ د قيامت روښي. وفائدة هذه الآية نا اميده كول دي د عليه الصلوة والسلام د ايمان او انقياد څخه ددوى بانهم من اهل الشقاوة في علم الله تعالى او نصيحت ستا وروسته تر دي فائده نه لري. ولي چي حجت پر دوى قائم سو او وى وېرول سول

د ایثار د تنعیم د دنیا پر تنعیم د آخرت بالجنة بسبب طول الامل، په تفسیر بحر العلوم کي راغلي دي چي طول الامل رحمت دی ددې امت لپاره که طول امل نه وای دپېر امور شرعیه به معطل سوي وای مثلاً که طول امل نه وای علماؤ د تفسیر به په علم تفسیر کي مجلدات کثیره تفسیرونه نه جوړ لای. او فقهاؤ به په فقه کي شروح طویله او فتاوی وي په جلدو جلدو نه تصنیفولای مثلاً، که طول امل نه وای فقیر به په تفسیر قرآن پیل هم نه وای کړی لکن طول امل تر دې حده تفسیر راورساوه چي تقریباً لس جلده ته ورسېدی او نور هم طول امل باقي دی چي په توفیق د خدای ﷻ به دا تفسیر تر پایه پوري ورسېږي ان شاٌ الله تعالی او سره ددې چي عمر د فقیر د نیوې (۹۰) کالو په شاوخوا کي دی، وهذا الاتمام لیس بعجیب في جنب قدرة الله العزیز العلام او که طول امل نه وای دېر اسباب د عیش او ژوند به معطله سوي وای، په حدیث شریف کي راغلي دي چي روایت یې انس ﷺ کړی دی قال رسول الله ﷺ انما الامل رحمة لامتي لو لا الامل لما رضعت ام ولدها ولا غرس غارس شجراً" په تحقیق امل رحمت دی زما د امت لپاره. که امل نه وای، نو نه به وای ورکړي شیدې مور د هغې زوی ته، او نه به وای شنه کړې یو سړي درخته، علماٌ وایي چي حکمت الهي ددې تقاضا نه کوي چي د ټولو انسانانو دي اقبال من کل الوجوه و خدای پاک ته مبذول کړي فان ذالک یخل بامور المعاش ولهذا قیل لولا الحمقی لخربت الدنیا.

**پوښتنه**: نو د طول امل چي په قرآن عزیز کي ذم راغلی دی کما في الآیة المذکورة او په احادیث شریفه وو کي هم بد بللی دی څه شی دی؟

**ځواب**: امل مذموم توقع ده لطول الاعمار وبلوغ الاوطار چي زما حاجتونه به ټوله تر سره سي واستقامة الاحوال یعني حالات د ژوند بې خلله پایه تکمیل ته رسېږي وان لا یلقوا في العاقبة الاخیراً. قال الصائب:

درسر این غافلان طول امل دانی که چیست
اشیان کرد است ماری در کبوتر خانه

**درویش وایي**: چي علماٌ وایي چي د مذکوره طول امل چي په شرع کي یې

ذم جداً دی مهلکات یې څلور دي (۱) کسل په طاعت و تاخیرها (۲) تاخیر دی په توبه کي له گناه څخه بل ترکها (۳) قسوة القلب بعدم ذکر الموت قلباً (۴) حرص دی پر جمع د دنیا من الحرام والحلال والاشتغال بها من ذکر الآخرة واهوالها، ولاشک في کونه مذموماً، واما طول الامل للامور الاخروية کما ذکرنا امثلتها فهو محمود قطعاً فافهم هداک الله.

وَمَآ أَهۡلَكۡنَا مِن قَرۡيَةٍ

او نه ده هلاک کړې موږ یوه قریه یعني اهل د قریې، ومن زائد لاستغراق النفي.

**یوه سه**: چي په اصطلاح کي د قرآن مبارک قریه عام دی بلد وغیره دواړو ته شامل دی دا شروع ده په بیان کي د سِر په عدم نزول کي د عذاب پر مشرکینو د مکې عاجلاً لکه پر نورو امتو چي په دنیا کي عذاب نازل سوی ؤ لکه قری د قوم لوط او عذاب د مکې والو یې و اخرت ته وځند اوه.

إِلَّا وَلَهَا كِتَابٌ مَّعۡلُومٌ ۝٤

مگر نه هغه هلاک لره یې وخت سته مکتوب في اللوح المحفوظ "معلوم" ای عند الله تعالی لایتقدم ولایتاخر.

**سوال**: په قانون نحوي کي خو په منځ کي د صفت واو نه راځي کما في قوله تعالی "الا لها منذرون"؟

**ځواب**: واو یې په دې سبب پر داخل کړی چي صورةً دا جمله لکه حال ده، نو واو یې پر داخل کړئ تاکیداً للصوقها بالموصوف کذا قال المظهري. او روح البیان وایي چي "کتاب" مبتدأ ده او "لها" یې خبر دی، خبر چي یې مقدم کړی لان المبتدأ نکرة کما هو القانون النحوي چي مبتدأ چي نکره وي تقدیم د خبر یې پر واجب دی او دا جمله حال ده له "من قرية" څخه

**پوښتنه**: دا جمله صفت ده د قریه چي استثناً یې د عموم د صفاتو وسوه، قریه خو نکره ده، نو ذو الحال څرنگه کېدای سي؟

**ځواب**: نکره چي په سیاق کي د نفي راسي خصوصاً سره د "من" لپاره د استغراق ده. نو په حکم د نکره موصوفي فیصح کونها ذو الحال بدون تقدیم الحال کما هو

القانون والمعنى اهلكنا قريةً من القرى في حال من الاحوال الا لها كتاب معلوم.

مَا تَسْبِقُ مِنْ أُمَّةٍ أَجَلَهَا وَمَا يَسْتَأْخِرُونَ ۝

نه وړاندي کېږي يو امت (کلمه د من زائده ده لاستغراق النفي) يو امت و اجل ته يعني لايهلک قبل الاجل المقدر في علم الله. او نه ځنډيږي هلاک ددې قريې بعد بلوغ الاجل الموعود.

**پوښتنه**: چي ضمير د "يستأخرون" خو راجع و امت ته دی او امت مونث دی نو مذکر ضمير به څرنګه ورته راجع سي؟

**ځواب**: تذکير يې بنا پر معنی دی، ولي چي له قريه څخه خو مراد اهل قريه دي وتانيث القرية باعتبار اللفظ فقط.

وَقَالُوا يَا أَيُّهَا الَّذِي نُزِّلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ إِنَّكَ لَمَجْنُونٌ ۝

وويل مشرکانو د مکې و نبي عليه السلام له پسخنده اې هغه سړی يې چي وحي نازل سوی دی تاته يعني قرآن په تحقيق ته لېونی يې. يعني د لېونيانو خبري کوې چي ته وايې ماته قرآن نازل سوی دی.

**پوښتنه**: چي دا وروسته آيت تفسير دی "لوما" په معنی د هل لا دی، ولي ته راتګ نه کوې موږ ته په ملکو سره چي ستا لپاره شاهدي د رسالت يې زموږ د مخه ادا کړې وای. او يا معنی داده چي زموږ د عذاب لپاره چي موږ ستا تکذيب وکړی لکه د عذاب د امم سابقه لپاره چي به ملکې راتلې. او يا معنی داده چي ملکو به ستاسره مرسته کولای په تبليغ کي کما في قوله تعالى "لولا انزل اليه ملک فيکون معه نذيرا"

لَّوْ مَا تَأْتِينَا بِالْمَلَائِكَةِ إِن كُنتَ مِنَ الصَّادِقِينَ ۝

که ته يې له رشتيا ويونکو څخه په دعوه کي د نبوت.

مَا نُنَزِّلُ الْمَلَائِكَةَ إِلَّا بِالْحَقِّ وَمَا كَانُوا إِذًا مُّنظَرِينَ ۝

موږ نه نازل وو ملکې مګر نه په حق سره يعني بالعذاب المتحقق عند الله لقوم. او نه دي دا کفار په دغه وخت کي چي ملکي د عذاب راسي موخرين يعني

چي ملکي پـه عـذاب سره راتـگ وکړي، نو لـه کفارو څخـه بالا مهلت وركول مسلوب سي ونزل عليهم العذاب في الحال.

**فائده**: د "اذا" جزاً ده د شرط مقدر، وهذا اللفظ مركب من اذ بمعنى الحين وروسته پر بالا کې ان شرطي فصار اذ ان وروسته نحاتو ثقيـل وکاڼه همزه د ان، نو بيې حذف کړی نو اذن پاته سو، قانون د ان شـرطي لفظ دلالت پر فعل مقدر بعـده والتقـدير وماكـانوا اذان كـان اى وجـد مـاطلبوه منظرين يعنـي بعـد ازان مهلت داده ميشود بلکه همواره عذاب می آید.

# إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ ⑨

**يوه سه**: چي ضمير د متكلم مع الغير لپاره د تعظيم د رب العزة دی او "نحن" ضمير فصل نه دی لانـه يكـون بيـن الاسمين وههنا بعده فعـل، بلکـي مبتدأ ده كذا في تفسير الكواشي؛

**بوه سه**: چي دا آيت رد دی د انکار د کفـارو د مکې او استهزأ ده ددوی پـه قرآن سره ولهذا اكده بوجوه من التاكيد.

**ترجمه**: پـه تحقيـق مـوږ نازل كـړی دی و تاتـه يـا محمـد (ﷺ) ذكـر يعنـي القرآن العظيم الشـان، او پـه تحقيـق مـوږ سـاتونکي يـو د قـرآن د تحريـف او د زيادت او نقصان څخه كما فعل اليهود بكتابهم التوراة ولا يتطرق اليـه الخلل ابداً. وهذا دليل لكونه منزل من الله ﷻ اذ لو كان من عند غيره تعالى، نو به د کفارو د طعن لار پکښي خلاصه وای له جهته څخه د قبول د زيادت او نقصان.

**فائده**: خوارج وايي چي عثمان ﷺ او نورو دده همکارانو له قرآن څخه لس جزء يعني پارې غورځولي دي خزلهم الله كيف انكروا الاحاديث الصحاح في باب جمع عثمان ﷺ القرآن وكيف انكروا اجماع الامة على ان الموجود في ايدى الناس هو القرآن المنزل.

# وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ فِي شِيَعِ الْأَوَّلِينَ ⑩

او په تحقيـق موږ استولي وه سـتا دمخـه رسولان. "شيع" جمع د شيعي ده والشيعة قوم مجتمعون كلهم على دين وعقائد، لام موطئه د قسم محذوف دی

وَمَا يَأْتِيهِم مِّن رَّسُولٍ إِلَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِءُونَ ﴿١١﴾

او نه دى ورغلى دغو شيعو ته (مضارع لپاره د حكايت د حال ماضيه ده) يو رسول له رسولانو (من زائد دى لپاره د استغراق د نفي) مگر نه دوى به پسخند واهه يعني په هغه رسول فيه تسلية للنبي عليه السلام. ولي چي كفارو د مكې هم په ده پسخند واهه.

كَذَٰلِكَ نَسْلُكُهُ فِي قُلُوبِ الْمُجْرِمِينَ ﴿١٢﴾

اى كما سلك الاستهزا والكفر في قلوب الشيع الاولين، موږ داخله وو استهزا په زړو كي د مجرمينو يعني مشركى مكة، والسلك ادخال الشيئ في الشيئ كالخيط في المخيط والرمح في المطعون.

لَا يُؤْمِنُونَ بِهِ ۖ وَقَدْ خَلَتْ سُنَّةُ الْأَوَّلِينَ ﴿١٣﴾

ايمان نه راوړي پر هغه رسول جمله حال ده له مجرمينو څخه. او تېر سوى دى سنت او عادت د خداى جل جلاله په اولينو كفارو كي باهلاك من كذب الرسل.

**درويش وايي:** چي په دې آيت كي وعده خفي ده د عليه الصلوة والسلام سره بالفتح والظفر على اعدائه من اهل مكة وغيرهم.

وَلَوْ فَتَحْنَا عَلَيْهِم بَابًا مِّنَ السَّمَاءِ فَظَلُّوا فِيهِ يَعْرُجُونَ ﴿١٤﴾

كه موږ خلاص كړو پر دغو كسانو چي ستاسې ښځايه سوالونه كول بقولهم لو ماتأتينا بالملائكة، يوه دروازه د اسمان، نو گرځي ملكي چي اسمان ته خېژي پر دغه دروازه او تاسي هم ورته گورئ، او حسن بصري رحمه الله وايي چي دغه كفار و خېژي و اسمانو ته او عجائب د اسمانو هم ويني طول نهارهم.

لَقَالُوا إِنَّمَا سُكِّرَتْ أَبْصَارُنَا

چي بند كړل سوي دي زموږ سترگي يعني تا اې محمده رابندي كړي دي زموږ سترگي په سحر سره چي حقيقت حال نه په وينو.

**درويش وايي:** چي ترجمه پر تقدير د قرائت "سكرت" بالتشديد كما هو قرائة عامة القرا او پر قرائت د ابن كثير رح چي سكرت په تخفيف د كاف او په

فتح د تأیې وایي، نو پر دې قرائت "ابصارنا" مفعول د سکرت بالنصب یعني بصیغة المخاطب فالخطاب لرسول الله ﷺ والمآل واحد. په قاموس کې وایي چې سکر سد النهر یعني بند دی د ویالې له جریان څخه. او کلبي یې په عمیت ترجمه کړې ده، او قاموس والا د سکرت پر تقدیر د تخفیف دا ترجمه کړې ده ای حبست ابصارنا عن النظر وغطیت وغشیت وحیرت.

# بَلْ نَحْنُ قَوْمٌ مَّسْحُوْرُوْنَ ﴿۱۵﴾

بلکې موږ داسې قوم یو چې په موږ سحر کړل سوی دی یعني قد سحرنا محمد ﷺ بذالک، کما قالوا عند رؤیة سائر معجزاته ﷺ، دوی کلمه د بل او د انما وویل ددې لپاره چې زموږ یقین دی چې دا موږ چې وینو دا هیڅ حقیقت نه لري بل هو باطل خیل الیهم بنوع من السحر من جانب محمد (ﷺ).

**فائده:** کفار اولاً کلمه د انما چې پر حصر دلالت کوي پر ابصار داخله کړه غرض یې دا ؤ چې زموږ سترګې فقط بندې سوي دي له رؤیت څخه د حقیقت الحال عقول پر ځای دی په دې پوهېږو چې دا امور صرف چشم بندي ده وروسته یې له هغه څخه اضراب وکړی و قالوا بل نحن آه یعني جاوز ذالک السحر من الابصار الی العقول لنا بسحر محمد ﷺ. صاحب د روح البیان وایي چې سحر من خرق العادة او خرق العادة ګاهې له اولیاؤ څخه صادرېږي نو هغه ته کرامت وایي او ګاهې له نفس شریر څخه صادر سي هغه ته سحر وایي او سحر لره بقا نسته بلکې یو کړی وي بخلاف بعض المعجزات کالقرآن العزیز فانه معجزة باقیة کر الازمان ومر الدهور والسحر یمکن معارضته یعني الاتیان بمثله کما لسحرة فرعون والمعجزة لایمکن معارضته کعصی موسی علیه السلام ولا یظهر السحر الا علی ید فاسق فاجر.

**مسئله:** د سحر زدکړه حرامه ده بالاجماع من الائمة الاربعة رحمهم الله.

**مسئله:** له سعید بن مسیب رحمه الله څخه چا پوښتنه وکړه چې که یو سړی په سحر سره چا د ماینې له جماع څخه بندي ؤ (درویش! کما یفعل ذالک قوم هزاره من الشیعة) او هغه بند کړل سوي له یو عالم څخه خلاص والی ددې بندیز وغوښتې ده ته روا ده چې د بندیز د حل لپاره یو تعویذ یا ځانبت وروکړي.

سعید بن مسیب ﷺ ورته وویل انما انهی الله عما یضر ولم ینه عما ینفع فان استطعت ان تنصر اخاک فافعل انتهی.

وَلَقَدْ جَعَلْنَا فِي السَّمَاءِ بُرُوجًا وَزَيَّنَّاهَا لِلنَّاظِرِينَ ﴿١٦﴾

په تحقیق موږ پیدا کړي دي په اسمانو کي بروج، او ښائسته کړي موږ سما یعني په لمر او سپوږمۍ او ستورو و کتونکو ته د اسمان.

**پوه سه:** چي جعل په معنا د خلق دی چي بروجاً یې مفعول دی او څوک چي په معنی د تصیر بولي تکلف ته د حذف د بل مفعول مجبور دی، ولي چي جعل په معنی د تصیر دوه مفعوله غواړي.

**فائده مهمه:** مظهري وایي البروج هو النجم یعني لوی ستوري ماخوذ من التبرج وهو الظهور او غټ ستوري هم ظاهر وي، وروسته مظهري وایي ولیس المراد بالآیة مصطلح اهل الهیئة ای الریاضي ثم اورد المظهري علی ذالک ای علی عدم ارادة البروج المصطلحة دلیلاً چي حاصل یې دادی چي ارادہ د بروج مصطلحه وو د احادیثو نبویه څخه خلاف دی او شرعیت ابا څنډي کوي او صاحب د روح البیان تفسیر د بروجو په قصورو سره کړی لکه عطیه چي هم تفسیر په قصورو سره کړی دی، وروسته ده په تفسیر کي د څورلسمي پارې ص۴۴۸ داسي ویلي دي وهي البروج الاثنی عشر المختلفة الهیئات والخواص اسمائها الحمل والثور والجوزا والسرطان والاسد والسنبلة والمیزان والعقرب والقوس والجدي والدلو والحوت، او بیا روح البیان د مزید تفصیل و تفسیر ته خپل د اوائلو د سورت یونس حواله کړې ده انتهی، او صاحب روح المعاني په تفسیر کي د څورلسمې پارې ص۲۲ وایي چي له ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چي تفسیر ددې آیت یې په دوولسو برجو مشهوره وو سره کړی دی چي شپږ برجه یې په شمال د منطقة البروج دي چي درې په هغو کي ربیعي دي یعني چي لمر په هغو بروجو کي وي نو پسرلی وي په معظم معموره مځکي کي. او درې صیفي دي چي دوبی د حلول د لمر و دغو بروجو ته پیدا کېږي اول ددې شپږو حمل دی، او شپږ جنوبیه د منطقة البروج څخه چي درې د هغو خریفي بولي چي زمانه د مني ته وایي او درې شتوي

دي چي ځمی ځني پیدا کېږي اول ددغو درو برجانو میزان دی، او طول د هر برج په نېز ددوی د پرش درجې دي او عرض یې یوسل او اتیا درجې دی من قطب الی قطب، روح المعاني وايي وکانها انما سميت بذالک لانها کالحصن او القصر للکواکب الحال فيها، روح المعاني وايي وهي في الحقيقة اجزا الفلک الاعظم وهو المحدد للجهات الست المسمی بلسانهم الفلک الاطلس وفلک الافلاک ثم فصل الکلام فيها صاحب الروح المعاني وفي بعض المواضع نقل عن الشيخ الاکبر قدس سره وعن الشيخ ابو علي بن سينا.

**درویش وايي:** چي د ټولو عباراتو نقل به و متعلم ته د تفسير ایوبي درد سر وي او په پوهېږي هم نه. لکن علما وايي ما لايدرک کله لايترک کله والله اعلم بالصواب في کل باب.

## وَحَفِظْنٰهَا مِنْ كُلِّ شَيْطٰنٍ رَّجِيْمٍ ﴿۱۷﴾

او موږ ساتلی دی اسمان له هر شیطان ځخه چي ترټلی دی له درباره ځخه د خدای ﷻ یعني شیطان قدرت نه لري چي اسمانو ته دي وخېژي او اهل سموات ته دي وسوسې ور واچوي ويطلع على احوال اهل السما، بغوي رحمه الله وايي قال ابن عباس رضي الله عنهما كانت الشياطين لايحجبون عن السموات وكانوا يدخلونها ويأتون باخبارها فيلقون على الكهنة فلما ولد عيسى عليه السلام منعوا من ثلث سموات ولما ولد محمد عليه السلام منعوا من السموات كلها، نو هر شیطان چي وروسته تر نبوت د عليه الصلوة والسلام چي اراده د اورېدلو د ملکو د اسمان به وکړه دستي به په شهاب ووشتل سو کما سياتي في الآية الآتية، نو شيطانانو و ابليس اعظم ته شکايت ددې منع وکړی، نو ابليس خپل اتباعو ته وویل چي په ځمکه کي یو نوی کار پېښ سوی دی فاضربوا مشارق الارض ومغاربها، نو هغه شيطانان چي تهامه یعني ارض عرب ته ورغله، نو رسول الله ﷺ په بطن نخلة کي د سهار په لمانځه کي قرائت وایه چي ددوی تر غوږ سو، نو غوږ یې ورته ونیوی فقالوا هذا والله لقد حدث في الارض (كذا في البخاري) وبعض هذه الواقعة قد بين في القرآن الكريم في موضع آخر كما لايخفى على من تتبع القرآن العزيز.

# إِلَّا مَنِ اسْتَرَقَ السَّمْعَ فَأَتْبَعَهُ شِهَابٌ مُّبِينٌ ﴿۱۸﴾

ای لکن من استرق چې غلا کوي مسموعات د اسمانو په هغه پسې ملحق کېږي يوه شعله د اور چې له سترو څخه پيدا کېږي ښکاره وکتونکو ته. بغوي رح وايي چې شيطانان يو د بل پر ووږو سره سپاره سي تر اول اسمانه پوري، نو دوی غلا کوي مسموعات د ملکو يعني د حوادثو د دنيا تاچي خپلو همکارانو کهنه ته يې القا وکړي، نو په شهبو به ويشتل کېږي چې يو شهاب نه خطا کېږي، نو بعض بعض شيطانان ووژل سي او د بعضو مخان يا بغلونه يا لاسونه او حيث يشاء الله وسوځل سي. او بعض ژوبل سي چې غَول يې بولي چې خلګو ته په صحراؤ کې ځان په يوه او په بل شکل ښکاره کوي او خلګ بېروي چې په پښتو يې غول بېباني بولي.

**فائده:** ستوري له خپل ځای څخه نه راغور ځول کېږي په شيطانانو پسې لانها قارة ثابتة في الفلک على حالها بلکې له ستوري څخه يوه نرۍ لمبه جلا سي او شيطانان په وولي مثال يې دادی لکه اور چې يو ځای بل وي يو څوک يو لرګی وغيره په ولګوي او بل ځای اور په بل کړي، نو اور په خپل ځای کې خو ثابت وي کذالک الکوکب والشهاب فافهم.

**فائده:** مفسرين وايي چې ابليس اعظم چې د ټولو جد اعظم دی خپل جنود استوي لپاره د غوا او ګمراه کولو د مسلمانانو چناچه د هر مسلمان سره شيطان د اغواء او ګمراه کولو لپاره موجود دی او په خپله ابليس د ډېر لوی ولي د اغواء لپاره ځي لکه برصيصا او بلعم باعور چې لوړ شخصيتونه وه ګمراه يې کړل او سره ددې چې کار د عليه الصلوة والسلام ډېر مهم ؤ يعني اغواء لکن ابليس له ده څخه نا اميده ؤ، ولي که شيطان و عليه الصلوة والسلام ته نژدې سوی وای په نور د عليه الصلوة والسلام سوځل کېدی.

**سوال:** عليه الصلوة والسلام نو ولي اعوذ بالله من الشيطان الرجيم وايه؟

**ځواب:** هغه صرف له جهته څخه د امتثال د امر الهي لاغيره کريمه "واذا قرائت القرآن فاستعذ بالله من الشيطان الرجيم"

**سوال:** په قرآن کريم کي راغلي دي "واما ينزغنک من الشيطان الرجيم نزغ

فاستعذ بالله الآية" له دې آيت څخه خو دا معلومېږي چي عليه الصلوة والسلام ته هم لار د نزغ او وسوسې د شيطان خلاصه ده؟

**ځواب**: دا آيت پر تقدير د فرض او احتمال وارد دی، ولي چي اصل د "اما" ان ماؤ، نو نون د ان شرطيه يې مدغم کړی. او نحات وايي چي "ان" پر ډېر بعيد فعل بلکې پر محالاتو داخلېږي نحو ان کان زيد حماراً فهو ناهق.

**درويش وايي**: چي اوس بيا د "السمع آه" تفصيل: بخاري له ابي هريره ﷺ څخه داسي روايت کړی دی چي نبي کريم ﷺ وويل اذا قضى الله الامر في السماء" يعني خدای پاک يو امر په اسمان کي صادر کړي ضربت الملائكة باجنحتها خضعاناً يعني ملکي خپل وزرونه وهي له جهته د عجز و قول ته د خدای ﷻ کانه سلسلة على صفوان لکه ځنځير پر ښويه ډبره ووهي حتى اذا فزع عن قلوبهم يعني حتى چي بيره زائل سي ددوی له زړونو څخه قالوا ما قال ربکم دوی يو له بله سره ووايي څه ويل رب ستاسي؟ هغه نوري ملکي ورته ووايي هغه څه چي خدای پاک ويلي دي حق دي، قال عليه الصلوة والسلام نو هغه خبري د ملکو مسترقوا السمع واوري يعني هغه شيطانان چي د ملکو غلا کوي بيا عليه الصلوة والسلام خپلي ګوتي مبارکي خلاصي ونيولې او وه يې ويل چي مسترقوا السمع هكذا يو پر بل سربيره ولاړ وي، نو هغه لوړ شيطان چي هغه خبره واورېدله هغه يې و هغه بل لاندي ته وکړي ثم وثم که يې پای ته ورسول نو هغه يې و کاهن او ساحر ته ورسوي. او ګاهي د مخه تر القا و اخير ته شهاب پر نازل سي الى اخير الحديث.

## وَالْاَرْضَ مَدَدْنٰهَا وَاَلْقَيْنَا فِيْهَا رَوَاسِيَ وَاَنْۢبَتْنَا فِيْهَا مِنْ كُلِّ شَيْءٍ مَّوْزُوْنٍ ﴿۱۹﴾

او مځکه موږ وغوړول يعني پر اوبو موږ اچولي دي په مځکه کي. کلمه د "في" په معنی د على يعني پر مځکه باندي يعني چي هغه ښورېدله غرونه ثابت پر خپلو ځايو دي. او شنه کړي موږ په مځکه کي يا په غرونو کي بلکې په دواړو کي

له هر شي ځخه من النباتات والاشجار المثمرة وغير المثمرة موزون يعني پر مقدار معين چي حكمت يې تقاضي درلودله. او يا معنى دا چي متناسب. مظهري رح د موزون دا ترجمه هم کړې ده چي هغه شيان چي په وزن يعني په تللو سره يې راکړه ورکړه کېږي كالذهب والفضة والحديد والنحاس وغيرها حتى الزرنخ والكهل، وفي الجبال كالياقوت والزبردج والفيروزج وغيرها من الجواهرات.

**فائده**: په مځکه کي متفرقه ځايونه لکه مكه والمدينة وبيت المقدس والمساجد والاماكن للعبادة خصوصاً بين قبر النبي ﷺ ومنبره فانه روضة من رياض الجنان كما ورد في الحديث الصحيح فمن دخله وزاره بالاعتقاد الخالص والنية الصادقة كان آمناً من المكاره في الدنيا والآخرة.

**پوه سه**: چي عدد د غرونو ماسوى د كوچنيو غرونو (۶۶۷۳) دى.

**فائده**: اول غر پر مځکه چي پر مخ د مځکي خداى پاک پيدا کړى دى جبل ابو قبيس دى وهو جبل قريب الكعبة المباركة. وافضل الجبال په قول د جلال الدين السيوطي رح احد دى وهو جبل بالمدينة لقوله عليه الصلوة والسلام "احد جبل يحبنا ونحبه. او ډېر لوړ تر ټولو غرونو په معموره مځکه کي جبل نهاوند دى په منځ کي د ري او طبرستان چي سياحان د دنيا په پينځه شبانه روزه ددې غره وسر ته ختلي دي او پر سر ددې غره سره سل جريب مځکه ده چي همېشه لنده وي كذا في شرح الچغميني وحواشيه. او مهبط د آدم عليه السلام سرانديب غر دى په مځکه کي د هند دى دا هم ډېر لوړ غر دى. او په دې غره کي اثر د قدمينو مباركينو د آدم عليه السلام موجود دى او ددې غره پر سر همېشه پېلبو مانند شي بريښي بېله وريځي.

**وَجَعَلْنَا لَكُمْ فِيهَا مَعَايِشَ وَمَن لَّسْتُمْ لَهُ بِرَازِقِينَ ۝**

او پيدا کړي دي موږ ستاسي د نفع لپاره معايش چي جمع د معيشة ده يعني چي تاسي ژوند کوئ په هغو سره په دنيا کي من المطعومات والمشروبات والادوية چي هر يو له دغو دوو ځخه انواع مختلفه في اللون والطعم والمقدار دى كما هو معلوم بغير تفصيل في التفسر "ومن لستم له برازقين" عطف دى پر معايش باندي اى جعلنا يعني موږ در کړي دي تاسي لره داسي شيان چي تاسي رازق د هغو نه

یاست یعني رازق یې زه یم من الدواب والانعام علی اختلاف انواعهما.

**سوال**: کلمه د "من" په اتفاق موضوع لپاره د ذوی العقول دی فکیف یصح استعمالها في الدواب والانعام؟

**ځواب**: "من" دلته په معنی د "ما" دی مجازا کما في قوله تعالی "فمنهم من یمشي علی بطنه آه" والاولی ان یفسر من لستم آه بالعیال والخدم والممالیک والانعام والدواب چي د خلکو دا ظن باطل دی چي ددې شیانو رازق زه یم مع ان الله یرزقکم وایاهم، نو پر دې تقدیر ذوی العقول ته یې تغلیب ورکړی دی پر غیر ذوی العقول او کلمه د من یې پکښي مستعمله کړه والتغلیب باب شائع من استعمال من في موضع ما مجازا کما في الجواب الاول.

**درویش وایي**: چي حاصل ددې آیت دلیل ویل په مذکوره شیانو سره پر وجود د صانع او پر کمال قدرت دده او پر عظیم حکمت دده او پر یووالي دده په معبودیت کي او وجوب الوجود کي، کریمه "لوکان فیهما الهة الا الله لفسدتا" او بیل احسان پر بندګانو دی په ما انعم علیهم بما ذکر في هذه الآیة لیوحدوه ویعبدوه ویشکروه ولا یکفروه.

وَإِن مِّن شَيْءٍ إِلَّا عِندَنَا خَزَائِنُهُ وَمَا نُنَزِّلُهُ إِلَّا بِقَدَرٍ مَّعْلُومٍ ﴿٢١﴾

نسته یو شی یعني چي موږ هغه پیدا کړی وي مګر نه د هغه شي زموږ سره خزانې سته.

**پوه سه**: چي مقصود په دې کي چي عندنا خزائنه بیان د کمال قدرت دی پر ایجاد د امثالو د هغه شي، نو ګویا دا عبارت ضرب مثل دی د دې چي د یو سړي مثلاً خزانې د دراهمو او دنانیرو وي نو هغه سړی په راټستلو کي د هغو دراهمو وغیره تکلیف ته حاجت نه لري، داغه رنګه خدای پاک په ایجاد کي د امثالو د مخلوقاتو اضعافاً مضاعفةً قادر بالقدرة التامة.

وَأَرْسَلْنَا الرِّيَاحَ لَوَاقِحَ

بیان للنعمة العظمی دالة علی قدرته العلیا را استوو موږ بادونه حمل ورکونکي و وریځي ته د باران.

**پوه سه**: چي "لواقح" حال مقدره دی یقال ریح لاقح اذا جا بسحاب ماطر، عرب وايي لمقحت الناقة چي بر البه سوه والقحها الفحل چي منده به نطفه پکښې توی کړه او دا میندواره کړه.

په حدیث کي د محمد بن علي ﷺ راغلي دي چي باد به نه الوتلای لیلاً ونهاراً مګر په داسي حال کي چي علیه الصلوة والسلام کښېنستی او ولاړېدی او داسي دعا به یې کوله ان کان یک الیوم سخط علی احد من خلقک بعثتها تعذیباً له فلا تهلکنا في الهالکین وان کنت بعثتها رحمة فبارک فیها، علیه الصلوة والسلام له خوف څخه د خدای پاک داغسي مضطرب او دعا کونکی به ؤ حتی چي د باران څاڅکي راشوه سوه قال رب لک الحمد ذهب السخط ونزلت الرحمة. بیضاوي وايي شبه الریح التي جائت بخیر من انشا السحاب الماطر بالحامل کما شبه مالا یکون کذالک بالعقیم یعني وچ باد.

**درويش وايي**: چي ما ترجمه د "لواقح" (چي جمع د لاقح ده او ترجمه اصلي يې حامل ده، ولي چي لاقح اسم فاعل له بابه د مجرد دی) داسي وکړه بادونه حمل ورکونکي وريځي ته د باران آه بنا پر دې ده چي اسم فاعل د باب د مجرد ګاهي په معنی د اسم فاعل د باب د مزید راځي يعني ملقح د باب د افعال چي معنی يې حمل ورکونکی ده، او که يې پر اصل معنی د مجرد پرېږدي. نو معنی يې داسي ده چي دا بادونه حوامل دي تحمل السحاب الماطرة. نو لواقح جمع مؤنث د لاقحة ده، ولي چي ریح مؤنث سماعي دی یقال ناقة لاقحة اذا حملت الولد. ابوبکر بن عیاش رح وايي چي يو څاڅکی باران مځکي ته نه راځي چي څلور باده عمل پکښې ونه کړي باد صبا يعني له پاسه باد تیوته وريځ پیدا کوي او باد شمال يې تیوته د وريځي سره جمع کوي او جنوبي باد اوبه ځني اوروي.

**تنبيه**: ته دا ګمان مه کوه چي دا بادونه مؤثر حقیقي دي بلکې دا بادونه او دا کارونه مربوط په اراده پوري د خالق کل شیئ دي، او عبید بن عمیر رح وايي چي خدای پاک اولاً ریح مبشره پیدا کړي مځکه تیوله جارو کړي وروسته متغیره باد پیدا کړي چي وريځ تیوته راپورته کړي ثم یبعث المؤلفة چي تیوته د وريځي سره جمع کړي چي به

عربي ركام ورته وايي، وروسته لواقح بادونه پیدا کړي، نو هغه د رختو حمل ورکوي اه.

**درویش وايي:** چي له دې عبارت څخه دا صراحةً فهمېږي چي لواقح په معنی حمل ورکونکو دی یعني جمع د لاقح په معنی د ملقح لکه چي درویش ترجمه هم پر دغه مبنا وه کما ذکرناه سابقاً آنفاً.

فَأَنزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَسْقَيْنَاكُمُوهُ

نو نازل کړه موږ له اسمان څخه یا له وریځي څخه اوبه. تنکیر د "ما" لپاره د تکثیر دی ای ما ءً کثیراً. نو موږ په اوبو ددغو باران تاسي اوبه کړو.

**پوه سه:** چي دا اوبه لکه سقیا د انسانانو چي دی داغه رنګه سقیا د ټولو حیوانانو کوي که جبلي وي او که شجري وي او که اهلي وي او هم داغه اوبه د باران سقیا د کښتو او درختو که په مځکه کي وي او که په جبال کي وي.

**درویش وايي:** چي مظهري رحمه الله د مجرد یعني سقیت فلاناً او د مزید یعني اسقیت فرق کړی دی، لکن روح البیان وايي سقیت و اسقیت واحد. وفي روح المعاني جعلناه لکم سقیا تسقون به مزارعکم وموا شیکم انتهی.

وَمَا أَنتُمْ لَهُ بِخَازِنِينَ

او نه یاست تاسي اوبو لره د باران خزانه کونکي یعني ساتونکي بلکي اوبه د بارانو په خزانو کي زموږ محفوظ دي، او بعض مفسرین یې دا ترجمه کوي چي تاسي دا اوبه د باران په چینو او په څاهانو کي او په ویالو کي او په رودو کي او غیر ذالک نسئ محفوظ کولای وهذا یدل علی تدبیر الحکیم العلیم.

وَإِنَّا لَنَحْنُ نُحْيِي وَنُمِيتُ وَنَحْنُ الْوَارِثُونَ

موږ ژوندي کوو بعض اجسام چي قابل د حیوٰة وي په ایجاد سره حیوٰة په دوی کي لکه ټول حیوانات او موږ وژنو بعض ژوندي اجسام په ازالة الحیوٰة عنها. او بعض مفسرین احیاً او اماتة په معنی عام سره اخلي او داغه رنګه حیوٰة او موت معنوي ته هم شاملوئ، خو نباتات هم تر لاندي کېږي، والله یحی الارض بالمطر ایام الربیع، ویمتها ایام الخریف، او بعض انسانانو ته حیوٰة

معنوي ورکوي بالایمان والمعرفة. او بعض وژني بالکفر.

**درویش وايي:** چې اوله معنا متبادر ده والمعاني الآخر محتمل.

**فائده:** تقدیم د ضمیر انا لپاره د حصر دی او دوهم یې تاکید دی.

**یوه سه:** چې وارث په عرف کې هغه چا ته وايي چې مورث مړ سي او دی باقي وي میراث یې خپل کړي، نو معنی د آیت داده ونحن الباقون بعد فنا الخلق جمیعاً او موږ مالکان د ملک یو بعد انقضا زمن المالک المجازي.

**فائده:** د ضمیر متکلم مع الغیر راوړل یعني نحن او ایراده د صیغې د جمع یعني الوارثون لپاره د تعظیم د رب العزة دی.

## وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَقْدِمِينَ مِنكُمْ وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَأْخِرِينَ ﴿۲۴﴾

حاصل الآیة انه لایخفی علینا شیئ من احوالکم، نو په دې آیت دی د کمال علم د خدای ﷻ وروسته تر دلیل پر کمال قدرت د خدای ﷻ په آیات سابقه وو کي. بغوي رح وايي قال ابن عباس رضي الله عنهما اراد بالمستقدمین الاموات ای النطف والبیض والمستاخرین الاحیا من النطف والبیض. او شعبي رح وايي الاولین والآخرین، او مجاهد رح وايي المستقدمون الامم السابقة والمستاخرون امة محمد ﷺ، وقال الحسن رح المستقدمون في الطاعة والخیر والمستاخرون هغه کسان دي چې په طاعت او د خیر په کار کې تاخیر کوي کتاخیر صلوة العصر الی تغیر شعاع الشمس مثلاً وقس علیها غیرها. وقیل المراد المستقدمون في صفوف الصلوة والمستاخرون فیها.

**درویش وايي:** چې دا اخیر احتمال بعید دی. مظهري رح صرف لپاره د نقل د یو حدیث طویل واسطه ګرځولی دی. اوزاعي رح وايي اراد المصلین للصلوة (ای اول الوقت المندوب لا للاول الحقیقي) والموخرین الی اخیر الوقت (ای الوقت المکروه) او مقاتل رح وايي اراد المستقدمین في صف القتال والمستاخرین فیه وقیل غیر ذالک.

**درویش وايي:** چې روح البیان یوه په زړه پوري عامه ترجمه د آیت کريم ده، دی وايي من تقدم منکم ولادة وموتاً ای من زمن آدم الی هذا الوقت (ای زمن نزول القرآن) او من منکم ولادةً وموتاً من هذا الوقت الی یوم القیامة.

وَإِنَّ رَبَّكَ هُوَ يَحْشُرُهُمْ ۚ إِنَّهُ حَكِيمٌ عَلِيمٌ ﴿٢٥﴾

په تحقيق ستا رب دی ژوندي کوي دوی يعني مستقدمين او مستأخرين په ورځ د قيامت وفي هذه الآية رد على منكري الحشر. دا ژوند لپاره د جزا پر عملو ددوی ان كان خيراً فخير وان كان شراً فشر. له جابر بن عبدالله ﷺ څخه احمد، حاكم او بغوي رحمهم الله روايت کړی دی چې رسول الله ﷺ وويل "من مات على شيئ" (من اسلام وكفر وطاعة وعصيان) بعثه الله عليه.

**فائده**: د "هو" ضمير چې په منځ کې يې راوړی لپاره ددې چې دلالت وکړي پر دې چې خدای ﷻ فقط قادر او متولي د امورو د دوی دی او د حشر ددوی. او د جملې په اول کې چې يې "ان" راوړی لپاره د تحقيق د حشر لا محالة. په تحقيق خدای پاک په هر کار کې حکمت لري او پر هر شي دانا او خبر دی.

وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ مِنْ حَمَإٍ مَسْنُونٍ ﴿٢٦﴾

او والله په تحقيق پيدا کړی مونږ انسان. نو لام موطئه د قسم محذوف دی.

**فائده**: مراد له انسان څخه جنس د انسان دی نو الف و لام لپاره د جنس دی يعني پلار د جنس بشر چې آدم عليه السلام دی. او انسان ته چې انسان وايي يا له جهته څخه د ظهور دده چې په سترگو ليدل کېږي او يا له جهته څخه د الفت ددوی يو د بل سره. او بعض علماء وايي چې په سبب د نسيان يې انسان بولي لانه قد عهد اليه نسي "من صلصال" يعني طين يابس (يعني بېله مس د اور ولې په اور پوخ شی هغه فخار بولي) چې شرنگی کوي چې ټوک يې په گوته يا په لرگي ووهي.

**بوه سه**: چې "حما" هغه ختې بولي چې تغير وکړي او توري سي په سبب د ډېر مجاورت د اوبو چې په پښتو يې لوشې بولي وهو صفة لصلصال.

**بوه سه**: چې د "مسنون" ترجمه بعض مفسرانو په مصور سره کړې ده. دوی وايي چې په اول کې خاوري وې چې په اوبو سره يې خيشتې کړې. نو طين يعني ختې سوې. يو څه زمانه چې يې پر ېښولې. نو حما وگرځېدلې هغه چې يې صافي کړې. نو سلاله سوې بيا چې يې صورت بشري ورکړی. نو مسنون سو.

وروسته چي وچ سو، نو صلصال سو چي روح پکښي داخل سو نو بشر سو، او مجاهد او قتاده رحمه الله د مسنون په متغیر منتن سره کړې ده یعني بدبویه.

وَالْجَآنَّ

یعني جنس د پېري کما في الانسان، نو لام دلته هم لپاره د جنس دی.

**فائده:** یو شخص چي له یوې مادې څخه پیدا سي افراد د جنس د هغه تولد له هغې مادې څخه بلل کېږي، ابن عباس رضي الله عنهما وایي چي جان نوم د پیرانانو د پلار دی لکه آدم چي نوم د انسانانو د پلار دی، او قتاده رحمه الله وایي چي جان هو ابلیس لکن مشهوره داده چي جان د پیرانانو پلار دی او ابلیس د شیطانانو پلار دی، والفرق بین الاجنة والشیاطین چي په جنیاتو کي مسلمانان او کافران سته کما جا في القرآن الکریم في سورة الجن او جنیات ژوند او مرګ لري او په شیطانانو کي مسلمانان نسته او دوی هغه وخت مري چي ابلیس مړ سي، او وهب بن منبه رحمه الله وایي چي په پېرانانو کي یو داسي قسم دی چي خوراک او څښاک کوي او تولد یې کېږي لکه انسانان، او بعض لکه باد داسي دی چي نه خوراک او نه څښاک کوي او نه تولد لري والله اعلم بحقیقة الحال، روح البیان وایي چي په منځ کي د خلق د جن او د خلق د آدم علیه السلام شپېته زره کاله فاصله ده.

**درویش وایي:** چي په اتفاق د اهل علم عالم ملائکه مقدم دی تر خلق د عالم جان، او عالم جن مقدم دی تر عالم انسان، نو اخیري خلافت د مځکي وابو البشر آدم علیه السلام ته وسپارل سو تاچي دی د حال جنیاتو عبرت واخلي او په اجماع له خاورو څخه بېله آدمه بل مخلوق خدای پاک نه دی پیدا کړی.

خَلَقْنٰهُ مِنْ قَبْلُ مِنْ نَّارِ السَّمُوْمِ ﴿۲۷﴾

موږ پیدا کړی من قبل "ای من قبل خلق آدم" بغوي رحمه الله وایي چي "سموم" باد دی ډېر ګرم چي په سریو د وېښتیانو د انسان د بدن کښه څه هم ببخي کوچني نتوځي وژني یې، ویقال السموم بالنهار والحرور باللیل انتهی.

**سوال:** په قرآن کریم کي لفظ د اور راغلی دی، نو د ډېر ګرم باد اراده څرنګه صحیح ده؟

**ځواب:** دا معنا لغوي د سموم ده لکن اراده يې صحيح ده، ولې باد چې دومره ګرم وي چې سړی وژني په هغه باد کې خامخا شديد اور وي، او کلبي له ابو صالح رح څخه روايت کړی دی چې سموم اور دی چې دود نه وي ورسره، او تکې له دغه اور څخه پيدا کېږي آه، بعض وايي چې سموم لمبو ته د اور وايي، او بعض وايي من نار السموم من نار جهنم. نو ددې قيل والا په نېز سموم د جهنم نوم دی ولم يقل به احد، او ضحاک رح له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت کړی دی چې ابليس له يوې قبيلې څخه د ملکو دی چې جن يې بولي خلقوا من نار السموم او په قرآن کريم چې جن راغلی دی هغه پيدا سوی من مارج من نار او ملکې له نور الهي څخه پيدا دي انتهی.

**درويش وايي:** چې په دې روايت د ابن عباس رضي الله عنهما توجيه او معنا د هغه آيت چې په شان کې د ابليس راغلې د. معلومه سوه. کريمه "کان من الجن ففسق عن امر ربه"

**درويش وايي:** چې پر دې روايت ملائکه تولې معصومې له ګناه څخه نه دي بل المعصوم ممهم ماخلقوا من نور، ولعل الهاروت والماروت من هذا القبيل من الملائکة الذي يقال له الجن والی هذا ذهب البيضاوي.

وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ إِنِّى خَٰلِقٌۢ بَشَرًا مِّن صَلْصَٰلٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُونٍ ﴿٢٨﴾

"اني خالق" يعني په وروسته زمانه کې (ددې الفاظو ترجمه قريباً تېره سوه)

فَإِذَا سَوَّيْتُهُۥ وَنَفَخْتُ فِيهِ مِن رُّوحِى فَقَعُوا۟ لَهُۥ سَٰجِدِينَ ﴿٢٩﴾

چې ما يې صورت برابر کړی، اضافت د روح چې خدای پاک وځان ته وکړی لپاره د تشريف د مضاف لکونه مخلوقاً بامره من غير مادة، او يا له دې سببه چې روح د انسان قابل د علومو او مستعد د تجلياتو د خدای پاک دی چې غير د انسان دا قابليت نه لري "فقعوا له ساجدين" نو تاسي ملکې واقع سئ له ساجدينو څخه.

**پوه سه:** چې لام په معنی د الی دی يعني اليه و آدم ته سجده کونکي، نو پر

دې تقدير آدم عليه السلام خداى پاک قبله وګرځول د سجدې د ملکو و خداى ﷻ ته. نو پر دې تقدير مراد له سجدې څخه متعارفه ده يعني وضع الجبهة على الارض.

**يوه سه**: چي مسجود له مونږ خداى پاک وباله له دې جهته چي سجده متعارفه و غير ته د خداى پاک په هيڅ دين کي نه ده روا، نو آدم عليه السلام ته داسي سجده کول لکه مونږ چي کعبة الله ته سجده کوو. او بعض مفسرين لام پر خپله معنا بولي يعني آدم عليه السلام مسجود له بولي لکن مراد له سجدې څخه صرف انحناً يعني کږ والى بولي کتحية اخوة يوسف له وکانت تحية الامم السابقة تلک السجدة وقد نسخ الله تعالى تلک السجدة للتعظيم في ديننا ووضع مکانها السلام عليکم.

**فائده**: آدم عليه السلام چي خداى ﷻ د مځکي د خلافت لپاره پيدا کاوه. نو د خداى پاک حکمت په مشوره کي د ملکو سره جلا کول دي د خبيث چي ابليس ؤ له طيب څخه چي ملکي وې فهلک الخبيث بالانکار عن السجود وسلم الطيب اى الملک بامتثال امره تعالى.

**فائده**: نفخ په لغت کي يوه کولو ته په يو اجوف شي کي وايي لکه سړى چي ږک يا ژى (ګوډى) پوه کړي. شيخ عز الدين رحمه الله وايي چي دا معنا په خداى پاک کي محاله ده. نو مراد ايجاد د روح انساني دى په آدم عليه السلام کي.

**درويش وايي**: چي مزيد بحث او سوال او بيان له روح انساني څخه کول نه ښايي قال الله عزوجل "ويسئلونک (اى اليهود) عن الروح قل الروح من امر ربي (اى مخلوق من مخلوقاته العجيبة) و ما اوتيتم من العلم الا قليلاً". اى علماً اجمالياً بانه مخلوق قابل للعلم وغيره من الکمالات متعلق ببدن الانسان تعلق التدبير والتصرف.

**درويش وايي**: چي مظهري رحمه الله چي ځان لوى صوفي بولي په تفسير کي ددې آيت په نقل له مکتوبات څخه د امام رباني قدس سره يو طويل بيان کړى دى چي د متعلمانو ددې تفسير ايوبي له فهمه ډېر لوړ دى فلا فائدة في نقله وتشريحه لانه کالتکلم بالعربية مع العوام.

**درويش وايي**: چي روح المعاني د روح انساني په بيان او تحقيق کي نهه (۹) صفحې بيان کړى دى او مختلف مذاهب يې بيان کړي دي او د مذاهبو

دلائل او بيا يې نقض او ابرام کړی دی لکن و نتيجې ته نه دی رسيدلی فصدق الله تعالی يسئلونک عن الروح الی ان قال وما اوتيتم من علم الا قليلا.

**فائده**: د روح البيان په صفحه (۴۶۰) يوه ډله د اهل سنت والجماعة چي يو امام غزالي او بل امام کبير رازي رح دی په موافقت د صوفيه کرامو رحمهم الله او په موافقت د حکماً وايي چي روح يو مخلوق دی مجرد له جسميت څخه دی او حال په بدن کي هم نه دی صرف تعلق په بدن پوري لري تعلق التدبير والتصرف وتعلق العاشق بالمعشوق علی وجه لا يعلمه الا الله، او دا روح نه فناء کيږي بخراب ددہ د بدن، بلکې تصرف دده په اعضاؤ کي د بدن قطع کيږي ويقال له المفارق ايضاً لمفارقته عن البدن، وقالوا روح الاعظم هو الروح الانساني چي مظهر د صفات د خدای جل جلاله دی او روح سلطاني يې هم بولي او ځای د تعينه دده قلب صنوبري دی ولهذا يفارق هذا الروح حين يسكن القلب الصنوبري عن الحركة آه.

**درويش وايي**: چي يو روح حيواني دی چي جريان يې په جريان د وينې په بدن کي ولهذا يموت الحيوان بخروج دمه بالذبح مثلاً .... بيت:

تا طبع نازکت نه پزيرد ملامتی ..... آن به که نامه را بدعا مختصر کنم

**فَسَجَدَ الْمَلٰٓئِكَةُ كُلُّهُمْ اَجْمَعُوْنَ ﴿٣٠﴾**

نو سجده وکړه ملکو امتثالاً لامر الله.

**بوه سه**: چي اکثره مفسرين وايي چي "کلهم" او "اجمعون" دواړه لپاره د تاکيد دي لپاره د مبالغې په سجده کي د ټولو ملکو ومنع تخصيص البعض. او له مبرد څخه روايت دی چي تاکيد بلفظ الکل لاحاطة جميع افراد الملائکة او تاکيد په "اجمعون" سره تاکيد لپاره د دلالت پر دې دی چي ملائکه وو ټولو په جمعوالي دفعةً واحدةً سجده وکړه، مظهري رح وايي چي وهذا ليس بشيئ لانه لو کان کذالک لکان الثاني حالاً منصوباً لا تاکيداً مرفوعاً.

**درويش وايي**: چي ورته بيان ته د مبرد روح المعاني هم اشاره کړې ده حيث قال سجدوا مجتمعين آه.

**يوه سه:** چي نحات د بصري وايي چي اجمعون تاكيد آخر دى لكه كلهم ځكه يې عطف نه دى سره روا يعني داسي نه ويل كيږي جائني القوم كلهم واجمعون.

## اِلَّآ اِبْلِيْسَؕ

مگر نه وكړه سجده ابليس، ولي چي په دې كي يې فكر نه وواهه چي امر دى د حكيم رب عزوجل له حكمت څخه خالي نه دى بلكې تناو د كبر يې غاړي ته واچاوه، كما تدل عليه كلامه الآتي في جوابه تعالى، مظهري رح وايي چي بعض كسان چي وايي دا استثناً منقطع ده لان ابليس لم يكن من الملائكة كما يدل عليه قوله تعالى كان من الجن ففسق عن امر ربه، او بعض علماً وايي چي دا استثناً متصل ده، ولي چي ابليس له هغه صنف څخه د ملكو ؤ چي د جن په نامه يادېدلې لاستتارهم عن اعين الناس كما هو معنى الجن ولهذا يقال للولد في الرحم جنين ولدار الثواب الجنة.

**درويش وايي:** چي پر دې تقدير د ابليس مزيد خباثت معلوم سو، ولي چي دده قوم ملكو سجده وكړه او ده نه وكړه.

**فائده:** روح البيان وايي چي پر هغه تقدير چي ابليس حقيقةً جن سي او د ملكو له جنسه نه وي هم استثناً متصل ده، ولي چي دى يو جني ؤ مغمور په منځ كي د ملكو ؤ، نو دى هم مأمور په سجده سره ؤ فغلبوا عليه في قوله تعالى فسجد الملائكة، لكه تغليب د نر پر ښځه كما في قولهم رئيت القوم الا هنداً وروسته يې استثناً دده ځني وكړه استثناء متصلاً لكه چي ابليس گويا يو له ملكو څخه ؤ بالتغليب.

## اَبٰۤى اَنْ يَّكُوْنَ مَعَ السّٰجِدِيْنَ ﴿٣١﴾

يعني ابليس منع وكړه چي د ساجدينو سره چي ملكې وې ملگرى سي په سجده كي و آدم عليه السلام ته.

## قَالَ يٰۤاِبْلِيْسُ مَا لَكَ اَلَّا تَكُوْنَ مَعَ السّٰجِدِيْنَ ﴿٣٢﴾

"قال" اى الله سبحانه وتعالى وويل يعني و ابليس ته كه څه هم خداى پاك د

ابلیس په سبب د نه کولو د سجدې خبر ؤ لکن پوښتنه یې ددې لپاره څنې وکړه چې دی په خپل خباثت او انکار اقرار وکړي. اې ابلیسه څه علت او سبب تاته پېښ سو چې تا معیت نه وکړی د سجده کوونکو ملکو سره په سجده کې د آدم او سره ددې چې پر تا دا سجده فرض وه، ولې چې دا سجده په حکم سره د حاکم علی الاطلاق وه او ظهور د فضل د آدم په اخبار د علیم صادق وه؟.

قَالَ لَمْ أَكُنْ لِّأَسْجُدَ لِبَشَرٍ خَلَقْتَهُ مِنْ صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُونٍ ﴿٣٣﴾

ابلیس ووېل د خدای پاک په ځواب کې په ډېره بې حیائي او خرګری سره چې زه نه یم چې زه دې سجده وکړم (کلمه د لام لپاره د تاکید د نفي ده) و یو بشر کثیف ته چې تا پیدا کړی دی (له صلصال من حمأ مسنون معنی په تفصیل سره وړاندې تېره سوه) یعنې چې آدم پیدا کړل سو د هغه خواره څخه د عناصرو چې مځکه ده. په بل آیت کې راغلي دي چې ابلیس دا هم ووېل وخلقتني من نار" یعنې الطف او اشرف او مضئ د عناصرو دی نو زه تر ده افضل یم.

**پوه سه:** چې ابلیس یوازې انکار له سجدې څخه د آدم علیه السلام نه وکړی بلکې ده خبیث چې علت بیان د نه سجدې او ځان یې تر آدم علیه السلام افضل وباله تقبیح د امر الهي یې وکړه چې څرنګه خدای پاک فاضل په سجده سره و مفضول امر کوي، نو هم دا سبب د کفر د ابلیس و ګرځېدی لا مطلق عدم السجدة لان کثیراً من المؤمنین لا یصلون.... بیت:

تکبر عزازیل را خوار کرد ............ بزندان لعنت گرفتار کرد

تکبر مکن زینهار ای پسر ............ که روزی زدستش برآیی به سر

قَالَ فَاخْرُجْ مِنْهَا فَإِنَّكَ رَجِيمٌ ﴿٣٤﴾

خدای پاک ورته ووېل چې تا چې زما د امر تقبیح وکړه او عصیان دې وکړی نو ووځه "منها" یا له اسمانه یا له جنته څخه یا له زمرة الملائکة څخه علی اختلاف المفسرین په تحقیق چې ته مردود یې او هیڅ خیر کرامت په تا کې نسته چې په پښتو یې ترټلی بولي. او مظهري رح یې دا ترجمه هم کړې ده انک

ترجم بالشهب سره کـه تـه اسمان تـه نژدې سوې يعني لکـه زاني چي پـه ډېرو سنګسار ېږي وهذا وعيد شديد.

**درويش وايي**: چي بعض مايناسب هذا المقام په تفسير کي د سورة الاعراف تېر سوه.

**وَإِنَّ عَلَيْكَ اللَّعْنَةَ إِلَىٰ يَوْمِ الدِّينِ**

او پر تا دي لعنت وي يعني لېري والی له رحمت څخه د خدای ﷻ تر ورځي پوري د جزا يعني قيامت.

**پوښتنه**: پای د لعنت يې ولي د قيامت ورځ وټاکل مع ان ابليس ملعون في يوم القيامة وبعد ذالک ايضاً؟

**ځواب**: اولاً چي په عرف کي د خلګو ورځ د قيامت هغـه لري غايه ده چي دوی يو شی اوږدوي مثلاً يو سړی و يو چاتـه مکرر وايي چي فلانی کار وکړه هغه ورته وايي چي تر قيامته راته ووايـه کـه يې وکړم. وثانياً وروسته تر ورځ د قيامت خو ابليس په داسي عذاب اخته کېږي چي د هغـه عذاب سره لعنت ويل کان نسياً منسياً. وثالثاً: لعنت پای ته رسېږي پـه ورځ کي د قيامت و بعد ذالک وقت الجزا المرتب على تلک اللعنة. بغوي رح وايي چي چا ويلي دي چي اهل د اسمانو يعني ملائکه لعنت وايي پر ابليس لکه اهل ارض چي يې پر وايي فهو ملعون في السما والارض اقتداء بلعنة الله عليه کما في هذه الآية. تنبيه في حال البغوي محي السنة.

**پوه سه**: چي بغوي رح پـه علم حديث کي خپل اسانيد مرفوعه و عليه الصلوٰة والسلام تـه لري لکـه دده لـه کتاب څخه چي پر هامش د تفسير خازن نوشته معلومېږي او دې تولو علماوو په محي السنة سره منلی دی. او پـه فروعو د دين دی شافعي المذهب دی او دده د تفسير نوم معالم التنزيل دی. پـه تاريخ کي د کشف الظنون وايي: معالم التنزيل في التفسير للامام محي السنة ابی محمد الحسين بن مسعود الفرا البغوي الشافعي المتوفي سنه (۵۱۶) او امام مظهري کـه څـه هم حنيفي المذهب دی پـه بعض فروعي مسائلو کي مذهب د بغوي رح

مختاره کوي کما یظهر من مطالعة تفسیره (درویش میګوید ما نه این کار میکنم ونه انکار میکنم)

قَالَ رَبِّ فَأَنظِرْنِي إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ ﴿٣٦﴾

**پوه سه**: چي فا د "فانظروني" جزاء د شرط محظوف ده یعني ابلیس وویل چي ای رب ان اخرجتني من الجنة ولعنتني فانظرني "نو ماته مهلت راکره یعني وژنه مي مه تر هغه ورځي پوري چي انسانان اولاد آدم بعث کېږي.

**پوه سه**: چي دده خبیث اراده دا وه چي فرصت د اغوا د بني آدم پیدا کړي او له مرګه هم نجات لاس ته راوړي اذ لاموت بعد البعث. نو خدای ﷻ یې فرصت د اغوا منظور کړی تاچي دده شقاوت لا زیات سي لا اکراماً له مګر دویم سوال دده یې نه ومانه.

قَالَ فَإِنَّكَ مِنَ الْمُنظَرِينَ ﴿٣٧﴾ إِلَىٰ يَوْمِ الْوَقْتِ الْمَعْلُومِ ﴿٣٨﴾

خدای پاک ورته وویل چي ته له منظرینو څخه یې تر ورځي د وخت معلوم ای عند الله ای الوقت الذي یموت فیه الناس وهو النفخة الاولی یعني لا کما قلت الی یوم یبعثون.

**فائده**: د ابلیس د مرګ تر وله نېټه څلوېښت کاله ده یعني مابین النفختین.

**پوښتنه**: چي ابلیس په دې ممتد ژوند کي ولي نه زړېږي او له خپل کار څخه د اغوا نه لوېږي؟

**ځواب**: له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چي پر ابلیس چي ډېره زمانه تېره سي او هرم ته ورسېږي عاد ابن ثلاثین سنة. او د حضرت خضر علیه السلام په باره کي هم په اخبار صحیحه وو کي راغلي دي چي دی چي یوسل اوشل (۱۲۰) کاله ته ورسېږي فیعود شاباً فهو من المنظرین.

**فائده**: دا سوال او ځواب د خدای ﷻ او د لعین ابلیس تر منځ شفاهاً ومواجهةً نه وې بلکي د خدای ﷻ له خوا د ملکې په واسطه خبري وې لان کلام الله لمن کلمه رحمت دی او رضی ده او اجلال دی او دا سبب دی چي شفاهاً خبر دی د خدای ﷻ د چا سره اجلال د هغه دی تفضیل ورکړل سوی دی موسی کلیم الله په

نامه پر تولو انبیاؤ غیر له ابراهیم خلیل الله او د محمد رسول الله ﷺ ولي چې
ناموړو دوو نبیانو هم شفاهاً و مواجههً د خدای پاک سره خبري کړي دي.

**درویش وايي:** چي هغه خبره چي وهب بن منبه رح وايي چي یوم معلوم چي
خدای پاک و ابلیس ته مهلت ورکړی ؤ هغه ورځ د بدر ده، په ورځ د بدر ملکو
دی وواژه انتهی لیس بشيئ وخالف جمیع المفسرین والمحدثین، ولي که دده
قول صحیح وای خو علیه الصلوة والسلام به زبری ورکړی وای صحابه کرامو
ﷺ ته بلکې په خلاف دده د قول په حدیث کي راغلي دي چي ابلیس په رنګ د
سرې ابوجهل یې تر لاس نیولی ؤ چي ملکې د بدر په غزا کي راغلي ابلیس له
ابوجهل څخه لاس کش کړی او دا یې ورته وویل اني ارٰی ما لاترون آه.

قَالَ رَبِّ بِمَآ اَغْوَيْتَنِىْ لَاُزَيِّنَنَّ لَهُمْ فِى الْاَرْضِ وَلَاُغْوِيَنَّهُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿۳۹﴾

**پوه سه:** چي کلمه د ما لپاره د قسم ده او کلمه د ما مصدریه ده والمعنی
باغوائک واضلالک ایای قسمی، زه به ښائسته کوم اولاد ته د آدم یعني معاصي
او کبائر ګنهونه الی غیر ذالک به د دوی په نظر کي د ېر زیبا او ښائسته ورکوم په
دنیا کي، او زه به دوی باعثه کوم پر ګنهو او د ګمراهی پر کارو تو له.

**پوه سه:** چي کلمه د با لپاره د قسم او کلمه د ما مصدریه ده.

اِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِيْنَ ﴿۴۰﴾

مګر نه ستا بندګان په دوی کي چي خالص یې ګرځولی دی خپل دین په
توحید او عبادت سره او ځانونه یې لپاره د رضٰی ستا وقف کړي دي.

**درویش وايي:** چي دا وه ترجمه د آیت پر تقدیر د کسر اللام یعني پر صیغه
د اسم فاعل لکه قرائت د ابن کثیرؒ او ابو عمرو او ابن عامر رحمهم الله چي دی په تو له
قرآن مجید او باقي قراؑ یې په فتح د لام پر صیغه د اسم مفعول وايي، نو یې
معنا داده نه هغه کسان چي ستا خالص ګرځولي لپاره د ځان یعني ستا عبادت
کوي نه د بتانو، او تا د ځان لپاره غوره کړي او خپل محبت دي په زړو کي ور
اچولی وي بحیث لا یلتفتون الی سواک یعني پر هغو زما د اضلال دروازه بنده
ده اللهم اجعلني منهم بقدرتک العظیم.

**درويش وايي**: چي په لباب التاويل في معاني التنزيل المشهور بالخازن چي تصنيف دی د امام علامة قدوة الامة ناصر الشريعة ومحي السنة علاء الدين علي بن محمد بن ابراهيم البغدادي الصوفي چي ده تصنيف پر څلرويشت د شهر رمضان سنه (۷۲۵) هجري قمري کي فارغ سوی دی تغمده بغفرانه داسي وايي په تفسير کي د آيت مذكوره چي حقيقت فعل د شي دی خالصًا لله عن شائبة الغير، نو څوک چي يو عمل له طاعاتو څخه وکړي نو به يا مراد د ده په هغه طاعت سره وجه الله وي فقط او يا غير الله وي فقط او يا بې دواړه غرضه وي اما ماكان لله تعالى فقط فهو الخالص المقبول واما كماكان لغير الله فقط لکه عمل د طاعات د ريا کار په نوافلو کي او يا په هيئت کي د فرائضو فهو الباطل المردود او کې مجموع الامرين مقصود وه، نو که ترجيح جانب د خدای ﷻ درلوده كان من المخلصين الناجين وان ترجح جانب غير الله كان من الهالكين انتهى بزيادة التوضيح.

## قَالَ هٰذَا صِرَاطٌ عَلَيَّ مُسْتَقِيمٌ ﴿٤١﴾

خدای (ﷻ) وويل چي دغه عمل بالاخلاص لار د وصل کېدلو ماته بېله ګمراهی. (نو علی په معنی د الي دی) او سمه لار ده بې کږوالي، او يا "علی" پر خپله معنی دی لکن مشار اليه د هذا خلاص والی د مخلصينو ستا له اغوا څخه.

**ترجمه**: تخلص د مخلصانو ستا له اغوا څخه لار ده چي پر ما رعايت د هغې لاري سته كالحق الذي يجب مراعاته، او اخفش رحمه الله وايي چي ترجمه يې داده چي پر ما دلالت و صراط مستقيم ته لازم دی بمراعات الحكمة والفضل.

**پوه سه**: چي ابن سرين، يعقوب او قتاده رحمهم الله لفظ د "علی" "عَلِي" وايي په تشديد د يا او مرفوع او په تنوين يې وايي هذا ای الاخلاص طريق لار ده "علي" يعني پورته مستقيم لايمال چي کږوالی پکښې نسته.

## إِنَّ عِبَادِي لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطٰنٌ إِلَّا مَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْغٰوِينَ ﴿٤٢﴾

**پوه سه**: چي اضافت د "عبادي" لپاره د استغراق ده يعني مؤمن او کافر دواړو ته شامل سي تاچي استثنا متصل د الا من تبعک څني صحيح سي،

ومعنى الآية چې سلطان او غلبه په اراده د خدای ﷻ نشته مگر پر غاوين او
هرچه مؤمنان دي فلا سلطان لک عليهم. نو دا آيت تصديق د قول د ابليس چې
په دمخه آيت كي تېر سو لاغوينهم اجمعين الا عبادک آه، نو ددې نظير هغه
آيت دی انه ليس له (ای لابليس) سلطان على الذين آمنوا وعلى ربهم يتوكلون
انما سلطانه على الذين يتولونه" نو مقصود په دې آيت كي بيان د عصمت د
مخلصين له اغوا څخه د شيطان رجيم.

**درويش وايي:** چې روح البيان د آيت معنى داسي كړې ده ان عبادي وهم
المشار اليهم بالمخلصين يعني اضافت لپاره د تشريف د مضاف ده آه، نو ده
په نېز استثنا منقطع ده په معنى ده لكن لان الغاوين ليسوا داخلون في عبادي
عنده فافهم. او خازن هم استثنا متصل بولي كمامر لكن مظهري كه څه هم
استثنا متصل بللې ده او بيان د هغه يې په ښه وجه سره كړى دى لكن وروسته
يې احتمال د انقطاع د استثنا په بعيده وجه راوړى دى فارجع الى تفسيره.

وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمَوْعِدُهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٤٣﴾

په تحقيق جهنم ځای دی د غاوينو يا د متبعينو د شيطان ټوله.

لَهَا سَبْعَةُ أَبْوَابٍ

جهنم لره اووه دروازې دي يعني منازل.

**پوه سه:** چې جهنم مؤنث سماعي دی ځكه يې مؤنث ضمير ورته راجع كړى.

**پوه سه:** چې دا دي نومان د جهنم (١) جهنم (٢) لظى (٣) الحطمة (۴)
السعير (۵) السقر (٦) الجحيم (٧) الهاوية.

**درويش وايي:** چې بغوي رح ويلي دي ان الله وضع الجنان على العرض ووضع
النيران بعضها فوق بعض انتهى. وفيه ان الجنان لها درجات عاليات بعضها من
بعض كما ورد في الاحاديث الصحيحة فتامل. مظهري رح وايي چې هناد، ابن
المبارک، احمد، ابن جرير، ابن ابى الدنيا او بيهقي رحمهم الله له علي بن ابى طالب
رضي الله عنه څخه روايت كړى دى قال ابواب جهنم هكذا، نو ده يو لاس پر بل لاس

کښېنېو او ګوتي يې سره خلاصې کړې يعنې باب فوق باب، نو يو وار اوله طبقه ډکه کړل سي ثم الثاني ثم الثالث ثم الرابع ثم الخامس ثم السادس ثم السابع.

**لِكُلِّ بَابٍ مِّنْهُمْ جُزْءٌ مَّقْسُومٌ ﴿٤٤﴾**

هري طبقې لره د غاوين جزء معين ستنه. بغوي له ضحاکؒ څخه په روايت وايي چي په اوله طبقه کي يې اهل توحيد من المؤمنين المذنبين دي چي دوی به په قدر د ګنهو پکښې وي او اخيراً دا طبقه يکلخته خالي پاتېږي.

**درويش وايي:** چي د دغې درجې له خالي والي څخه مراد دی د شيخ اکبر محي الدين ابن العربي قدس سره چي وايي ياتي على جهنم زمان ليس فيها احد، او په دويمه طبقه کي نصاری دي او په دريمه طبقه کي يهودان دي، او په څلورمه طبقه کي صائبين دي او په پينځه کي مجوسيان دي يعنې آتش پرستان، او په شپږمه کي مشرکان دي او په اوومه طبقه کي چي ډېره سخته ده تر ټولو منافقان دي كما قال الله تعالى ان المنافقين في الدرک الاسفل من النار، امام قرطبيؒ وايي الباب الاول جهنم وهو اهون عذاباً من غيره وهو مختص لعصات هذه الامة انتهى.

**درويش وايي:** چي اولى دا وه چي تخصيص يې د عصاتو د امت محمديه نه وای کړی لان في المؤمنين للامم السابقة ايضاً وفيهم عصات لان العصمة من الذنوب مختص بالانبياء عليهم السلام، نو د نورو امتو ګناه کاران چي شفاعت يې ونه کړل سي چېري او په کومه طبقه کي به وي؟ ولي نوري شپږ طبقې خو د کفارو دي او دوی يعنې عصات د امم سابقه خو مؤمنان دي.

**پوښتنه:** عصات د اهل توحيد په ګنهو کي فرق سره لري. مثلاً د مؤمن د قاتل عمداً په باره کي خدای پاک وايي "ومن قتل مؤمناً متعمداً فجزائه جهنم خالداً فيها الآية" که څه هم د اهل سنة والجماعة په نېز له خلود څخه مکث طويل مراد دی. او ترمذيؒ له ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت کړی دی قال قال رسول الله ﷺ لجهنم سبعة ابواب اشدها غماً وكرباً وحزناً (واتنتها) للزنات الذين ركبوا الزنى بعد العلم يعني بحرمته، نو د پوښتنې غرض دادی چي عصات المؤمنين چي په يوه طبقه کي د اور وي، نو خو عذاب د قاتل عمداً او د زاني د

نورو گناه کارانو مثلاً غيبت کونکي يا بهتان ويونکي الی غير ذالک سره برابر سو، ولي چي د يوې طبقې اور به څو رنگه وي؟

**ځواب**: په دغه يوه طبقه کي مختلف ځايونه ستبه في شدة العذاب وخضته في الجملة کمايدل عليه الحديث المذکور آنفًا في باب الزناة.

**سوال**: په دې حديث کي خو داسي راغله چي جهنم لره چي عصات المؤمنين پکښې دي اووه دروازې دي الحديث، او په قرآن کريم کي خو داسي چي لوی جهنم لره اووه دروازې دي فکيف التوفيق؟

**ځواب**: جهنم لفظ مشترک دی په منځ کي د ځای د اوسېدلو او د عذاب د کفارو او د مؤمنانو د اهل التوحيد فلا منافات بين القرآن الکريم والحديث الشريف، ولي چي په قرآن کريم کي معنی اول مراد ده او په حديث شريف کي معنا ثاني مراد ده، و حاصل الجواب ان لکل واحد من المعنيين سبعة ابواب فافهم فان سانح عزيز فلما بنه عليه المفسرون.

**يوه سه**: چي ثعلبي ؒ روايت کړی دی چي سلمان فارسي ﷺ چي دا آيت "وان جهنم لموعدهم اجمعين" واورېدی، درې ورځي وتښتېدی چي له ډېره خوفه څخه په ځان نه پوهېدی، نو يو بل صحابي و عليه الصلوة والسلام ته راوستی عليه الصلوة والسلام پوښتنه ځني وکړه چي څه دروسوه، سلمان فارسي ﷺ ورته وويل يا رسول الله دا آيت چي نازل سو وان جهنم الآية، فوالذي بعثک بالحق لقد تقطعت قلبي دې آيت زما زړه راټوک ټوک کړی، نو خدای پاک دا آيت نازل کړی.

## إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّٰتٍ وَعُيُونٍ ۝٤٥

په تحقيق هغه کسان چي ببرېږي له خدای ﷻ څخه او متابعت د شيطان يې نه وي کړی په شرک کي په جنتو کي به وي او په ښو چينو کي د جنتو، يا معنا داده چي هر يوه لره به يو جنت او يو عين وي چي مقابله د جمع په جمع سره لپاره د توزيع د آحاد پر آحاد وګرځي کما في قوله رکبوا دوابهم ولبسوا ثيابهم او يا معنی داده چي هر يوه لره به جنات متعدد و عيون متعدده وي، نحو قول القائل اعطوا دراهم فافهم.

ادْخُلُوهَا بِسَلَامٍ آمِنِينَ ﴿٤٦﴾

داخل سئ خپلو جنتونو ته.

**پوه سه**: چي تولـه مفسرين وايي چي دلتـه قـول مقدر دی يعني يقال لهم ادخلوا الجنات ووجه التقدير الربط بما قبله "بسلام" يعني په سلامتيا سره او يا تاسي ته به سلام ويل کېږي د ملکو له خوا څخه پر هر تقدير بسلام حال دی له ضمير څخه د فاعل په "ادخلوا" کي والباءُ للملابسة ای متلبسين بسلام "آمنين" من الموت والآفات والخروج من الجنات. دا لفظ هم حال دی.

وَنَزَعْنَا مَا فِي صُدُورِهِمْ مِنْ غِلٍّ إِخْوَانًا

وه به باسو موږ هغه چي په سينو کي د جنتيانو يعني په زړو کي يو د بل سره په دنيا کي پټ بغض او عداوت ددوی له سينو څخه "اخوانًا" يعني توله جنتيان لکه حقيقي ورونه به وي.

**سوال**: دا نزع خو په آخرت کي کېږي چي مستقبل دی. نو په "نزعنا" ماضي سره يې څرنګه تعبير وکړی؟

**ځواب**: د قرآن کريم قانون دی چي يو امر او کار چي متيقن الوقوع وي که څه په مستقبل کي وي تعبير په ماضي څني کوي دلالةً على تيقن الوقوع.

**درويش وايي**: چي سعيد بن منصور او ابو نعيم او ابن ابى شيبة او طبراني او ابن مردوية رحمهم الله له حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چي زما اميد دی چي زه، عثمان طلحة بن الزبير او زبير رضي الله عنه به هم له ډلي د "نزعنا" يو.

**درويش وايي**: چي علي رضي الله عنه هغو فتنو ته اشاره وکړه يعني د عثمان رضي الله عنه شهادت چي په خپل سرای کي شهيد کړل سو. او او نورو واقعاتو ته چي د صحابه مذکورينو تر منځ منځ ته راغلي دي. دا حديث مظهري رح او روح البيان، او روح المعاني او خازن تولو راوړی دی، په بل حديث کي راغلي دي چي جنتيان چي د جنت دروازې ته ورسېږي د اور پر خوا د سترګو په کنجانو ګوري لکن چي په جنت ننوځي نزع الله ما في صدورهم من غل.

**پوه سه:** چې بعض مفسران وايي چې مراد په دې آيت کې اخراج د حسد دی د جنتيانو تر منځ په درجاتو کې د جنت يعني اعلی او اسفل او په درجاتو د قرب الی الله.

**درويش وايي:** چې د دې تفسير دا معنی نه ده چې جنتيان به تر دخول د جنت وروسته حسد سره کوي لکن خدای پاک به يې هغه حسد له زړو څخه وباسي کيف والجنة دار السرور الی الابد فکيف يکون فيها حسد بلکې مراد د مفسر دادی لکه چې په دنيا کې په د سافل حسد د عالي سره جاري وي لکن پر درجاتو د جنت او د قرب وخدای ﷻ د جنتيانو زړونه به خدای پاک ځنې ګرځولي وي فتامل.

**فائده:** "اخوانًا" يا حال دی له ضمير څخه د "في جنتات"

**پوښتنه:** في جنات کې ضمير کله سته، جنات نه فعل او نه مشتق دی؟

**ځواب:** نحات وايي چې دا صرف اعتبار نحوي دی يعني ضمير خو په متعلق کې د في جنات وای کائنين في جنات متعلق چې حذف سو ضمير يې په في جنات کې مستتر فرض کړی ليقل الحذف فافهم، او يا حال دی له فاعل څخه د "ادخلوها" او يا حال دی من الضمير في امنين.

## عَلٰى سُرُرٍ مُّتَقٰبِلِيْنَ ﴿٤٧﴾

"علی سرر" جمع د سرير ده، نقل الخازن رح چې بعض اهل معاني وايي چې سرير مجلس رفيع عال چې لپاره د خوشالی جوړ سوی وي، نو ګويا سرير له سرور څخه مأخوذ دی، بيا خازن له ابن عباس رضي الله عنهما حديث راوړی دی چې دا تخت د سرو زرو جوړ دی او زبرجد او يا قوت او ملغلري پوري خړېږي "متقابلين" يعني سره مخامخ.

**پوه سه:** چې "علی سرر" په اعتبار د متعلق محذوف او "متقابلين" دواړه صفت د "اخوانًا" دی، هناد له مجاهد رح څخه نقل کوي په تفسير کې د متقابلين لايری بعضهم قفا بعض، ولې يو جنتي که وغواړي چې پر بغل ځنګ ووهي، نو هغه بل جنتي څټ ور وګرځوي، نو د هغه بل سرير پر راوګرځي بيرته سره مخامخ سي،

**درويش وايي:** چې مظهري په نقل د بغوي رح څخه او خازن وايي چې په بعضو اخبارو کې راغلي دي چې يو مسلمان په جنت کې چې اراده د ملاقات د

یو قریب یا دوست وکړي، نو دواړي سریر سره مخامخ را رواني سي، نو د سریر تابت سره ملاقي سي او خبري سره وکړي او چي خبري پای ته ورسیږي هر سریر د شا پر خوا روانه سي انتهی مع زیادة.

لَا يَمَسُّهُمْ فِيهَا نَصَبٌ وَّمَا هُمْ مِّنْهَا بِمُخْرَجِينَ ﴿٤٨﴾

نه رسیږي و جنتیانو ته په جنت کي ادنی تکلیف (لکه چي له مس څخه فهمیږي) او نه هم دوی له جنت څخه ایستل کیږي.

**پوه سه:** چي لوی نعمت د جنت خلود دی.

**فائده:** لا یمسهم آه سره د معطوف علیها استیناف دی یا حال بعد الحال له ضمیر څخه د متقابلین دی. مظهري په نقل د بغوي وایي چي طبراني د عبد الله بن الزبیر ﷺ څخه روایت کړی دی چي علیه الصلوة والسلام یوه ورځ پر بعضو اصحابو تیریدی هغو سره خندل. علیه الصلوة والسلام ورته وویل تاسي خاندئ وبین اید یکم النار فنزل جبرئیل وقال یقول لک ربک لِمَ تقنط عبادي ولي نا امیده کوې ته زما بندګان زما له رحمت څخه ونزل.

نَبِّئْ عِبَادِي أَنِّي أَنَا الْغَفُورُ الرَّحِيمُ ﴿٤٩﴾ وَأَنَّ عَذَابِي هُوَ الْعَذَابُ الْأَلِيمُ ﴿٥٠﴾

خبره کړه اي محمده (ﷺ) بندګان زما په دې سره چي په تحقیق زه بخښونکی د ګنهو یم (بالتوبة وقد یغفر بلا توبة اذا شأ) او مهربان یم، او په تحقیق عذاب زما عذاب دی دردناکه.

**درویش وایي:** چي په قرار د شان نزول مذکور جمله د وان عذابي آه ددې لپاره ذکر سوه چي مؤمنان پر مغفرت او رحمت الهي اعتماد کلي ونه کړي او عمل صالح پرینږدي او پر ګناه دلاوره نسي وذالک لان الایمان بین الخوف والرجأ فلا ینبغي للمؤمن القنوط والاعتماد.

**فائده:** ایت د "نبئ عبادي" تر پایه پوري خلاصه د وعد او وعید د آیتو د هغه تقریر دی. اما آیة الوعد فقوله تعالی شانه ان المتقین تر پایه پوري واما آیة الوعید فمن قوله تعالی وان جهنم لموعدهم الی اخیرها او له دې آیت څخه دا هم معلومه سوه چي مراد له متقینو څخه په دمخه آیت کي متقین عن الشرک دي لا

من يتقي الذنوب كلها صغيرها وكبيرها لان المغفرة فرع المعصية. ترمذي له ابو هريره ﷺ څخه روايت کړی دی چي رسول اللهﷺ وويل لو يعلم المؤمن ما عند الله من العقوبة ماطمع في الجنة ولو يعلم الكافر ما عند الله من الرحمة ما قنط من الجنة" قتاده وايي چي ما ته رسېدلې ده چي نبي اللهﷺ وويل لو يعلم العبد قدر عفو الله ما تورع عن حرام كه خبر سي بنده په اندازه د عفوي د خدای هيڅ پرهېز به يې نه کولای له حرام څخه ولو يعلم قدر عذابه لتخرج نفسه. او که خبر سي بنده په اندازه د عذاب د خدای ﷻ هر آئينه ختلې به وای روح دده.

**درویش وايي**: چي بخاري او مسلم له ابي هريره ﷺ څخه داسي روايت کړی دی سمعت رسول اللهﷺ چي ده مبارک وويل چي خدای پاک چي پيدا کړی رحمت (يوم خلقها) سل رحمته، او نهه نيوي حصې يې له ځان سره وساتلې يعني د قيامت د ورځي لپاره او يوه حصه يې په ټولـه مخلوق ووېشـله يعني حتی الحيوانات کما جاً صراحةً في حديث فلو يعلم الكافر. که کافر خبر سي په ټولو رحمتو د خدای يعني نهه نيوي له جنت څخه به نا اميده نسي او که کافر خبر سي په عذاب د خدای ﷻ يعني في يوم القيامة نه به سي په امن کي له اور څخه.

**فائده**: خدای پاک په دې آيت توصيف د ذات خپل په غفور رحيم سره وکړی په معذب وغيره سره نه وکړی ترجيح يې ورکړه و جانب ته د وعد پر وعيد باندي فافهم. يو محقق شاعر وايي:

گرچه جرم من ارعدد بيش است ......... سبقت رحمتی ازان پيش است[1]
چه عجب گر عذاب نه نمايد ......... بر گنه پيشگان ببخشايد

حافظ شيرازي رح وايي:

هرچند غرق بحر گناهم زشش جهت ..... گر اشنای عشق شوم غرق رحمتم

وَنَبِّئْهُمْ عَنْ ضَيْفِ إِبْرَٰهِيمَ ﴿٥١﴾

او خبر کړه ته يا محمد (ﷺ) دوی يعني کفار خصوصاً کفار مکه له حاله د مېلمنو د ابراهيم عليه السلام.

---

[1] اشاره ده و هغه حديث قدسي ته ده "سبقت رحمتي عن غضبي"

**پوه سه**: چي دا جمله عطف ده پر هغه جملې "نبئ عبادي" تناسب د معطوفینو یې په دې کې دی چې معطوف علیها جمله لپاره د تفاوت د مسلمانانو او کافرانو ږ په آخرت کې او دا جملې معطوفه د تفاوت د معطوفینو دی په وعد او وعید سره په دنیا کې هم.

**فائده**: "ضیف" اسم جنس دی پر یوه او دوو او جمع یې په اطلاق روا دي، او مذکر او موئنث پکښې برابر دي، مراد دلته ملکې دي چې خدای پاک را استولي وې چې پر ابراهیم علیه السلام زیری وکړي د زوی او د اهلاک د قوم لوط.

إِذْ دَخَلُوا عَلَيْهِ فَقَالُوا سَلَامًا

چې دوی ورغلې د ابراهیم علیه السلام کور ته او وه یې ویل په تحیه کې د دخول لفظ د سلامًا ای نسلم سلامًا یا سلمنا سلامًا په هر صورت سلام د ملکو په جمله فعلیه سره ؤ.

قَالَ إِنَّا مِنكُمْ وَجِلُونَ

وویل ابراهیم (علیه السلام) چې موږ له تاسي څخه بیریږو، ابراهیم علیه السلام په دې پوه سو چې ملکې خو دي، ولې یو بېله اذن راغلې او بل بېوخته راغلې او بل دا چې ده چې دوی ته ورته راوړه هغو نه خوړل، او "وجل" اضطراب د نفس دی په سبب د مکروه متوقع.

**سوال**: ابراهیم علیه السلام له څه شي څخه بیریدی؟

**ځواب**: له دې څخه بیریدی چې ملائکه د عذاب به وي لان الانبیاء علیهم السلام اشد خوفًا من عذابه تعالی تر عوام الناس.

قَالُوا لَا تَوْجَلْ إِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلَامٍ عَلِيمٍ

ملکو ورته وویل چې بیریږه مه موږ راغلي یو چې تاته زیری وکړو د زوی یعني اسحاق علیه السلام لقوله تعالی في موضع آخر فبشرناها باسحق چې دا غلام به علم بلیغ وي، نو ابراهیم علیه السلام په تعجب کې سو په دې سبب چې دی ډېر کلان ساله او ساره دده کور ودانه ډېره سپینې سرې وه، نو ځکه یې د تعجب په استفهام له ملکو څخه یې سوال وکړی.

## قَالَ اَبَشَّرْتُمُوْنِيْ عَلٰٓى اَنْ مَّسَّنِيَ الْكِبَرُ فَبِمَ تُبَشِّرُوْنَ ﴿٥٤﴾

ابراهیم علیه السلام ورته وویل تاسي ماته زېرى د غلام راکوئ سره ددې چي زه کړى یم یعني ماته رسېدلی ده کلان سالي في الغاية (نو کلمه د على په معنى د مع ده والاستفهام للانکار بالنظر الى عالم الاسباب لابالنظر الى قدرة الله تعالى حاشا لله) نو په څرنګه تعجب او زېري سره ماته زېرى کوئ، ولي چي زېرى خود هغه شي کېږي چي تصور د وقوع یې عادةً ممکن وي.

## قَالُوْا بَشَّرْنٰكَ بِالْحَقِّ فَلَا تَكُنْ مِّنَ الْقٰنِطِيْنَ ﴿٥٥﴾

ملکو ورته وویل چي موږ زېرى په حق سره درته وکړى یعني په امر د خداى پاک چي څوک قضا دده نسي ردولاى. نو ته مه ګرځه له نااميده کونکو څخه ولي چي خداى پاک بشر بېله ابوېنو لکه آدم علیه السلام پیدا کړی، نو د شيخ او عجوز عقیم څخه یې نسي پیدا کولاى؟

## قَالَ وَمَنْ يَّقْنَطُ مِنْ رَّحْمَةِ رَبِّهٖٓ اِلَّا الضَّآلُّوْنَ ﴿٥٦﴾

ابراهیم علیه السلام په استفهام انکاري ورته وویل چي څوک نه نااميده کېږي له رحمت څخه د رب دده مګر هغه کسان چي خطاوتلي وي او پراخه رحمت د خداى او کمال علم او کامل قدرت د خداى عزوجل نه پېژني. ولي چي قنوط یعني نا امیدي له رحمت څخه د خداى جل جلاله ګناه کبیره ده لکه امن له عذاب څخه د خداى پاک.

**درویش وایي:** چي په شرح الحکم کي وايي که څوک په درياب کي د ګنهو ډوب وي او دا غريبه ورته معلومېږي چي ما به خداى پاک ددې شهواتو او معاصیو څخه څرنګه خلاص کړي، نو دې سړي په صحيح معنى ددې آيت "وكان الله على كل شيئ مقتدرا" نه ده فهمولې، ولي په دې آيت کي خداى پاک ځان پر هر شي قادر بللی دی نو ستا خلاصون له ګناه څخه خوهم يو شي دى.

## قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ اَيُّهَا الْمُرْسَلُوْنَ ﴿٥٧﴾

ابراهیم (علیه السلام) ورته وویل څه کار او شان سوی له بشارته اې رسولانو؟

**پوښتنه**: ابراهیم علیه السلام څه وېرېدې چي د ملکو سوی له بشارت څخه بل کار هم لري چي پوښتنه یې ځني وکړه؟

**ځواب**: دی په دې پوه سو چي د ټولو ددوی خو بشارت یوازي کار نه دی، ولي د زېري لپاره یوه ملکه هم کافي ده. لکه زکریا علیه السلام ته چي په یحی علیه السلام سره یوازي جبرئیل علیه السلام زېری ورووړی، یا مریم ته د عیسی علیه السلام زیری هم یوازی جبرئیل علیه السلام ورووړی.

## قَالُوٓا إِنَّآ أُرْسِلْنَآ إِلَىٰ قَوْمٍ مُّجْرِمِينَ ۙ إِلَّآ ءَالَ لُوطٍ

ملکو ورته وویل چي موږ را استول سوي یو لپاره د اهلاک د قوم چي کافران دي او علاوه تر کفر یې لواطت عادت گرځولی دی مگر نه آل د لوط علیه السلام یعني اتباع دده او اهل دین دده. دا ترجمه پر دې تقدیر ده چي استثنا له قوم څخه یعني منقطع وي، ولي چي قوم خو مقید په مجرمین سره او آل لوط خو مجرمین نه وه. او که استثنا سي له ضمیر څخه چي په مجرمین کي دی راجع وه قوم ته یوازي سي، نو استثنا متصل ده، والقول والارسال شامل للمجرمین و اتباع لوط علیه السلام والمعنی انا ارسلنا الی قوم اجرموا کلهم الا آل لوط منهم یعني چي موږ هلاک کړو مجرمین او نجات ورکړو آل لوط ته کما قال الله عزوجل.

## إِنَّا لَمُنَجُّوهُمْ أَجْمَعِينَ ۝٥٩

موږ نجات ورکوو آل لوط ټولو ته. یعني له عذاب څخه چي مسلط پر قوم مجرمین گرځي، نو که استثنا متصله سي نو دا جمله مستانفه ده په استیناف بیاني او که استثنا منقطع سي، نو دا جمله په ځای کي د خبر ده لکن د ده چي معنی د الا وه وه فتدبر.

## إِلَّا ٱمْرَأَتَهُۥ قَدَّرْنَآ ۙ إِنَّهَا لَمِنَ ٱلْغَٰبِرِينَ ۝٦٠

استثنا د آل لوط څخه یعني مگر ماینه د لوط علیه السلام، ولي چي موږ فیصله کړې ده یعني په امر د خدای جل جلاله چي دا به پاتېږي په عذاب کي سره د کفارو په سبب د کفر ددې.

**سوال:** کفر د قوم لوط خو شرک ؤ نو لوط څرنګه دا مشرکه په نکاح کول؟

**ځواب:** نکاح د مشرکانو د لوط علیه السلام په دین کي روا وه. هو! زموږ په دین کي ناروا ده. ویحتمل چي دې مايني به یې خپل شرک له لوط علیه السلام څخه پټ ساتی.

**فائده:** لوط بن هاران بن تارخ د ابراهیم علیه السلام د وررور زوی ؤ. ابراهیم علیه السلام چي د نمرود له اوره نجات پیدا کړی، نو وشام ته یې هجرت وکړی لوط علیه السلام ورسره ؤ او ابراهیم او لوط علیهما السلام یو ځای ځانونه سنت کړل چي لوط علیه السلام د دروپینځوسو کالو ؤ او ابراهیم علیه السلام د اتیا کالو ؤ. نو ابراهیم علیه السلام په فلسطین کي واړول چي په منځ کي د شام او مصر واقع دی، چي په فلسطین کي رمله او غزه او عسقلان او نور ځایونه هم داخل دي، او لوط علیه السلام په اردن کي واړول چي شام ته نژدې د یو ځای نوم دی. نو لوط علیه السلام خدی پاک رسول وګرځاوه په څلورو ښارو کي چي لوی ښار یې سدوم ؤ او دده قوم علاوه پر شرک عمل د خبائثو یعني لواطت کاوه فارسل الله تعالى اليهم ملائكة الاهلاک کما سیاتي في القرآن العزيز.

فَلَمَّا جَآءَ اٰلَ لُوْطِ ۨ الْمُرْسَلُوْنَ ﴿٦١﴾ قَالَ اِنَّكُمْ قَوْمٌ مُّنْكَرُوْنَ ﴿٦٢﴾

قَالُوْا بَلْ جِئْنٰكَ بِمَا كَانُوْا فِيْهِ يَمْتَرُوْنَ ﴿٦٣﴾

پس چي ورغلې آل لوط ته یعني کور ته د لوط علیه السلام. نو لوط (علیه السلام) وویل چي په تحقیق تاسي نابلده د قوم واست یعني زما زړه انکار درځخه کوي، ولي چي پر تاسي د سفر نښې یعني سپېرې پښې مثلاً نه معلومېږي او له اهل څخه ددې وطن هم نه یاست. نو زه بېرېږم چي ستاسي له خوا ماته یو غم پېښ نسي؛ ملکو ورته وویل اضرابًا عن قوله "انکم آه" بلکې موږ راتګ کړی دی په هغه څه سره چي ستا قوم په هغه کي شک درلودی یعني عذاب الهي، ستا پر دښمنانو، نو دا ستا د خوشالۍ شی دی او ستا به په دښمنانو زړه سوړ سي.

وَاَتَيْنٰكَ بِالْحَقِّ وَاِنَّا لَصٰدِقُوْنَ ﴿٦٤﴾

او موږ راتګ کړی دی تاته په حق سره یعني په یقیني شي سره چي عذاب الهي دی او موږ رشتیا ویونکي یو في ما اخبرناک.

فَأَسْرِ بِأَهْلِكَ بِقِطْعٍ مِّنَ الَّيْلِ وَاتَّبِعْ أَدْبَارَهُمْ وَلَا يَلْتَفِتْ مِنكُمْ أَحَدٌ

نو بوزه ته د شپې (لکه چي معنی د اسرا ده) اهل ستا په یوه حصه کي د شپې وقیل في اخیره.

**سوال:** اسرا خو د شپې تګ ته وايي فما فائدة بقطع من اللیل؟

**ځواب:** فائده یې داده چي تر وله شپه اسری ته حاجت نسته او ته تابع او وروسته سه تر دوی ددې لپاره چي په چابک چابک تګ یې امر کوي او حالات ددوی به هم درمعلومېږي او نه دي ګوري تر شا له تاسي څخه هیڅ څوک. ولې چي د هر هولناک عذاب پر دوی راځي شاید چي ستاسي زړونه به یې تحمل ونه لري. او یا له دې سببه دي تر شا نه ګوري چي د قوم عذاب ووینې زړه به یې پر وسوځل سي. نو هغه عذاب به دوی ته هم ورسېږي. او بعض مفسرین رحمهم الله وايي چي تر شا دي له دې سببه نه ګوري چي هغه خپل سرایونه او ځایونه چي ووینې هجرت علی الوطن المالوف به ګران ورته تمام سي والله اعلم بمراده في کتابه.

وَامْضُوا حَيْثُ تُؤْمَرُونَ ﴿٦٥﴾

او ولاړ سئ تاسي هغه ځای ته چي تاسي امر کړل سوي یاست یعني د خدای پاک له خوا. ابن عباس رضي الله عنه وايي چي شام، او قتاده رح وايي غزه او بعض وايي اردن.

وَقَضَيْنَا إِلَيْهِ ذَٰلِكَ الْأَمْرَ أَنَّ دَابِرَ هَٰؤُلَاءِ مَقْطُوعٌ مُّصْبِحِينَ ﴿٦٦﴾

"وقضینا الیه" ای اوحینا الی لوط علیه السلام چونکه قضا دلته په معنی د وحي ده نو یې له دې سببه متعدي په الی وګرځاوه چي صله د وحي ده.

**بوه سه:** چي ذالک الامر مبهم دی او "ان دابر آه" یې خبر دی. والمعنی چي دا خبره یعني اصل او بېخ ددغو کسانو چي کافران دي پرې کېږي حاصل دادی چي تول به هلاکېږي یو نفر به یې هم نه پاتېږي چي دې ته په عربي ژبه استیصال وايي. او په پښتو بېخ کښنه وايي چي په فارسي بېخ کندن ورته وايي حال کونهم داخلین في الصبح وهو حال من هولاء.

**فائده:** په نیز د نزول عذاب في الدنیا وکذا في یوم القیامة قرابت او نسب او

سبب هیڅ په بنه نه دی. ته فکر ووهه چي د لوط علیه السلام ماینه سره ددې چي د زوجیت سبب یې د لوط علیه السلام سره در لودی څرنګه خدای پاک د آل لوط څخه مستثنی کړه په نیز د نزول د عذاب حیث قال "الا امرئته الآیة" بیت:

پابدان یار گشت همسر لوط .......... خاندان نبوتش گم شد

بلکې تر زوجیت اقرب قرابت مثل قرابت نوح مع ابنه کنعان هم سره د کفر فائده نه کوي نه په دنیا کي او نه په اخرت کي. بیت:

پسر نوح بابدان بنشست .......... خاندان نبوتش گم شد

ومثل ابراهیم الخلیل علیه السلام وآبیه آذر علی مانص به القرآن حاصل دا چي نسب یا سبب هلته فائده کوي چي ایمان او عمل صالح څه ناڅه ورسره ملګري وي.

**وَجَآءَ اَهۡلُ الۡمَدِيۡنَةِ يَسۡتَبۡشِرُوۡنَ ﴿۶۷﴾**

او راغله اهل د ښار چي سدوم یې نوم و په داسي حال کي چي خوشاله وه په مېلمنو د لوط علیه السلام او دوی به یوه و بل ته ناري وهلې چي راځئ د لوط په کور کي ښائسته هلکان راغلي دي چي لواطت ورسره وکړو، ولي چي ملکي په صورت کي د غلمانو چي ډېر ښائسته وه د لوط کره ورغلي وي.

**قَالَ اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ ضَيۡفِىۡ فَلَا تَفۡضَحُوۡنِ ﴿۶۸﴾**

لوط (علیه السلام) قوم ته وویل چي دده کور ته د ښائسته وو مېلمنو په طلب پسي راغلي وه چي دا کسان زما مېلمانه دي، نو ما مه رسوا کوئ یعني په نورو ځایو کي چي خلګ به وایي چي د لوط د مېلمنو سره دده قوم لواطت وکړی.

**وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَلَا تُخۡزُوۡنِ ﴿۶۹﴾**

او له خدایه وېرېږئ په کولو کي د لواطت، او ما مه ذلیل کوئ او مه مې خجالت کوئ په مخ کي د مېلمنو.

**قَالُوۡۤا اَوَلَمۡ نَنۡهَكَ عَنِ الۡعٰلَمِيۡنَ ﴿۷۰﴾**

قوم ورته وویل چي آیا موږ ته نه وې نهي کړی د عالم له خلګو څخه یعني چي ته به پناه نه ورکوې او موږ او خلګ په سره پرېږدې چي موږ لواطت ورسره

کوو. او لوط علیه السلام په قدر د طاقت دوی منع کول له دغه فعل څخه.

**فائده:** استفهام لپاره د انکار داخل دی پر حرف نهي په قرار د قانون مشهور نفي د نفي اثبات دی یعني منع کړی مو وې د خلګو له پناه ورکولو څخه یا له مهمان نوازی څخه.

**فائده:** وروسته تر همزه د استفهام واو عاطفه پر محذوف عطف دی والتقدیر "اتترک هؤلاء ولم نیهک آه.

**درویش وایي:** چي دا قانون نحوي ما په دې تفسیر کي څو ځایه ذکر کړی دی لپاره د آسانی پر طالبانو چي طلب ته یې په دې تفسیر کي د ورقو اړولو ته ضرورت نسي پاته.

قَالَ هٰٓؤُلَآءِ بَنٰتِیٓ اِنۡ کُنۡتُمۡ فٰعِلِیۡنَ ۝

لوط (علیه السلام) ورته وویل چي دا زمانو لوڼې دي. یعني په نکاح به یې درکړم یعني که تاسي قضأ د شهوت پر کوئ.

**پوښتنه:** د لوط علیه السلام خو دوې لوڼې وې ایتا او زعورا. او رغلي خلګ خو ډیر وه؟

**ځواب:** ددې قوم دوه مشران وه چي هغو د لوط علیه السلام لوڼې په نکاح غښتي غوښتلې لوط علیه السلام په سبب د خباثت ددوی او د عدم کفائت نه ورکولې له دې سببه نه چي په نکاح نه ورکول د مسلماني ښځي و کافر ته په شریعت کي د لوط علیه السلام نا روا وه بلکي روا وه. لکن اوس لوط علیه السلام لپاره د ساتنې د میلمنو په نکاح د لوڼو راضي سو.

**فائده:** له دې څخه دا معلومه سوه چي اکرام د میلمنو او مراعات د مسافرانو له اخلاق څخه د انبیاؤ او اولیاؤ دی او دا سبب د ذکر جمیل هم دی.

حافظ شیرازي رحمه الله وایي:

تیمار غریبان سبب ذکر جمیلست ... جانا مگر این قاعده درشهر شمانیست

سعدي رحمه الله وایي:

غریب آشنا باش وسیاح دوست ....... که سیاح جلاب نام نکوست

وفي الحدیث من اقام الصلوة وآتی الزکوة وصام رمضان وقری الضیف

(مبلمه پالنه) دخل الجنة الحديث" په دليل ددې چې لوط علیه السلام چې لارد خلاصون د مسافرو مېلمنو هيڅ ونه ليد له خپلي لونړې يې دې خبيثانو ته پر طريقه د نكاح پېش كړې كه يې څه هم كفوه نه وه، او هغه خبره چې خازن رح دلته كړې ده چې لوط علیه السلام چې نكاح د لونو ودوی ته پېش كړه بشرط الاسلام بې ځايه خبره ده، ولي چې د لوط علیه السلام په شريعت كي د مؤمنه ښځي نكاح و كافر ته روا وه وهكذا نكاح الكافرة مع المؤمن، نو له دې څخه دا معلومه سوه چې پر هر مؤمن متقي لازمه ده چې دروازه د شر او فساد په هر ممكن صورت چې وي بندوي دې.

**فائده:** له دې آيت څخه دا معلومه سوه چې محل د تمتع او قضاً الشهوة ښځي دي نه نر، لهذا علماً وايي چې محبت د ښائسته هلك اشد ضراراً دی تر محبت د پېغلي نجلۍ سره، ولي چې نجلۍ ته رسېده په شرع كي ممكن دی يعني بالنكاح بخلاف الامرد فانه لايجوز الاستمتاع به ابداً. سعدي رح ميگويد:

خرابت كند شاهد خانه كن .......... برو خانه آباد گردان بزن
چرا طفل يک روزه هوشش نبرد .......... كه درصنع ديدن چه بالغ چه خورد

يعني د يوې ورځي زوكړي هلك باندي تا ولي زړه نه بايلو او عاشق نه سوې كه ستا عشق پر صنع د خدای عزوجل چې دا هلك ته يې ښومره ښائست وركړی دی نو په هغه كي لوی او كوچنی څه فرق لري؟ نو دا معلومه سوه چې د لوی هلك په محبت كي ستا د لواطت عشق دی.

**درويش وايي:** چې دا ؤيو تفسير د آيت مبارك. او بعض مفسرين وايي چې په قرآن كي مضاف محذوف دی ای بنات قومي چې مراد له قوم څخه اتباع د لوط علیه السلام دي يعني زه به هغه په نكاح دروغوارم.

**پوښتنه:** لوط علیه السلام ولي بنات د قوم خپل بنات وبللې؟

**ځواب:** لان كل نبي پلار د امت دی من حيث الشفقة والتربية بدين الاسلام فرجال الامة بنوه ونسائهم بناته.

لَعَمْرُكَ إِنَّهُمْ لَفِي سَكْرَتِهِمْ يَعْمَهُونَ ﴿٧٢﴾

ستا په حيات مي دي قسم وي، يعني كفار د قوم لوط په خپل غواية او

گمراهي او په سخت غفلت کي دی چي عقول یې زائـل سوي او تمیز د صواب او خطا نسي کولای او دوی حیران دي نو څرنګه به نصیحت واوري.

**سوال**: حیات ته عمر بضم العین وایي والواقع ههنا عمر بفتح العین؟

**ځواب**: هو! لکن چونکه قسم په عمر سره کثیر الدوران دی په عربي ژبه کي نـو هغـه مقتضـی د تخفیف دی نو ددې کبله په قرآن کي بفتح العین راغلی والمخاطب هو رسول الله ﷺ. بغوي له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت کړی دی په واسطه د ابی الجوزا دی وایي ما خلق الله نفساً اکرم علیه من محمد ﷺ او خدای پاک د هیڅ چا په حیوة قسم نه دی اخستی بېله محمد ﷺ.

**یوه سه**: چي عمه ړوند والی د بصیرت قلبي ده لکه عمي چي ړوند والی د سترګو ته وایي.

**یوه سه**: چي مظهري رح په یوه روایت نا تائید شده د ابن عباس رضي الله عنهما وایي چي ضمیر د "انهم" راجع و کفارو ته د قریشو دی. او ابن عطیه او نور مفسرین رح دا ډېره بعیده خبره بولي. ولي چي د سیاق او سباق دواړو سره منافي ده بلکې صحیح داده چي ضمائر ټوله و اهل ته د بلد لوط علیه السلام راجع دی او "یعمهون" یې په صیغه د مضارع راوړی لپاره د حکایت د حالت ماضیه. او بعض مفسران وایي چي لعمرک قسم دی د ملکو له خوا څخه او مخاطب په عمرک لوط علیه السلام دی لکن روح المعاني وایي چي دا تفسیر که څه هم د سوق سره د قصې برابر دی لکن مخالف دی د قول ماثور او مقبول سره د ابن عباس رضي الله عنهما چي بغوي رح یې روایت کړی دی وهو مامر آنفاً ما خلق الله نفساً الحدیث. او بل دا خبره ده چي قول ددې مفسر محتاج و تقدیر ته یعني قالت الملائکة للوط لعمرک. والتقدیر خلاف الاصل وقال صاحب الفرائد انه تقدیر بلا ضرورة ومثله لایجوز او صاحب الفرائد دا خبره ډېره ورده کړې ده.

فَأَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ مُشْرِقِينَ ﴿٧٣﴾

نو ونیول قوم لوط یو خوف ناکه آواز د اسمان له خوا څخه. او بعض وایي چي صیحة د جبرئیل وه ولا منافات بینهما په داسي حال کي چي دوی داخلېدل

په لمر ختو کي، بغوي رح وايي چي ابتدا د عذاب له سپېدو څخه شروع سوه او ختم یې پر راختلو د لمر وسوه فلا منافات بين هذه الآية چي مشرقين ېکښې راغلي دي وبين قوله تعالى في موضع آخر من القرآن في قوم لوط ان موعدهم الصبح الآية" وفي موضع آخر ان دابر هؤلاء مقطوع مصبحين.

﴿فَجَعَلْنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ حِجَارَةً مِّن سِجِّيلٍ ۝٧٤﴾

نو موږ وګرځول يعني جبرئيل په امر زموږ لوړ طرف ته د قرى لوط يعني خلګ پر اوسېدله کښته چي جبرئيل قرى لوط پورته کړى د اسمان پر خوا بيا يې چپه را واړولې. نو موږ اوروليې يعني د اسمان له خوا څخه ډبري (سجيل معرب دى له سنګ ګل څخه د ختيو په اور پخې دانې)

**پوښتنه**: مځکه چي پر دوى چپه سوه، نو بيا د ډبرو باران څه عذاب دى د اهل القرى لپاره، ولي چي دوى خو په چپه کولو کي د مځکې مړه او ختم سوه؟

**ځواب**: په روح المعاني کي وايي چي د ډبرو باران دمخه تر تمام د انقلاب ؤ وهم احياء في الوقت المذكور فيكون الرمي بالحجارة عذابًا لهم. وعبارته هكذا في تضاعيف الانقلاب قبل تمام الانقلاب. وفي روح المعاني ايضًا في تضاعيف الانقلاب يعني انقلاب پاى ته نه ؤ رسېدلى چي د ډبرو باران شروع سو.

**درويش وايي**: چي مزيد بيان ددې قصې په تفسير کي د سورة هود تېر سو.

﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّلْمُتَوَسِّمِينَ ۝٧٥﴾

په تحقيق دى په قصه کي د عذاب د قوم لوط هر آئينه دلائل دي د خداى جل جلاله د قدرت، ابن عباس رضي الله عنهما د "متوسمين" ترجمه په ناظرين سره کړې ده، او قتاده رح وايي للمعتبرين او مقاتل رح وايي للمتفكرين (دا ټولې ترجمې يو ويل ته راجع دي)

﴿وَإِنَّهَا لَبِسَبِيلٍ مُّقِيمٍ ۝٧٦﴾

او دا قرى لوط په لار کي د مسافرينو د شام ثابتي دي يعني آثار يې باقي دي. والمقيم مالم يندرس اثارها.

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّلْمُؤْمِنِينَ ﴿٧٧﴾

په تحقیق په دې بیان کې د قصه قوم لوط دلیل دی د قدرت عظیمه د خدای او د حقیقت د توحید لپاره د هغو کسانو چې ایمان پر خدای او رسول لري یعني چې دا یې عقیده وي چې دا بیان من عند الله دی بخلاف مشرکی مکة لانهم یرونه من المفتریات.

وَإِن كَانَ أَصْحَابُ الْأَيْكَةِ لَظَالِمِينَ ﴿٧٨﴾

**پوه سه:** چې کلمه د "ان" مخفف د مثقل ده او اسم یې ضمیر شان محذوف دی ای انه شان دادی او "لظالمین" یې خبر دی او لام فرق دی په منځ کې د ان نافیه او ان مخففه. والایکة الاشجار المتکاثفة چې په پښتو یې ځنګل بولي، یعني شان دادی چې اصحاب د ځنګله ظالمان وه یعني مشرکان چې پر خپلو ځانو یې ظلم کاوه او ځانونه یې و اور ته پېش کړل او دا کسان قوم د شعیب علیه السلام وه چې په دغو ځنګلو کې اوسېدله. او خدای پاک شعیب علیه السلام دوی ته په نبوت را استولی ؤ او دوی یې تکذیب وکړی.

فَانتَقَمْنَا مِنْهُمْ وَإِنَّهُمَا لَبِإِمَامٍ مُّبِينٍ ﴿٧٩﴾

نو کسات د کفر موږ واخستې له دوی څخه. یعني سدوم چې لوینه قریه د لوط علیه السلام د قوم وه والایکة چې مسکن د قوم شعیب ؤ په لار کې، ښکاره دی حکمت په دې قصو کې دادی چې چې کفار مکه چې خرابۍ د مذکوره قومو کافرانو هم په خپلو کې وینې او عبرت نه ځنې اخلي چې ایمان راوړي بلکې پر هغه شرک د پلرو داده دي. . . . بیت:

پند گیر از مصائب دیگران ....... تا نه گیرند دیگران ز تو پند

**درویش وايي:** چې قصه د عذاب ددوی دا وه چې خدای جل جلاله سخته گرمي پر دوی مسلطه کړه حتی چې دوی له کورو څخه د گرمۍ له لاسه نسوای راوتلای وروسته خدای پاک ښه ګڼه وریځ سره د خنک باد پیدا کړه دوی تولـه نر وښځي ډگر ته د وریځې را ووتله او خوشالي یې کولې او دا یې ویله هذا عارض فمطرنا

دا وريخ ده چي پر موږ به باران وه اوروي، خدای ﷻ له وريځي څخه پر دوی وربشت د اور شروع کړې فاحرقتهم عن آخرهم او دې ته عذاب د يوم الظلة وايي.

**فائده**: شعيب علیه السلام و اصحاب الايکة او د مدين ښار گوتي دوارو ته نبي مبعوث و.

**سوال**: مدين يې ولې نه کړې ذکر؟

**خواب**: مظهري رح وايي چي ذکر د يوه منبه پر هغه بل دی والاوضح ماقال بعضهم ان الايکة کانت عند مدين فکانهما واحد.

**فائده**: امام په اصل کي ما يؤتم به ته وايي کريمه "اني جاعلک للناس اماماً" ای يؤتم ويقتدی بک. او کتاب ته هم امام وايي ولي هرڅه چي په يو کتاب کي وي په هغه پسي اقتدا کړل کېږي، کريمه "يوم ندعوا کل اناس بکتابهم" يعني کتاب الاعمال، او لوح محفوظ ته هم امام وايي کريمه "وکل شيئ احصيناه في امام مبين" يعني اللوح المحفوظ، او لاري ته هم امام وايي کما في هذه الآية لان المسافر يؤتم به، او امام الصلوة ته په دې امام وايي چي مقتديان دده په افعالو پسي اقتدا کوي، اوزيج چي يو تار دی چي د بنايانو سره ورسره وي چي په پښتو يې رجه بولي هم امام وايي او په عربي يې مطمر بولي.

## وَلَقَدْ كَذَّبَ أَصْحٰبُ الْحِجْرِ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿٨٠﴾

**پوهه**: چي لام موطئه د قسم محذوف دی يعني والله په تحقيق تکذيب وکړی خلګو او ساکنانو د حجر (چي د يوې شېلې نوم دی. په منځ کي د مدينې منورې او د شام چي دا قوم په نامه د ثمود يادېدل) د رسلانو.

**فائده**: و دوی ته څو رسول صالح علیه السلام را استول سوی ؤ او په قرآن کريم کي يې صيغه د جمع راوړه لان تکذيب رسول واحد تکذيب جميعهم، ولې چي انبياء علی نبينا وعليهم السلام په اصولو کي د دين لکه توحيد د خدای عزوجل او ايمان پر ټولو صفاتو جماليه او جلاليه د خدای پاک او بعث بعد الموت وغيرها چي د امنت بالله وملائکته آه مضمون دی سره يو دی البته په بعض فروعو کي يې فرق وي.

وَاٰتَيْنٰهُمْ اٰيٰتِنَا فَكَانُوْا عَنْهَا مُعْرِضِيْنَ ﴿۸۱﴾

او ورکړې ؤ موږ دوی ته یعني اصحاب الحجر ته آیات د کتاب منزل علی نبیهم صالح عليه السلام، او یا مراد له آیاتو معجزات د صالح عليه السلام دي لکه ناقه او ددې ولد کما سیاتي في القرآن العزیز عنقریب ان شا الله تعالی، نو دوی سوه له هغو آیاتو څخه مخ ګرځونکي ایمان یې رانوړی.

وَكَانُوْا يَنْحِتُوْنَ مِنَ الْجِبَالِ بُيُوْتًا اٰمِنِيْنَ ﴿۸۲﴾

او دوی وه چې تراشلې یې او جوړول یې په غرو کې کورونه چې په هغو کورو کې یې بېغمه ژوند تېراوه:

**پوه سه:** چې له دې څخه یا مراد دادی چې دوی ددغه کورو له نړېدلو څخه او یا د غلو له سوري کولو او یا د دښمنانو له تخریب څخه بېغمه وه لاستحکامها غایة الاستحکام، او یا مراد دادی چې دوی له عذاب څخه د خدای جل جلاله بېغمه وه، ولې چې ددوی دا زعم فاسد ؤ چې ددې غرو کورونه به موږ له عذابه د خدای جل جلاله وساتي.

فَاَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ مُصْبِحِيْنَ ﴿۸۳﴾

نو دوی ونیول یعني هلاک کړل چغې او نارې د جبرئیل عليه السلام چې په یوه ناره سره دوی ټول له هلاک سوه، او بعض مفسرین وايي چې د آسمان له خوا داسې یوا اواز پیدا سو چې په هغه کې دهرې تکې او د ټولو حیواناتو د مځکې اواز پکښې ؤ، او په سورت اعراف کې وايي "فاخذتهم الرجفة" یعني الزلزلة ولا منافات لان الزلزلة حدثت من الصیحة فافهم.

تاریخ خبري کوي وايي چې صالح عليه السلام وروسته تر هلاک سره د مسلمانانو شام ته ولاړل او په رمله فلسطین کې مقیم سوه، بیا څو زمانه وروسته مکې مکرمې ته ولاړی او هورې وفات سو عمر یې (۵۸) کاله ؤ.

**حکایت:** ذو النون المصري قدس سره وايي بزبان فارسي روزی دراثنا سفر بدر شهر رسیدم خواستم که درانـدرون شهر روم بر درآن شهر کوشکی دیدم

وجوی روان بنزدیک جوی رفتم طهارت کردم چون چشم من بربام کوشک افتاد زنی دیدم استاده درغایت حسن وجمال چون نظر او بمن افتاد گفت ای ذوالنون چون ترا از دور دیدم پنداشتم که مجنونی (ای چابک چابک یوه او بله خواته مائل روان لکه لیونی) وچون طهارت کردی تصور کردم که عالمی (یعني ستا اودس د شریعت د قانون سره برابر ؤ) وچون از طهارت فارغ شدی وپیش آمدی پنداشتم که عارفی (یعني هیئت او جمال دی د عارف ؤ) اکنون محقق شدم که نه مجنونی ونه عالمي ونه عارفي گفتم چرا؟ گفت اگر دیوانه بودی طهارت نمیکردی واگر عالم بودی نظر بخانه بیگانه نمیکردی و اگر عارفی بودی دل تو مائل بما سوی الله نمی شدی آه.

**درویش وایي**: چي علامه بغدادی رحمه الله وايي چي قوم د صالح علیه السلام په وخت کي د ثابت هلاک سوه او په دې آيت "مصبحين" راغلی؟

**ځواب**: علامه روم شيخ محمد اسماعيل البرسوي رح ددې سوال و جواب ته په دې الفاظو اشاره کړې ده والصبح يطلق على الزمان الممتد الى الضحوة في العرف آه.

**درویش وایي**: چي مفصله قصه د صالح علیه السلام او د اوښې او د جونګي په سورت هود کي سره د تفسيره تېره سوې ده يعني په قرآني آيتو کي لکن چونکه د صالح علیه السلام اوښ په مشرئ د قدار بن سالف قوم صالح ووژل او جونګی یې ولاړی د هغې دبرې سره چي دده مور ځني راوتلې وه درې نارې يې وکړې او په دبره ننوتلې، نو صالح علیه السلام قوم ته وويل چي ستاسي درې ورځي ژوند پاته دی، اولنه ورځ به مو مخان ژړ سي او په دوهمه ورځ به مو موخان سره سي او په دريمه ورځ به مو مخان تور سي څلورمه ورځ چي د يکشنبې ورځ ده بالاستيصال به هلاک سئ وکان كذالك بقدرة الله الملك المعبود، دا وو اجمال د قصې د صالح علیه السلام.

فَمَآ أَغْنَىٰ عَنْهُم مَّا كَانُوا۟ يَكْسِبُونَ ﴿٨٤﴾

نو فائده ونه کړه دوی ته يعني په دفع کي د عذاب د خدای جل جلاله هغه چي دوی يې کسب کړی ؤ يعني په غرو کي يې خونې جوړي کړي وې د خپل اولاد سره او داغه رنګه ډېر اموال يې جمع کول.

**فائده:** په حدیث شریف کي راغلي دي چي علیه الصلوة والسلام چي د تبوک غزا ته روان ؤ سره د اصحاب کرامو ﷺ پر وطن د حجر چي ورغلی، نو اصحابو ﷺ ته یې وویل چي مه ورځئ کنډوالو ته د هغو کسانو چي پر خپلو ځانو یې ظلم کړی ؤ یعني بالکفر وانکار الرسول مگر نه په داسي حالت کي تاسي به ژاړی، له بېري ددې چي تاسي ته ورته عذاب ونه رسېږي، بیا علیه الصلوة والسلام پټو پر سر واچاوه او دابه چي دی پر سپور ؤ چابک یې کړی او د حجر تر شېلې تېر سو.

وَمَا خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَآ اِلَّا بِالْحَقِّ

او نه دي پیدا کړي موږ اسمانونه او مځکه او چي په منځ کي د اسمانو او مځکي دي من السحاب والصواعق وغیرهما مگر نه متلبس په حق سره یعني لیکون دلیلاً علی وجود الصانع وتوحیده وقدرته وغیر ذالک من صفاته الجمیلة والجلیلة تاچي د شرک جهالت د خلگو له دماغو ځخه وباسي.

وَاِنَّ السَّاعَةَ لَاٰتِيَةٌ فَاصْفَحِ الصَّفْحَ الْجَمِيْلَ ﴿۸۵﴾

او په تحقیق قیامت راتلونکی دی یعني خدای ﷻ به انتقام واخلي د هغو کسانو چي خدای ﷻ ته یې شریکان ویله او تکذیب د رسولانو یې کاوه، نو ته اې محمد ﷺ روی گرداني او اعراض وکړه له دوی ځخه په ښه صفح سره یعني تلوار د انتقام له دوی ځخه مه کوه.

اِنَّ رَبَّكَ هُوَ الْخَلّٰقُ الْعَلِيْمُ ﴿۸۶﴾

په تحقیق ستا رب ډېر پیدا کونکی دی د دوستانو لکه ته یا رسول الله ﷺ واتباعک من المؤمنین او ستاسي دښمنان من انواع الکفرة بیده الامر والیه مرجع الامر، او ښه خبر دی په حال د هر چا فیجازي کل واحد منهم علی حسب عمله من الخیر والشر، او یا مراد دادی چي چونکه خدای ﷻ ستا او ستا د دښمنانو په حال ښه خبر دی، نو باید داده چي ته توکل علی الله وکړي.

**درويش وايي**: چي په دې آيت کي دليل دی ددې چي سړی يعني مؤمن بايد گذاره او چار چلند وکړي د خلګو سره که مؤمن او که کافر وي په ښه اخلاقو. علم، جود او کرم سره، وفي الحديث الشريف وفي السيرة النبوية كان رسول الله ﷺ احسن الناس خلقاً کريمه "وانک لعلى خلق عظيم، وارجح الناس علماً واعظم الناس عفواً و اسخى الناس يداً. کريمه "خذ العفو وامر بالعرف واعرض عن الجاهلين. وقال العرب الحلم ملح الاخلاق.

تاريخ اسلامي وايي: چي جعفر بن سليمان العباسي د مدينې والي امام مالك رحمه الله سخت وواهه حتى چي له مجلس څخه يې بېهوشه يووړی. نو کوم ته چي په هوش کي راغلی داسي يې وويل چي زه بېرېږم چي له وهلو څخه د والي به مړ سم او ماته حياً راځي له عليه الصلوة والسلام څخه چي صبا په ورځ د قيامت يو سړی دده له آل څخه يعني اقرباؤ څخه چي عباسي والي وزما د وهلو په سبب اورته ورځي، نو ښکه ده عفوه کړې ده.

**درويش وايي**: چي وهذا هو الادب العظيم مع رسوله الكريم ﷺ. بيت:

از خدا خواهم توفيق ادب .......... بې ادب محروم ماند از فضل رب

درويش ميگويد که درتفسير آورده که هفت کاروان قريش دريکروز بمکه درآمدند بامطاعم بسيار وملابس بيشمار درخاطر مبارک حضرت فکر آمد که کاش اين کاروانها براى ما و مسلمانان که درحالت گشنگی زندگی بسر ميبرم پس اين آيت از حضرت رب العزت جبرئيل آورد.

وَلَقَدْ اٰتَيْنٰكَ سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِيْ وَالْقُرْاٰنَ الْعَظِيْمَ ﴿۸۷﴾

يعني که څه هم قريش هفت کاروان بمکه يکجا آورده اند لکن ترا ازان هفت کاروان بهتر چيز داده ايم که سورة فاتحه مبارکه که هفت آيت است.

درويش ميگويد: که اين شان نزول مناسبت ما بعد آيت است که حضور مبارک درآن مخاطب نموده "ولاتمدن الآية" او هغه څه چي واحدي په شان نزول کي ددې آيت راوړي دي چي اووه قافلې وې د بني قريضه و بني النضير من يهود المدينة: بصرې او اذرعات په يوه ورځ مکې مکرمې ته واردې سوې چي په کاروان کي ډېر

خوراكي مواد وه او ملبوسات وغيره هم وه نو مسلمانانو چي په مكه مكرمه كي د فاقې شپې او ورځې تېرولې، دوی وويل چي كاشكي دا قافلې زموږ وای، نو به موږ پر خپلو ځانو نفقه كړي وای او نور زائد به مو في سبيل الله خيرات كړي وای، فانزل الله تعالى هذه الآية. پر هغه شان نزول دا سوال وارد يږي چي مخاطب يې وروسته يوازي عليه الصلوة والسلام ولي ګرځاوه ولاتمدن الآية"

والجواب عنه چي په ډېرو آيتو كي قرآن كريم مخاطب يوازي عليه الصلوة والسلام وي لكن مراد ځني امت دی كما لايخفى على من تفحص القرآن الكريم

تفسير الآية: والله په تحقيق موږ دركړی دی تاته يو سورت چي اووه آيته دی.

**پوه سه:** چي مراد په نېز د جمهورو مفسرينو په دې آيت كي سورت فاتحه ده.

**فائده:** سورت مذكوره يو سل او درويشت (۱۲۳) حرف دي او (۲۵) كلمې دي او اووه (۷) ايت دي بالاتفاق لكن احناف بسم الله الرحمن الرحيم جزأ د سورت نه بولي او انعمت عليهم پوره آيت بولي، او شافعيان بسم الله جزأ د سورت بولي او انعمت عليهم آيت نه بولي بلكې تر پايه پوري يو آيت بولي كذا قال البيضاوي وروح البيان.

**پوه سه:** چي مثاني بيان د سبع دی په نېز د روح المعاني، دی وايي په حواله د كشاف چي مثاني جمع د مثنى ده په معنى د مكرر، نو وجه تسميه د مثاني داده چي دا سورت مبارك په هر لمانځه كي مكرر ويل كېږي وهذا الوجه روى عن الحسن و ابی عبد الله او بيضاوي رحمه الله چي دا سورت دوه واره نازل سوی دی مرةً بمكة ومرةً بمدينة حين تحول القبلة. لكن روح المعاني دا وجه رد كړې ده ولي دا سورت خو اتفاقًا مكي دی او سبع مثاني يې نوم ؤ دمخه تر نزول ثاني بعد الهجرة، او له ابن عباس رضي الله عنه او مجاهد رحمه الله څخه روايت دی چي مثاني يې په دې سبب بولي چي دا سورت خدای جل جلاله استثنا كړی ؤ يعني ذخيره كړی يې ؤ ددې امت لپاره بل امت ته يې نه دی وركړی.

**پوه سه:** چي روح البيان له مثاني څخه قرآن مجيد مراد كړی دی او كلمه د "من" يې لپاره د تبعيض بللې ده يعني سورت فاتحه جزأ د قرآن دی او دا آيت

يې پر هغه آيت چي په سورت زمر کي راغلي دي حمل کړی دی يعني "الله نزل احسن الحديث کتاباً متشابهاً مثاني الآية" او د قرآن وجه د تسميه په مثاني سره يې دا ويلي ده مثاني جمع مثنى لان القرآن ثنى اى كرر فيه الوعد والعيد والامر والنهي والثواب والعقاب والقصص كما في الكواشي.

**پوه سه**: چي روح البيان وايي چي "والقرآن العظيم" عطف دی پر "سبعاً" او عطف د کل پر جزأ دی، د حسين کاشفي رح عبارت هم پر دې دلالت کوي چي "والقرآن العظيم" عطف دی پر "سبعاً" دی وايي (وديگر داديم ترا قرآن که نزد ماقدر او بزرگ است و ثواب او بسيار انتهى.

**درويش وايي**: چي بخاري رح له ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت کړی دی قال قال رسول الله ﷺ ام القرآن هي السبع المثاني والقرآن العظيم انتهى. له دې حديث څخه دا فهمېږي چي قرآن عظيم عين سبع مثاني ده والفرق بالاعتبار، نو نوم د سبع مثاني په سبب د اوو آيتو او د تکرار په لمانځه کي کمامر، او نوم د قرآن عظيم په اعتبار د قرائت او عظمت دی.

**فائده**: که څه هم مفسرين وايي چي د قرآن لفظ په منځ کي د کل او د جزء سره برابر دی، نو اطلاق پر سورت فاتحه روا دی بل على كل سورة منه، لکن بعض مفسرين وايي چي صرف په مامر آنفاً چي قرآن لفظ مشترک دی سورت فاتحه يې قرآن عزيز په دې آيت کي نه ده بللې، بلکي ددې سببه ټوله معاني د قرآن عظيم په سورت فاتحه کي مجملاً درج دي، بيان د اندراج واورئ لان القرآن العظيم يشتمل على الثنأ على الله تعالى بصفاته الجلالية والجمالية وقد اشير اليه بقوله الحمد لله وعلى الشكر على نعمائه الدنيوية والاخروية وقد اشير اليه بقوله رب العالمين اذ التربيته من اعظم النعم الالهية وعلى الامر بعبادته وحده لاشريک له وقد اشير اليه بقوله اياک نعبد بتقديم المفعول الدال على الحصر كما في كتب النحو والمعاني، وعلى التوكل على الله في كل حال بلاشركة وقد اشير اليه بقوله واياک نستعين بتکرار اياک، وعلى سوال الهداية والرشد والوصول الى المقصد الاقصى اى الرضى الالهي، وقد اشير اليه بقوله

تعالی "اهدنا الصراط المستقیم" وعلی ان ادیان الانبیاء علیهم السلام من لدن آدم علیه السلام الی دین نبینا ﷺ متحدة وقد اشیر الیه بقوله تعالی "صراط الذین انعمت علیهم" وعلی التجاء من الله ان یحفظنا من الغضب والضلال وعلی تعدد تلک الفرق وقد اشیر الیه بقوله "غیر المغضوب علیهم ولا الضالین"

**پوښتنه**: تا دا اندراج ټوله په عربي بیان کړی آیا پښتانه به په وپوهېږي کما هو مرام التفسیر الایوبي او که څرنګه؟

**ځواب**: ښخي امي بحث که په دې اندراج نه وپوهېږي لکن ادنی فکر والا به ان شاء الله ښه پوره په وپوهېږي ولله الحمد.

**درویش وایي**: چي د سورت فتحة الکتاب مزید تفصیل او بیان او خواص په تفسیر ایوبي کي ددې سورت په تفسیر کي مطالعه کړه.

لَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ إِلَىٰ مَا مَتَّعْنَا بِهِ أَزْوَاجًا مِّنْهُمْ

او مه پورته کوه یا محمد (علیه السلام) سترګي د طمع او د خوښۍ و هغه شي ته چي ورکړی دی موږ هغه شی یعني له منافع او شهواتو څخه د دنیا و اقسامو ته د کفار ومن المشرکین والیهود والنصاری، ولي نعمتونه د کافرانو حقیر او لږ او رذیل دي نسبت ستا و نعمت ته من السبع المثاني والقرآن العظیم، اسحقا بن راهویه په خپل مسند کي د عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنه څخه روایت کړی دی ده وویل چي چاته خدای ﷻ قرآن ورکړی دی یعني یا حافظ د قرآن او یا عالم د قرآن، نو دده په زړه کي که فکر پیدا سو چي یو چاته به په دنیا کي افضل زما د نعمت ورکړی وي خدای ﷻ، نو ده لوی نعمت حقیر کړی یعني قرآن چي ده ته ورکړل سوی ؤ او لوی یې وګاڼه حقیر شی چي نورو ته خدای ورکړی ؤ.

**پوه سه**: چي محي السنة بغوي رحمه الله روایت کړی دی چي سفیان بن عیینه رحمه الله تأویل د هغه حدیث د رسول الله ﷺ لیس منا من لم یتغن بالقرآن" داسي کړی دی ای لم یستغن به.

**درویش وایي**: چي ددې حدیث روایت بخاري، احمد، ابو داؤد، ابن حبان او حاکم رحمهم الله کړی دی لکن د اوسنی زماني مدرسان ملایان چي خدای ﷻ علم د

قرآن ورکړی ؤ او نور حافظان د قرآن کریم د روژې په میاشت کې د اغنیاؤ او بې عزته پیدا لانو پر کورو ګرځي د زکوة په طمع که څه هم په واقع کې دی په خپله غني وي افسوس د داسي ملا یانو او حافظانو پر حال.

**نادره:** که یو عالم حافظ د یو غني د مسجد ملا امام وي، نو فقط دا عالم لکه ګل آفتاب ګردان چي همیشه د لمر پر طرف یې سرکوږ وي، ددې عالم حافظ هم تر هر شي رضٰی ددغه مقتدي خوښه وي حتی دروېش ته په تجربه دا ثابته ده چي په یوه محله کي یو حافظ عالم د یو پیدا ال په مسجد کي ملا امام ؤ او په دغه محله کي دده استاذ هم ؤ چي کلان سال مدرس ؤ او صاحب د تصانیفو معتبره هم ؤ او خپل په روپو یې یو ښه زیبا جامع مسجد جوړ کړی ؤ، لکن ددې مدرس عالم او دده شاګرد د پیدا ال مقتدي تر منځ خوابد تیا وه معمولي. نو هغه دده د مسجد د ملا چي به یا استاذ له حجره راغلی یا د اخترو په مناسبت دا ستاذ ته نه ورتلی افسوس ددغه ملا پر حال ...... ع

چو کفر از کعبه برخیزد کجا ماند مسلمانیٰ

او بیهقي رح له ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي رسول الله ﷺ وویل "لاتغبطن (ته کست مه کوه او تمنی د حال ددغه جاهل جابر مه کوه) فاجراً بنعمة ان له عند الله قاتلاً لایموت" وهب بن منبه رح وایي چي ما چي پوښتنه د "قاتل لا یموت" وکړه چي دا څه شی دی؟ عبدالله بن مریم رح وویل النار. او احمد، مسلم، ترمذي، ابن ماجه او بغوي رحمهم الله له ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت کړی دی قال قال رسول الله ﷺ انظروا الی من هو اسفل منکم (یعني في الامور الدنیویة ونعیم الدنیا) ولا تنظروا الی من هو فوقکم فهو اجدر ان لا تزدروا نعمت الله علیکم (نو دغه چي تحت ته وګوري لوړ ته نه وګوري ښه تر لائق ده چي تاسي د خدای درکړی خوار نه معلومېږي مثلاً په اوسنی زمانه کي یو سړی دی چي هغه په خپل شخصي موټر کي ګرځي او راګرځي، او ته بیا موټر سائیکل لرې پر هغه سپور آمد او رفت کوې بل سړی بیا پر سائیکل یا پر پښو بازار ته تګ وراتګ کوي، نو ته باید موټر شخصي والا ته ونه ګورې چي خپل خدای درکړی موټر سائیکل خوار ورته معلوم نسي بلکي سائیکل یا پښو والا ته وګوره تاچي پر موټر سائیکل شکر ووایه.

**درويش وايي**: چي پر دې نور شيان قياس کړه يعني اعلى، اوسط او ادنى في الدور والملبوسات والمطعومات وغير ذالک.

وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ لِلْمُؤْمِنِينَ ﴿٨٨﴾

ته غم مه کوه پر کفارو چي ايمان ولي نه راوړي. يا پر دې غم مه کوه چي د دنيا په نعمتو کي ولي زه رنګه نه يم.

**پوه سه**: چي "واخفض آه" کنايه ده له دې څخه چي د مؤمنانو سره بنه په نرمي او رفق او رحم ژوند کوه. اصل يې دادی چي مرغه چي له هوا څخه کښته راځي خپل دواړه وزرونه کښته ايله کړي...... بيت:

تواضع کند هوشمندی گزين ......... نهد شاخ پرمېوه سر برزمين

وَقُلْ إِنِّي أَنَا النَّذِيرُ الْمُبِينُ ﴿٨٩﴾

او ووايه کافرانو ته چي زه ببرونکی يم ستاسي ښکاره يعني دلائل او معجزات د خدای ﷻ هم راسره دي، مقصد دادی چي عذاب د خدای ﷻ به پر تاسي نازل سي که تاسي ايمان نه راوړئ وکان کک کما في بدر وفتح مكة وغير ذالک.

كَمَا أَنْزَلْنَا عَلَى الْمُقْتَسِمِينَ ﴿٩٠﴾

لکه چي موږ نازل کړی دی عذاب پر مقتسمينو.

**پوه سه**: چي نزول د عذاب که څه هم دمخه نه دی ذکر سوی چي دا نزول ورسره مشابه کړي لکن عذاب د نذير چي وړاندي آنفاً ذکر سو مفعول مقدر دی لان معناه انا النذير المبين بالعذاب کما ذکرنا في تفسيره فصح التشبه. بغوي وايي چي مقتسمين يهود او نصاری دي.

الَّذِينَ جَعَلُوا الْقُرْآنَ عِضِينَ ﴿٩١﴾

هغه کسان چي قرآن يې ټوټه قطعه قطعه يعني پر بعض د قرآن يې ايمان راوړی دی کالقصص المذکورة في القرآن کقصة عاد و ثمود وقصة يوسف، او په بعض سره کفر کړی دی کبقية احكام القرآن، طبراني ؒ له ابن عباس ؓ څخه روايت کړی دی، ابن عباس ؓ ووېل چي يو سړي سوال وکړی له عليه

الصلوٰة والسلام څخه ددې آيت په باره کې يعني چې له مقتسمينو څخه څوک مراد دي، قال عليه السلام اليهود والنصارى. قال ما عضين؟ هغه سړي وويل چې د عضين معنا څه ده، قال عليه السلام آمنوا ببعض وكفروا ببعض كمامر عنقريب.

**فائده**: عضين جمع د عِذة ده لکه عِدة الفرقة والقطعة كذا في القاموس. نو يهودانو او نصارى وو بعض حصې د قرآن حق بللې چې دا مخالف د تورات او انجيل سره دي.

**پوه سه**: چې اصل د عضة عضوة ور علی وزن فعلة عرب وايي عضى الشاة اذا جعلها وقطعها عضواً عضواً كذا في روح المعاني والمظهري وروح البيان والقرطبي والبيضاوي، او بعض مفسرين وايي چې دوی استهزاءً ويله يوه به ويل چې سورت بقره زما دی بل به ويل چې سورت آل عمران زما دی وهكذا. او مجاهد رح وايي چې مراد يهود او نصارى دي چې دوی خپل کتابونه تورات او انجيل توټه کړي وه فآمنوا ببعض و كفروا ببعض، او بعض مفسرين وايي چې مراد له مقتسمينو څخه هغه کسان دي چې پر قرآن يې قسم قسم نومان اېښوول بعضو به ويل سحر دی بعضو به ويل شعر دی بعضو به ويل کهانت دی بعضو به ويل اساطير الاولين دی، او يا يې پر عليه الصلوٰة والسلام قسم قسم نومان اېښوول بعضو به ويل ساحر دی بعضو به ويل شاعر دی بعضو به ويل کاهن دی او په روح البيان کې وايي او مظهري په نقل د مقاتل رح وايي چې په مكه مكرمه کې شپاړس کسان د مشرکانو د مکې وه د وليد بن مغيره په مشرۍ چې ده به په وخت کې د حج استول او پر هغو لارو چې حاجيان به مکې ته داخلېدل څو څو کسان به يې کېښنولي وه، نو پر هره لار چې به حاجيان مکې ته دخلېدل دوی به ورته ويل لاتغتروا بهذا الخارج عن دينه الذي يدعى النبوة منا (تاسي خطا نه وځئ يعني په مکه کې ددغه سړي په قول چې د پلار او نيکه له دينه وتلی دی او دعوه د نبوت يې کړې ده په موږ کې. بعضو به حاجيانو ته ويل چې دا سړی ليونی دی بعضو به ويل کاهن دی بعضو به ويل شاعر دی وهكذا. او دې د لارې خلګو به حاجيانو ته ويل چې که زموږ خبره منئ د وليد بن مغيره چې د مکې

چي د مکې نامداره مشر دی او په حرم کي موجود دی پوښتنه وکړئ. نو ولید چي په حرم مکې کي به د حج په ورځو کي همېشه ناست ؤ چي حاجي به پوښتنه ځني وکړه يعني په باره کي د عليه الصلوة والسلام وليد به ورته وويل صدقوا.

**تفریع**: که چېري مراد له مقتسمينو ځخه يهودانو وي. نو عذاب نازل پر دوی قتل د بني قريضه ؤ او جلا وطن کول د بني نضير دي. او که مراد د وليد به مغيره ډله وي. نو عذاب نازل پر هغو قتل ددوی دی په ورځ د بدر.

**درويش وايي**: چي مظهري رح نور قولونه ډېر راوړي دي چي هيڅ مفسر اشاره نه ده ورته کړې والله اعلم بالصواب.

**درويش وايي**: چي روح المعاني دغه نومانه د مقتسمينو ذکر کړي دي (۱) وليد بن المغيرة (۲) حنظله بن ابی سفيان (۳) عتبة بن ربيعة (۴) شيبة بن ربيعة (۵) ابوجهل (٦) العاص بن هشام (۷) ابو قيس بن الوليد (۸) قيس بن الفاكة (۹) زهير بن امية (۱۰) هلال بن الاسود (۱۱) السائب بن صيفي (۱۲) النضر بن الحارث (۱۳) ابو البختري بن هشام (۱۴) زمعة بن الحجاج (۱۵) زمعة بن الخلف (۱٦) اوس بن المغيرة. ددوی تولو مشر وليد بن مغيره ؤ.

**فَوَرَبِّكَ لَنَسْـَٔلَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٩٢﴾ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿٩٣﴾**

قسم دی په خدای ستا يا محمد (ﷺ) هر آئينه به موږ سوال کوو له دوی تولو ځخه د هغه اعمالو چي دوی په دنيا کي کړي وه (کلمه د ما موصوله ده عائد يې محذوف دی ای يعملونه) مراد له اعمالو ځخه کفر او معاصي او نسبت د سحر او کذب و قرآن ته کول الی غير ذالک يعني فنجازيهم عليها.

**درويش وايي**: چي بغوي، خازن. مظهري، روح المعاني. قرطبي، بحر العلوم وغيرهم رحمهم الله وايي چي ځرنګه به جمع او توفيق ددې آيت چي پکښې اثبات د سوال دی د تولو خلګو ځخه د اعمالو د دنيا او د هغه آيت "فيومئذٍ لايسال عن ذنبه انس ولاجان؟

**ځواب**: ابن عباس رضي الله عنهما وايي لا يسئلهم هل عملتم لانه تعالى اعلم به منهم ولكن يقول لم عملتم، يعني داسي پوښتنه نه ځني کوي چي تاسي دا کارونه

کړي دي که نه، ولي چي خدای پاک بنه خبر دی په عملو ددوی تر دوی بلکې دا پوښتنه او سوال ځني کوي چي ولي مو کوله، پر دې ځواب قطربؒ اعتماد کړی دی او زیاته کړې يې ده چي سوال دوه قسمه دی یو سوال استعلام دی یعني د ځان د خبرولو لپاره او بل سوال د توبیخ او سرزنش دی، نو هغه آیت فیومئذ لا یسأل آه. محمول دی پر سوال د استعلام لپاره وهو محال علی الله تعالی کما مر او دا آیت "ولنسئلنهم آه" محمول دی پر سوال د توبیخ، او بل ځواب عکرمهؒ له ابن عباس ﷺ څخه نقل کړی دی چي بغوي او خازن او نامورو مفسرینو رحمهم الله هم راوړی دی چي جمع ددغو دوو آیتو يې په دې ډول کړې ده چي ورځ د قیامت ډېره طویله ورځ ده، او په دې ورځ کې ډېر مواقف سته په بعضې مواقفو کي سوال ځني کېږي او په بعضې مواقفو کي سوال نه ځني کېږي لکه په دې دوو آیتو کي هم ورته توفیق مفسرینو کړی دی یعني قوله تعالی "هذا یوم لا ینطقون (ای الکفار) وقوله تعالی ثم انکم یوم القیامة عند ربکم تختصمون" یعني دا دوه آیته هم پر اختلاف د مواقفو د اخرت محمول دي.

**درویش وایي**: چي بغوي په خپل سند له امام بخاريؒ څخه روایت کړی دی قال عدة اهل العلم یعني عن قول لا اله الا الله. روح البیان وایي چي ډېر اهل العلم پر دغه قول دي چي مراد کلمه توحید ده چي کلمه د نجات يې هم بولي. او کلمة الله العلیا هم ده او په صحیح حدیث کي راغلي دي چي که دا کملة التوحید په ورځ د قیامت په یوه پله کي د ترازو کېښېښول سي او اووه اسمانونه او ځمکي په بله پله کي د ترازو وضع سي کلمة التوحید به پر درنه وي، نو ځکه علماً وايي چي په میزان د قیامت کلمة التوحید نه تلل کېږي الا لمن ارد الله مغفرته کما مروي في بعض الاخبار علامه مغربي وایي:

اگرچه آئینه داری از برای رخت .. ولی چه سود کند که داری همېشه آئینه تار
بیا بصیقل توحید زآئینه بردار ... غبار شریک که تا پاک گردد از زنگار

**درویش وایي**: چي معتمد قول هم همدغه قول دی، ولي چي مثلاً د اوویا کالو مشرک چي دا کلمه توحید لساناً وقلباً وواېي او مثلاً یوه یا دوې ورځي ژوندی دي

بيا وفات سي دا شخص له اهل الجنة څخه دی مع انه لم يعمل كثير من عمل الخير.

**درویش وايي:** چي روح المعاني وايي اخرج ابن جرير وغيره عن ابى العالية انه قال يعني في تفسير هذه الآية انه يسال العباد كلهم (يعني مسلمانان او كافران) يوم القيامة عن خلتين (يعني له دوو خويونو څخه) عما كانوا يعبدون وعما اجابوا المرسلين" يعني د چا عبادت مو كاوه او رسولانو ته مو څه ځواب وركړی ؤ. وايضًا في روح المعاني اخرج الترمذي وجماعة عن انس ﷺ عن النبي ﷺ قال يسئلون عن قول لا اله الا الله" او دا حديث بخاري په خپل تاريخ كي راوړی دی او ترمذي په بل سند له انس ﷺ څخه موقوف راوړی دی وروی هذا ايضًا عن ابن عمر ﷺ و مجاهد ﷺ.

**پوه سه:** چي تفسير بحر العلوم د سوال د لا اله الا الله معنى داسي كړې ده يسئلون عن الوفا بلا اله الا الله والتصديق لمقالها بالاعمال (يعني تصديق د ويلو ددې كلمه طيبه په عملو سره چي امتثال د اوامرو د خدای دي او انتها له منهياتو څخه.

**درویش وايي:** چي پر دې تقدير سوال ته د ټولو اعمالو دا آيت شامل سو يعني "ولنسئلنهم الآية".

**فائده:** په وصف كي ربوبيت مضافًا الى الضمير الراجع الى النبي ﷺ اظهار د لطف دی په ده مبارك سره، او اعلام د خلگو دی په مرتبه عاليه سره دد مبارك عند الله ﷻ كما لايخفى.

**درویش وايي:** چي مظهري په تفصيل سره هغه حديثونه راوړي دي چي په هغو كي سوال د بعضو عملو د خير په ورځ د قيامت راغلی دی.

**درویش وايي:** چي نقل د هغو حديثو په عربي او بيا يې ترجمه په پښتو كول ډېر طويل دی لهذا ما صرف نظر كړه لپاره د مراعات د حال د خوانندگانو د تفسير ايوبي كه څوك اطلاع پر هغهو حديثو غواړي تفسير مظهري دي مطالعه كړي.

**فائده مهمه:** په كشف الظنون كي چي يو په زړه پوري معتبر او معتمد تاريخ

دی داسې یې لیکلي دي معالم التنزیل في التفسیر للامام محي السنة ابی محمد حسین بن مسعود الفرا البغوي الشافعي المذهب المتوفي في سنة (۵۱۶ ه)

**پوه سه:** چې ددې تاریخ له بیان څخه زما مقصد دادی چې که په مذهبي احکامو بغوي رح د حنیفیانو پر خلاف حدیث روایت کړي د هغه حدیث ځواب دي په کتابو کې د احنافو لکه فتح القدیر د ابن الهمام او کتاب شرح معاني الآثار للفقیه ابو جعفر الطحاوي چې اعلم الناس په مذهب د ابوحنیفه رحمه الله علماو منلی دی. او یا په کتاب د بدر الدین العیني وغیرها کې دې ولټوي داسې دې نه کوي لکه مظهري رحمه الله چې په بعضې فقهي احکامو د بغوي رحمه الله په متابعت میل و مذهب ته د شافعي رحمه الله وکړي کما شرحنا ذالک في بعض المواضع لان العلماً قالوا ان التلفیق بین المذاهب یعني متابعة بعض المذاهب في بعض الاحکام ومتابعة بعض آخر في بعض آخر لایجوز ومکروه اشد الکراهة.

## فَاصْدَعْ بِمَا تُؤْمَرُ

ابن عباس رضي الله عنه وایي چې دا امر دی و نبي عليه السلام ته. والمعنی اظهر ماتؤمر باظهار دعوة المشرکین الی الدین المبین. له عبدالله بن عبیده څخه مظهري رح روایت کړی دی چې علیه الصلوة والسلام ځان پټ ساته په دعوت کې یعني احتیاط یې کاوه تر څو چې دا آیت نازلیدی "فاعلن هو و اصحابه الدعوة" بغوي وایي چې اخفش رح وایي چې د آیت معنا داده "افرق بین الحق والباطل" وقال السیبویة رح اقض بما تؤمر واصل الصدع الفرق. روح البیان وایي چې کلمه د ما موصوله ده عائد یې محذوف دی. والتقدیر والمعنی فاجهر بماتؤمر به من الشرائع ای تکلم به جهاراً واظهره وبالفارسیة پس اشکارا کن وبظاهر قیام نمای بآنچه به تو فرستاده اند از اوامر ونواهی یقال صدع بالحجة اذا تکلم جهاراً مأخوذ من الصدیع وهو الفجر ای الصبح یعني لکه سپېدې چې راوچوي او روز روشن سي ستا دعوت دې ظاهر او روښانه وي. او په قاموس کې وایي الصدع الشق في شيئ صلب کالزجاجة وهذا المعنی ایضاً مناسب في هذا المقام فافهم.

وَأَعۡرِضۡ عَنِ ٱلۡمُشۡرِكِينَ ۝٩٤

او روی گرداني وکړه له مشرکانو څخه یعني پاک مه کوه په ازار ددوی کما یدل علیه مابعده من الآیة فلا معنی لماقیل انه منسوخ بآیة القتال قاله البغوي ورده صاحب تفسیر لباب التأویل چې تصنیف دی د امام علامه قدوة الامة وعلم الائمة ناصر الشریعة علاء الدین علي بن محمد بن ابراهیم البغدادي الصوفي چې په سنه (۷۲۵هـ) کې له تصنیف څخه فارغه سوی دی په دې الفاظو قال بعضهم ما للنسخ وجه لان معنی الاعراض ترک المبالات بهم والالتفات الیهم فلا یکون منسوخاً ص ٦٣.

إِنَّا كَفَيۡنَٰكَ ٱلۡمُسۡتَهۡزِءِينَ ۝٩٥

ما چاره وکړل ستا د پسخند وهونکو یعني دوی مي هلاک کړل او ته مي ځني خلاص کړې. نو دا آیت گویا دلیل دی لقوله فاصدع بما تؤمر آه. والمعنی چې ته اظهار کوه د دین د اسلام او په اوامرو د خدای ﷻ او ته مه بیرېږه له هیڅ چا څخه غیره تعالی. ولي خدای پاک ستا کافي دی له من عداک څخه کما کفاک المستهزئین قاله البغوي رحمه الله.

**درویش وایي**: چې مستهزئین د علیه الصلوة والسلام او د مسلمانانو بېخي ډېر وه بلکې که څوک ووایي چې تول مشرکان د مکې وه دروا غېږن به نه وي لکن په قلت او کثرت کي د استهزأ به یې البته فرق سره وي. په انسان العیون کې وایي چې اسود بن المطلب چې د علیه الصلوة والسلام د ماما زوی هم ؤ چې مسلمانان د مکې به یې ولیدل د پسخنده به یې ملگرو ته وویل دادي بادشاهان د مځکې او میراث خواره د کسری او قیصر راغله. ولي مسلمانانو به زاړه څیرې کالي اغوستي ره. لکن په دې آیت پینځه کسان مخور ډېر متکبرین ډېر په علیه الصلوة والسلام پسخند وهونکي مراد دي. دا په پینځه کې حصر نه دي. ولي ابوجهل. ابو لهب. عقبه. حکم بن العاص وغیرهم په دغو کې نسته. ددغو پینځو رئیسانو د قریشو نومان دادي (۱) ولید بن المغیرة المخزومي دا ددغو پینځو کسانو مشر ؤ (۲)

العاص بن وائل السهمي (۳) الاسود بن المطلب بن اسد بن عبد العزی (۴) الاسود بن عبد یغوث بن وهب بن عبد مناف بن زهره (۵) حارث بن قیس بن الضلالة.

**درویش وایي:** چي ټوله مفسرین پر دغو نومونو متفق دي په سر کي محي السنة بغوي رحمه الله. لکن زه به د ټولو تفاسیرو خلاصه په لنډ ډول بیان کړم. راوي وایي چي دغو پینځو کسانو طواف کاوه جبرئیل علیه السلام راغلی خارج المطاف د علیه الصلوة والسلام څنګ ته ودرېدی او علیه الصلوة والسلام ته یې وویل چي د دغو پینځو کسانو د هلاک خبر په تفصیل تاته دروښیم. (۱) نو جبرئیل علیه السلام اشاره وکړه وپنډۍ ته د ولید. نو هغه وخت چي ولید پر یو سړي چي د خزاعه د قبیلې ؤ چي هغه غشي جوړول تېرېدی او د ولید برد یماني پر وړوو وه او لنګ پسي څکېدی یو غشي د ولید په لنګ پوري بند سو. او ده هم ولیدی له ډېره کبره او خیاله ورته راکښته نسو چي غشی له لنګه ایسته کړي کرار کرار یې غشی له پنډۍ څخه مبتلی چي یو رګ یې زخمي سو وینه تر ایله سوه او وینه په هیڅ علاج نه درېدله چي ځني مړ سو (۲) عاص بن وائل السهمي چي تېرېدی جبرئیل علیه السلام اشاره وکړه د پښې لاندي ډب ځای ته راوي وایي چي عاص مذکوره پر اوښ سپور سو او دوه زامن یې ورسره وه صحرا ته راووتی د طبیعت ارائي لپاره، نو له اوښه چي کښته سو پر یوه ځوز (ازغي) وختی. ځوز یې د لاندي د خوا په پښه جګ سو. ده زامنو ته وویل ده زامنو ته وویل چي یو شي وخورم یعني لړم وغیره. زامنو چي یې وکتل ورته وه یې ویل چي هیڅ شی خزنده نسته او پښه یې وپړسېدل حتی چي لکه اوښ غاړه یې دومره سوه. نو ځای پر ځای مړ سو. (۳) اسود بن المطلب چي تېرېدی جبرئیل علیه السلام اشاره وسترګو ته وکړل په دواړو سترګو ړوند سو، ابن عباس رضي الله عنهما وایي چي جبرئیل علیه السلام په یوه شنه پلګ پر سترګو وویشتی سترګي خو یې وړړندي کړې لکن دومره درد یې کاوه چي سر به یې له دېوا له وواهه له ډېره درده اخیر مړ سو. او کلبي رحمه الله وایي چي دا سړی د یوې درختي په بیخ کي ناست ؤ او ده مریی هم ورسره ؤ. نو جبرئیل علیه السلام دده سر له درختي وواهه او مخ یې له ځوزانو سره. نو ده پر مریي ږغ وکړی چي دا څوک دی

چې زما سر له درختي سره او مخ مې له څوزانو سره جنګوي مريي ورته وويل چې هيڅ څوک نسته ته يې په خپله جنګوې. نو ده ناري کړې قتلني رب محمد فمات (۴) اسود بن عبد يغوث چې تيرېدی جبرئيل عليه السلام د نبي کريم ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې دا څرنګه سړی دی؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل که څه هم دی زما ماما دی لکن ډېر بد سړی دی. نو جبرئيل عليه السلام يې اشاره و نس ته وکړه نو د استسقاً مرض وربېښ سو او مړ سو (۵) بيا حارث بن قيس تيرېدی جبرئيل عليه السلام يې اشاره و سر ته وکړه. نو ترېيزه يې نوونه رابهيدل حتی مات. دا ؤ بيان او تفصيل او تفسير ددې قول د خدای ﷻ "انا کفيناک المستهزئين".

**درويش وايي:** چې دغه بيان د دغو تفاسيرو حاصل ما رانقل کړی، روح المعاني، تفسير بغوي، تفسير خازن، تفسير قرطبي، تفسير مظهري، تفسير رازي او تفسير روح البيان. لکن روح البيان دا خبره کړې ده چې نو موړي کسان په يوه ورځ مړه سوه بل مفسر دا خبره نه ده کړې.

**شکايت:** د درويش حاسدان صرف په نامه ملايان دا وايي چې عبيد الله له کتابو څخه خبري غلا کوي. فقير وايي که دا نقل له کتابو څخه تاسي غلا بولئ نو دا نقل خو له عصر نبوي او له صحابه وو او تابعينو او تبع تابعينو وهلم جرا را شروع دی الی يومنا. فقير و حاسد ته وايي چې ته هم مېړه سه ورته غلاوي وکړه چې خلګ آفرين درته ووايي ......... بيت:

چشم بد انديش که برکنده باد ....... عيب نمايد هنرش درنظر

الَّذِينَ يَجْعَلُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ ۚ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴿٩٦﴾

هغه مستهزئين چې ګرځوي د خدای سره بل معبود "يعني خدای ﷻ ته شريک بللکې شريکان وايي يعني الاصنام" ژر دی چې دوی به خبر سي په عاقبة الامر خپل يعني في الدنيا والآخرة.

وَلَقَدْ نَعْلَمُ أَنَّكَ يَضِيقُ صَدْرُكَ بِمَا يَقُولُونَ ﴿٩٧﴾

لام موطئه د قسم محذوف دی يعني والله په تحقيق موږ خبر يو چې ستا سينه تنګېږي په هغو خبرو چې مشرکان يې کوي من الشرک والطعن في القرآن وبما

يقولون لک شاعره او کاهن او مجنون او مفتر الى غير اقوال الاستهزاً بک وبالمؤمنين.

فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ

نو ته په تسبيح سره د حمد ځان مشغول کړه چي ددې په برکت سره به دې د زړه غيظ او غصه کمه سي او خدای پاک به ستا د دښمنانو کفايت وکړي حتی ستا زړه به په دوی سوړ سي. او ابن عباس رضی الله عنهما وايي چي مراد له سبح بحمد ربک څخه لمونځ دی تعبيراً عن الکل بالجزء. ولي چي لمونځ مشتمل دی پر الحمد لله او پر تسبيحاتو د رکوع او سجدې.

**درويش وايي**: چي دا قول د ابن عباس رضی الله عنهما موافق دی د هغه حديث سره چي بخاري او نورو محدثينو يې روايت کړی دی چي آنحضرت صلی الله علیه وسلم چي به يو کار غمجن کړی افتزع الى الصلوة. پناه به يې لمانځه ته وروړه يعني نفلي لمونځ به يې وکړی او هغه غم به يې له زړه څخه لیري سو.

وَكُن مِّنَ السَّاجِدِينَ ﴿٩٨﴾

او وګرځه له ساجدينو څخه. مظهري رحمه الله وايي من المتواضعين. او ضحاک رحمه الله وايي کن من المصلين بذکر الجزء واراد الکل. روح المعاني په نقل له بل څخه وايي چي دا جزء د لمانځه يعني سجده افضله د اجزاؤ د لمانځه دي. ولي چي په صحيح حديث کي راغلي دي اقرب ما يکون العبد من ربه اذا کان ساجداً. يعني هغه ډېر ښه وخت د قرب د بنده و خدای جل جلاله ته دادی چي بنده پر سجده وي. چي مراد لمونځ سي. نو له دې سببه عليه الصلوة والسلام وايي "وجعلت قرة عيني في الصلوة" ګرځول سوې ده خنکتيا (سوړوالی) د سترګو زما په لمانځه کي. د سترګو له خنکتيا څخه ډېره خوشالي مراد ده. وهذا محاورة عربية شائعة او دا حديث صحيح دی بخاري او مسلم او نورو يې روايت کړی دی لکن فقير مختصر کړی د مقام په مناسبت.

وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتَّىٰ يَأْتِيَكَ الْيَقِينُ ﴿٩٩﴾

دوام پر عبادت وکړه تر څو چي تا ته راځي يقين يعني امر متيقن چي موت

دی وهذا التفسير هو المروي عن ابن عمر والحسن وقتادة وابن زيد ﷺ. مرگ ته يقين په دې وايي په هر ژوندي پوري لحوق دده متيقن دی. او ابن بحر وايي چې مراد د يقين څخه نصرت دی پر کافرانو چې خدای ﷻ يې د عليه الصلوة والسلام سره وعده کړې وه. بغوي رح په خپل سند له جبير بن نضر ﷺ څخه روايت کړی دی چې عليه الصلوة والسلام وويل چې ماته داسې وحې نه دې کړل سوې چې زه مال جمع کړم "و اکون من التاجرين بل اوحي الي فسبح بحمد ربک وکن من الساجدين واعبد ربک حتى يأتيک اليقين".

**فائده**: بعض علماً وايي چې "وکن من الساجدين" د سجدې آيت دی لکن جمهور اهل المذاهب الاربعة والقراً السبعة ﷺ وايي چې دا آيت د سجده تلاوت نه دی. په روح المعاني (ص۸۷) کي ددې آيت په تفسير کي وايي چې بعض ملحدين يعني بې دينه کسان چې ځانونه صوفيان بولي وايي چې مراد له "حتى يأتيک اليقين" څخه کشف او شهود دی د خدای پاک. دوی وايي چې بنده چې و درجې ته د کشف او شهود ورسېږي تکليف الهي يعني په هيڅ عبادت مکلف نه دی، ولې چې عبادت خو د اهل حجاب والاوو لپاره دی يعني چې د خدای او ددوی تر منځ حجاب وي. روح المعاني وايي چې په دې خبره دوی له دين اسلام څخه وتلي دي او د دين محمدي ﷺ خلگ نه دي.

**درويش وايي**: چې روح المعاني ددې مذهب په رد کي ډېرې وړدې خبرې کړي دي ان شئت فطالعه.

**فائده**: حب د خدای او د رسول د خدای چې غالب سي پر چا باندې هغه تر هر نعمت چې په وخت د کفر يې درلودی تر هغه تېرېږي د مثال په توگه. له حضرت عمر ﷺ څخه روايت دی چې رسول کريم ﷺ و مصعب بن عمير ﷺ ته وکتل چې دی راروان ؤ او د نر پسه پوست يعني وروسته تر پخېدلو د قميص پر ځای يې اغوستی ؤ او هغه پر تنگ ؤ. نو رسول الله ﷺ وويل "انظروا الى هذا" و گورئ و مصعب ته "الذي قد نور الله قلبه" چې خدای پاک يې زړه روښانه کړی دی يعني بنور الايمان وحب الله ورسوله لقد رئيته بين ابويه" ما دی ليدلی ؤ د مور او پلار

سره يعني په وخت کي د کفر چي هغو به ده ته غذا او نفقه ورکوله باطيب الطعام والشراب ولقد رئيت عليه حلة شراها بأتي درهم" او ما ليدلي وه پر ده حله يعني قميص او پر توګ چي مور او پلار ده ته رانيولي وه په دوه سوه درهمه "فدعاه حب الله وحب رسوله الى ماترونه" نو محبت د خدای پاک او حب د رسول الله يعني چي مسلمان سو ، ودغه حال چي تاسي يې وينئ فرضی الله تعالى عنه.

**درويش وايي**: چي تفسير د سورة الحجر په توفيق د خدای ﷻ لهذا العبد الجهول العاصي پر پينځه بجې د ورځي د پنجشنبې د مبارکې مياشتي د روژې پر پينځه ويشتمه نېټه (۱۴۲۹ هـ ق) وپای ته ورسېدی. اوس تفسير د سورة النحل شروع کېږي ان شا الله تعالى.

اللهم وفقني لتفسير سورة النحل على طريق الرشاد بالصحة والسلامة والعافية واجعله خيراً باقياً الى يوم القيامة ..... بيت:

الهی يا الهی يا الهی ............. ندارم جز اميدت تکيه گاهی



سُورَةُ النَّحْلِ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ مِائَةٌ وَثَمَانٌ وَعِشْرُوْنَ آيَةً وَسِتَّةَ عَشَرَ رُكُوْعًا

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَتٰى اَمْرُ اللّٰهِ فَلَا تَسْتَعْجِلُوْهُ ط

راغلی یعنې نژدې سو، نو "اتیان" مجاز دی له قرب څخه، ابن عرفطه وایي چې عرب وایي اتاک الامر فلانی کار راغلی او هغه کار متوقع وي هنوز راغلی نه وي.

**درویش وایي:** چې په پښتو کې هم ورته مجاز سته، ولې پښتانه وایي چې د برات میاشت را نوې سي دوی وایي چې روژه مبارکه راغله او سره ددې چې تر روژې پورې د پرې ورځې پاتې وي، نو مراد ددوی دادی چې رانژدې سوه، او یا "آتی" مجاز دی د وجوب الوقوع څخه، ولې هغه شی چې واجب الوقوع وي که څه هم په مستقبل کې بمنزلة الواقع في الماضي لکونه متیقن وجوده.

**یوه سه:** چې مراد له امر الله څخه قیام د قیامت چې موعود ده، قاله الکلبي رحمه الله، نو مراد داده چې د قیامت په راتلو سره یقین وکړې او شک نه پکښې وکړې او ځانونه ورته جمتو کړې بالایمان والاعمال الصالحة او په راتلو کې تلوار مه کوئ چې صبا وبل صبا به وي، ولې په تلوار ستاسې د کفارو فائده نسته، بغوي وایي چې ابن عباس رضی الله عنه وایي چې دا آیت چې نازل سو "اقتربت الساعة" مشرکانو د مکې یو وبل ته سره وویل چې دا سړی یعنې محمد وایي چې قیامت نژدې سو نو تاسې له خپلو بدو کارو څخه صبر وکړئ چې وګورو چې څه پېښېږي نو چې قیامت نه راغلي نو دوی سره وویل مانری مما تخوفنا به بیرته یې خپلو کارو ته دوام ورکړی، بیا دا آیت نازل سو "اقترب للناس حسابهم" نژدې سو و خلګو ته وخت د حساب چې بیا مراد ځني قیامت دی بیا کفارو ویرېدل، بیا چې د پرې ورځې تېرې سوې قیامت نه سو قائم، نو دوی و علیه الصلوة والسلام ته وویل یا محمد ما نری شیئًا مما تخوفنا به بیا چې دا آیت نازل سو "اتی امر الله" علیه الصلوة والسلام ځني ولاړ سو او خلګو یعنې مشرکانو سرونه پورته کړه او ددوی دا خیال سو چې قیامت حقیقةً راغلی، نو دا کلمه نازله سوه "فلا تستعجلوه" دومره تلوار مه کوئ، نو خلګ مطمئن سوه چې هیڅ نسته.

**پوه سه**: چي استعجال طلب د شي دی دمخه تر وخت. بغوي رح وايي چي ابن عباس رضي الله عنهما چي رسالت د نبي علیه السلام یو له علاماتو څخه د قرب القيامة دی په حديث شريف کي راغلي دي چي جبرئيل علیه السلام چي ملکو ته د اسمانو وويل چي محمد صلی الله علیه وسلم مبعوث سو، ملکو وويل الله اکبر قامت الساعة ولهذا ورد في الحديث الصحيح الذي رواه المستور بن شداد عن النبي صلی الله علیه وسلم قال بعثت في نفس الساعة فسبقتها كما سبقت هذه هذه واشار باصبعيه السبابة والوسطى. زه خدای پاک را واستولم په ساه کښو کي د قيامت زه تر دمخه سوم لکه سبابه گوته چي د منځ تر گوته دمخه ده.

**درويش وايي**: چي بعض اقوام وايي چي مراد په دې آيت عقوبت د مکذبين دی په دې دنيا بالسيف ولي چي نضر بن الحارث به ويله اللهم ان كان هذا هو الحق اى الدعوة الى التوحيد فامطر علينا حجارة من السماء، ولي موږ توحيد د خدای نه منو او دين د اسلام هم نه منو، نو که دا حق وي موږ ته عذاب د رجم الحجارة راکړې فنزلت هذه الآية وقتل النضر يوم بدر صبراً (يعني نه په جنگ کي بلکې ژوندی يې ونيوی مړ يې کړی وهذا هو معنى قتل الصبر)

فقير وايي چي دا شان نزول ضعيف دی او د جمهورو محدثينو خلاف دی لکه دمخه چي تېره سوه البته تفسير بحر العلوم يې شان نزول عام بولي يعني عذاب الدنيا بالسيف وقيام الساعة.

**سوال**: دا سورت خو اکثره مکي دی والعذاب بالسيف كان في بدر وهو بعد الهجرة؟

**خواب**: لما كان نصر النبي صلی الله علیه وسلم عن اعدائه سواً كان في بدر او في غيره من المغازي موعوداً كان آتياً فصح اتى امر الله بمعنى قرب فافهم.

سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ۝١

پاک دی خدای جل جلاله له شريک څخه او له عجز څخه او له ټولو هغو اوصافو څخه چي منافي د الوهيت سره وي اولوړ دی په اوصافو جليله وو سره تر هغه چي مشرکان يې خدای ته نسبت کوي من ان اصنامهم شركائه تعالى في العبادة قاتلهم الله انى يوفكون.

**درویش وايي:** چي تول‌ه اهل نقل او عقل پر دې متفق دي چي اصل د "سبحنه اسبح الله سبحانًا" ؤ والمعنى زه تنزیه او پاکي د ټولو عیبو او نقائصو وایم خدای ﷻ له يعني قلبًا ولسانًا، وروسته چونکه تسبیح د خدای ﷻ کثیر الاستعمال وه نو د تخفیف مقتضي وه، نو فعل او فاعل يعني اسبح يې حذف کړی او مفعول مطلق يعني سبحانًا يې مضاف کړی و مفعول ته چي ضمیر راجع دی و خدای ﷻ ته او په معنی کي د ټولې جملې يې ودراوه. وروسته تر اضافت د "سبحانه" ضمیر ته اظهار د فعل روا نه دی يعني داسي نه ده روا اسبح سبحانه على في الرضى شرح الكافية وغيره من كتب النحو ودليل عدم جواز الاظهار مذكور هنالك.

يُنَزِّلُ الْمَلٰٓئِكَةَ بِالرُّوْحِ مِنْ اَمْرِهٖ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖٓ

نازلوي يعني را استوي له اسمان څخه ملکي (يعني جبرئيل. فالجمع للتعظيم) په وحي يا په قرآن سره. وقرآن ته يې روح وويل په دې سبب چي قرآن روح دی ژوندي کوي هغه مړه زړونه په کفر او جهل سره له امر څخه د خدای ﷻ (نو من اجلي دی يعني من اجل امره) و هغه چا ته چي د خدای ور ته اراده سي له بندګانو څخه دده، ولي چي استعداد او تحمل د اثقالو د نبوت خدای ﷻ ته معلوم دی.

**درویش وايي:** چي قریشو به ویل لولا انزل القرآن على رجل من القريتين عظيم يعني وليد بن مغيره په مکه کي او مسعود بن عمرو الثقفي په طائف کي، نو خدای پاک په دې آيت کي پر دوی رد وکړی يعني چي نبوت او وحي الهي په جاه وجلال پوري د دنيا اړه نه لري بلکې په جاه وجلال سره د زړه اړه لري.

اَنْ اَنْذِرُوْٓا اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا فَاتَّقُوْنِ ۝۲

چي خلګ يعني مشرکان وبېروي له عذاب څخه د خدای پاک (نو مفعول د "انذروا" محذوف دی او دمخه تر "ان" با جاره مقدر دی ای بان) شان دادی چي نسته مستحق د عبادت بیله ما نو له ما څخه وبېرېږئ چي ماته شریک وایاست.

**پوښتنه:** انذروا خو امر دی رسولانو ته او "انه لا اله الخ" خو قول د خدای ﷻ دی او مخاطبه د خدای په خپله ده فكيف الربط بينهما؟

**خواب:** بعض مفسرانو په دې الفاظو اشاره وجواب ته د مذکوره سوال رجوع الی مخاطبتهم، والحاصل چي خدای ﷻ دمخه په اسم ظاهر یا ضمیر غائب سره خبري کولي اوس يې کفار په خپله تر خطاب لاندي راوستل فافهم.

او بعض مفسرینو تر "انه" دمخه "واعلموا" مقدر بولي ای واعلموا ان لا اله الا انا فاتقون ....... بیت:

مرا بندگی کن که دارا منم.... تو از بندگانی و مولا منم
قهار بی منازع و غفار بی ملال.... دیان بی معادل وسلطان بی سپاه
باغیر او اضافت شاهی بود چنانکه.... بریک دوچوب پاره زشطرنج نام شاه

## خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ تَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ۝

پیدا کړي دي خدای ( ﷻ ) اسمانونه او مځکه متلبس په حق سره یعني الدلالة علی وجود الصانع وقدرته کمال القدرة و حکمته، خدای پاک لوړ دی په رتبه کي چي متصف په وجوب الوجود او قدرت تامه او علم کامل وغیرها من الصفات الجلالیة والجمالیة سره دی تر هغو شیانو چي دوی يې د خدای سره شریک کوي په عبادت کي چي بتان دي لانها في ادنی درجة من الامکان الخاص وهي الجمادیة

## خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ نُّطْفَةٍ

خدای پیدا کړي دي انسانان یعني عمومي انسانان له نطفې څخه یعني د پلار او مور چي په رحم کي د مور سره يو ځای سي، او نطفه ذاتًا جماد شی دی لاحس ولا حرکة ارادي لها حتی چي سیال ده، او خپل شکل او وضع هم نسي سنبالولای خیر رفته رفته ذي روح وګرځي دی او د رحم له تنګتیا څخه عالم الارض ته راغلی سره د کمال ضعف او ناوسی ثم وثم.

## فَاِذَا هُوَ خَصِيْمٌ مُّبِيْنٌ ۝

نو ناګاه دغه انسان مخلوق من النطفة چي قوي سو، والمراد الکافر منه خصومت کوي د رسولانو سره په وحدت او قدرت کي د خدای ﷻ علی البعث بعد الموت بنکاره او بر ملا خصومت حتی چي وايي "من یحی العظام وهي رمیم" او

خلق اول ته خپل نه گوري چي من ماءٍ النطفة پيدا سوي دي. بغوي رح چي تفسير يې پر هامش د تفسير خازن موجود دی وايي چي دا آيت په ابی بن خلف الجمعي کي نازل سوی دی چي هغه د بعث بعد الموت څخه لکه نور مشرکان منکر ؤ. نو ده يو خت زوړ او وروسته هډوکی پيدا کړی. نو عليه الصلوٰة والسلام ته يې ورېل اتقول ان الله يحی هذا بعد مارم. ونزل فيه ايضاً وضرب لنا مثلاً ونسي خلقه. والحاصل چي دغه منکر جاهل په دې نه پوهېږي چي دی خدای ﷻ عالم الوجود ته د نطفې له نازک حالت څخه راوستلی دی. نو بيا دی ولي بعيده بولي خلقت مرةٍ اخری او سره ددې چي دی خاوري سي بيا هم خاوري خو تر نطفې په استحکام کي بالا دي.

**فائده**: دا آيت که څه هم مورد يې خاص دی يعني ابی بن خلف لکن حکم يې عام دی، ولي چي ټوله ډله د مشرکانو د ابی بن خلف همنوا دي.

## وَالْأَنْعَامَ خَلَقَهَا لَكُمْ فِيهَا دِفْءٌ وَمَنَافِعُ وَمِنْهَا تَأْكُلُونَ ۝

**پوه سه**: چي مراد له "انعام" څخه اوښان، غوايي، پسونه او بزې دي. دا معنا نه ده چي مطلق پر څلورو پښو گرځي لکه بعض امامان چي وايي چهارپايان. ولي چي ټوله مردار خواره خو چارپايان دي که څه هم خالق د هغو خدای ﷻ دی لکن دا مقام د امتنان دی والامتنان بهؤلاء.

**پوه سه**: چي انعام منصوب دی علی شريطة التفسير يعني په وروسته خلقها سره.

"خلقها" پيدا کړي يې دي ستاسي د فائدې لپاره چي تفصيل د فوائدو يې دادی. تاسي لره په دغو انعامو کي "دفء" سته، په قاموس کي وايي چي "دفء" د تېز يخ ضد ته وايي يعني تاسي ځانونه په تودوئ يعني په اوبړو سره د بعضو (اوبار د اوښانو وړيو ته وايي چي مفرد يې وبر دی) او په اصوافو سره د بعضو چي مفرد يې صوف دی د پسو وړيو ته وايي. او په اشعارو سره د بعضو چي مفرد يې شعر دی د بزو وجغونو ته وايي. يعني خېمې کېږدۍ ځني جوړوئ او داغه رنگه تلتکان نيالی بلکې د اغوستلو کالي وغير ذالک "ومنافع" او نوري فائدې لکه سپرتيا پر اوښانو او پر غويو کوئ او غوبل کول او شيدې او نسل، او پر اوښانو سپرتيا د دوو درو کسانو او بارونه پر وړل او خرڅول نقود لاس ته راوړل الی غير

ذالک "ومنها تاکلون" او د دغو انعامو څخه تاسي خورک کوئ یعني د هغو اجزاؤ ددوی چي خوړل کېږي لکه غوښي د تولو او وازگي د تولو او شيدې د تولو.

**فائده**: "منها" چي متعلق په "یاکلون" پوري دی تر مقدم یې کړی لپاره د موافقت د اواخرو د آیتو چي قرأ یې رؤس الآی بولي. او یا لپاره د حصر یعني عادةً چي غوښي خوړل کېږي د دغو انعامو او د چرگ غوښي یا د کوتري غوښي یا د نورو مرغانو غوښي به یا د دوا په توگه وي او یا د میلې لپاره.

**مسئله**: د دغو انعامو جامې یا پوستینان یا چپنې خو بالاجماع روا دي. او د گیدړو یا د بل حیوان چي غوښي یې مرداري وي وروسته تر دباغت یې هم پوستین او هم د لمانځه مصلی ځني جوړل روا دی. او د امام شافعي رح په نېز د درندگانو له پوسته چپنه یا مصلی جوړل مکروه دی لکه لېوه، پړانگ، زمری وغیره. په حدیث مبارک کي راغلي دي چي علیه الصلوة والسلام یوه چپنه درلودل د "فنک" د پوست چي په اخترو کي به یې اغوستل. په قاموس کي وایي چي "فنک" بالتحریک اسم دابة وفروتها اطیب انواع الفر واشرفها واعدلها صالح لجمیع الامزجة المعتدلة انتهی.

**مسئله**: په خوراکي حیواناتو کي ذیل الذکر شیان حرام دي (۱) قبل (۲) دبر (۳) ذکر (۴) خشتین (۵) مرارة (٦) مثانه (۷) عظم (۸) دم مسفوح (۹) غدة مراره تریخی، مثانه سپوخښه، مسفوح جاري وینه بخلاف ما في اللحم فانه غیر حرام، غدة مرغړی.

وَلَكُمْ فِيهَا جَمَالٌ حِينَ تُرِيحُونَ وَحِينَ تَسْرَحُونَ ﴿٦﴾

او تاسي لره په انعامو کي ښائست او زینت دی په هغه وخت چي تاسي دغه انعام راولئ له څرځایو څخه و کورو ته خپل او په هغه وخت کي چي تاسي یې باسئ له کورو څخه د څرځایو پر خوا.

**تجربه**: مالدارانو ته په تجربه دا ثابته ده چي د اوښانو گله یا د غویو گورم یا د میږو او بزو رمه چي راځي یا له کوره وځي او دوی یې وویني نهایته لویه خوشالي او فرحت ددوی په زړو کي پیدا کېږي او کور دوی ته په دغه دوه وختو کي ډېر ښایسته او قشنگ بربښي.

**نکته**: "اراحة" یې تر "سرح" دمخه کړی که څه هم په وجود کې "اراحة" تر "سرح" وروسته دی کما هو التجربة له دې سببه چې جمال په اراحة کې ډېر دی تر سرح ولې انعام چې مابنام کورته راځي نسونه یې ښه ډک وي پو ښتی یې پورته وي غولانځي یې له شیدو ډکې وي.

# وَتَحۡمِلُ أَثۡقَالَكُمۡ إِلَىٰ بَلَدٖ لَّمۡ تَكُونُواْ بَٰلِغِيهِ إِلَّا بِشِقِّ ٱلۡأَنفُسِۚ إِنَّ رَبَّكُمۡ لَرَءُوفٞ رَّحِيمٞ ۝٧

او وړي دغه انعام (یعني انعام چې صالح د حمل وي) درانه بارونه ستاسي ویو لېږي ښار او وطن ته چې تاسي په خپله یعني پر پښو نسواې رسېدلای و هغه بلد ته مگر چې ډېر مشقت او تکلیف دي پر ځان تېر کړی نه وای فضل تر دي چې اثقال به دي په شا هغه بلد ته رسولای. په تحقیق ستاسي رب مهربان دی چې تاسي ته یې وسائل د حمل و نقل انعام درکړي دي.

# وَٱلۡخَيۡلَ وَٱلۡبِغَالَ وَٱلۡحَمِيرَ لِتَرۡكَبُوهَا وَزِينَةٗۚ

عطف دی پر انعام یعني خدای پیدا کړی دی اسان او غاطري او خره ددې فائدې لپاره چې تاسي پر سپرېږئ یو خوا ته چې ځئ. او بل لپاره د زینت خصوصاً الخیل.

**درویش وایي**: چې د زمان نزول القرآن زینت هم دغه حیوانات وه ثم وثم حتی چې د زینت نور شیان پیدا کېدله لکه سائیکل، موټر سائیکل. قسم قسم موټران د سپر تیا کم قیمته او درمیانه او د ډېري بیع. او داغه رنگه د حمل او نقل لپاره نوي وسائل پیدا سوه لکه بارو ړونکي لوی او کوچني موټران لکه چې مونږ یې وینو.

**فائده**: "ترکبوا" یې په صیغه د فعل راوړی او "زینت" یې په اسم. حکمت دادی چې رکوب فعل اختیاري د بندگانو دی او زینت فعل د خالق دی.

**فصل**: په دغه آیت سره دلیل وایي هغه آئمه چې د اسنانو غوښې حرامي بولي او د بغال او حمیر غوښې حرامي بالاتفاق دي او هغه روایت چې بغوي راوړی دی له خالد بن ولید څخه روایت دی چې علیه الصلوة والسلام د آس. غاطرې او خره

غوښي خوړلي دي، بغوي رح فقط دغه ويلي دي و اسناده ضعيف.

**درويش وايي:** چي اسناد يې ښخي هيڅ شي نه دی ولي چي د صحيح احاديثو د بخاري وغيره مخالف دی چي په هغو کي راغلي دي كانوا ياكلون لحوم الخيل على عهد رسول الله ﷺ ونهى عن لحوم البغال والحمير. او دا حديث بغوي هم په خپل سند سره راوړی دی.

**پوه سه:** چي تحريم د غوښو د آسانو قول د ابن عباس رضي الله عنهما دی او ده په استدلال کي دغه آيت راوړی دی او ابن عباس رضي الله عنهما ويلي دي هذه للركوب. واليه ذهب الحكم، ومالك وابو حنيفه رحمهم الله دوی وايي چي منفعت د خورک اعظم دی تر منفت د سپرتيا لان الاحتياج الى الاكل اكثر من الاحتياج الى الركوب كما لايخفى، نو چي خدای پاک منفعت د رکوب ذکر کړی او منفت د اكل يې نه کړی ذکر، نو دا معلومه سوه چي خوراک يې حرام دی، ولي که يې اكل روا وای نو هغه اولى بالذكر و، ولي خدای پاک په انعامو کي وويل ومنها تاكلون" او اسان يې په رکوب سره خاص کړل، نو موږ په دې پوه سوو چي آسان د رکوب لپاره دي نه د خورک لپاره، او يو جماعت د اهل علم ودې ته تللی دی چي غوښي د آسانو مباح دي وهو قول الحسن البصري وشريح و عطأ وسعيد بن جبير واليه ذهب الامام الشافعي و احمد واسحق رحمهم الله دوی پر اباحت د لحوم الخيل هغه حديث ذکر کوي چي د اسما بنت ابى بكر رضي الله عنها څخه روايت دی "قال نحرنا على عهد رسول الله ﷺ فرسًا فاكلناه" او په بل روايت "قالت ذبحنا على عهد رسول الله ﷺ فرسًا ونحن بالمدينة فاكلناه اخرجه البخاري ومسلم.

او له حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی "نهى رسول الله ﷺ عن لحوم الحمر الاهلية (د اهليه په قيد سره هغه د غرو پسونه چي پر شکل د خرو دي چي په فارسي يې گور خر بولي وه ايستل) واذن في الخيل، وفي رواية قال اكلنا زمن خيبر لحوم الخيل وحمر الوحش" موږ وخوړلې په وخت کي د خيبر د غزا غوښي د اسانو او د وحشي خرو چي دمخه ذکر سوه "ونهى رسول الله ﷺ عن الحمار الاهلي" هذه رواية بخاري ومسلم، وفي رواية ابى داؤد قال يعني جابر رضي الله عنه ذبحنا

یوم خیبر الخیل والبغال والحمیر وکنا اصابتنا مخمصة یعني حالت د ډېرې لوږې ؤ چي میتة اکل پکښې روا دی. جابر ﷺ وایي چي وروسته بیا علیه الصلوٰة والسلام موږ د غاطرو او خرو د غوښو خوړلو څخه نهي کړو "ولم ینهنا عن لحوم الخیل" او هغه کسان چي د آسانو غوښي حلالې بولي د دغه آیت چي پکښې رکوب او زینت ذکر سوی دی او اکل نه دی ذکر سوی ځواب داسې ورکوي بان ذکر الرکوب والزینة پر دې دلالت نه کوي چي د اسانو منفعت حصر په دغو دوو کي دی بلکې ددې لپاره دی چي لوی مقصود په آسانو کي سپرتیا ده کمالا یخفی. دوی وایي چي له دې سببه چي مقصود آه منفعت د حمل الاثقال یې په اسانو کي نه دی ذکر کړی او سره ددې چي اسان خو هم د حمل الاثقال قابل دي. او په انعام کي یې وتحمل اثقالکم ذکر کړی. او بغوي ؒ وایي چي په دې آیت کي مراد تحلیل او تحریم نه دی بلکې په دې آیت کي مقصود ښوونه د خدای ﷻ ده بندګانو ته خپل نعمتونه خپل پر دوی او تنبیه ده پر کمال قدرت او حکمت خپل.

**درویش وایي**: چي دا ؤ تفصیل او بیان د تحلیل او تحریم د غوښو د آسانو.

**فائده**: په هر ځای کي چي پښتانه اوسېږي د آس غوښي نه خوړل کېږي. په کوټه کي بلکې په ټول بلوچستان کي او په جنوبي افغانستان کي د آس د غوښو د خوړلو هیڅ اثر نسته. البته په شمالي افغانستان کي بعض ځایونه د آس غوښي خوري.

**فوائد شتی**: (۱) خدای ﷻ احسان اچولی دی په څلورو حیواناتو "اوښ، غویی، پسه او بزه. او علیه الصلوٰة والسلام پر دغو اوښانو سپور سوی دی "الناقة القصوی" چي د غوږ یو طرف یې پرې ؤ "الجدعا" چي یو غوږ یې یکلخته پرې ؤ "والعضبا" چي یو غوږ یې چاک ؤ. په دې اوښانو کي یو عضبا اوښه ده چي هیڅ اوښ نسوای پر دمخه کېدلای. یو اعرابي پر یوه اوښه باندي راغلی چي تر عضبا پر مخاسته کي دمخه سو. پر مسلمانانو دا دمخه والی سخت واقع سو. نو علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل "ان حقًا علی الله ان لایرفع شیئًا من الدنیا الا وضعه" په تحقیق حق دی پر خدای ﷻ چي یو شی له دنیا څخه نه پورته کوي مګر بېرته

يې کښته کوي، او دا هغه اوښه ده چې د عليه الصلوة والسلام تر وفات وروسته يې نه شی خوړی او نه يې اوبه څښلې حتی ماتت.

**درویش وایي:** چې دا تاثیر وُ د فراق د علیه الصلوة والسلام پر يو حيوان چې دی مبارک به پر سپرېدی فماکان احوال الصحابة ﷺ الله اعلم بذالک. په حيوة الحيوان کې وايي چې د اوښ وړی، وسوځي او پر هغه ټپ يې واچوي چې وينه يې نه دربېږي. نو وينه به يې ودربېږي، او د اوښ د غوښو خوړل قوت د جماع زياتوي.

(۲) بقر په حديث کې نه دی ذکر سوی چې د ساتنې لپاره دي علیه الصلوة والسلام مالک سوی وي، البته په حديث کې د بخاري راغلي دي چې آن حضرت ﷺ اضحيه وکړل د ازواجو مطهراتو ﷺ له خوا په بقر سره او په حديث صحيح کې راغلي دي "علیکم بالبان البقر واسمانها وایاکم ولحومها کان البانها واسمانها دواء ولحومها داء (تاسي لازم وګرځوئ شدې د غوا او غوړي د غوا او ځان ساتئ له غوښو څخه يې. ولې چې شيدې او غوړي دوا ده او غوښې يې ناجوړي دي.

**پوښتنه:** که د غوا يې غوښه مرض وي نو ولې علیه الصلوة والسلام له ازاواجو مطهراتو ﷺ له خوا اضيه په کول؟

**ځواب:** حليمي رح وايي چې دا حديث مبني دی پر دې چې د حجاز هوا يابس ده او د بقر غوښې هم يابسې دي، نو ځکه په حجاز کې د غوښو خوړل دا ده او شيدې او غوړي يې رطب دي فيناسب هوا الحجاز لانه يدفع يبس هوا الحجاز برطوبة البان البقرة واسمانها انتهى.

**درویش وایي:** چې اعتبار د غوښو د بقر دا او مرض او په اضحيه کې خو يې هر چاته په يوه کتو ور رسېدلي وي

(۳) له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چې علیه الصلوة والسلام شتمنو خلګو ته امر وکړی چې پسونه او مېږې راننسي يعني د شيدو او غوړو او وړيو لپاره او د نس لپاره، او فقراؤ ته يې وويله چې تاسې چرګانې راننسئ د نسل او هګيو لپاره وقال الدجاج غنم الفقرا من امتي والجمعة حج لها. وفي حديث آخر اتخذوا الغنم فانها برکة.

**تنبيه:** برکت د غنم دادی چې مېږه يا بزه په کال کې يو وار لنګېږي او هغه هم

غالباً يو بچی راوړي او په قصابو کې د ورځي په زرهاو ذبح کېږي او هيڅ کمی نه پکښې راځي بخلاف السباع مثلاً پشي هغه درې ځلور پينځه بچيان راوړي که څه هم څوک يې خوري نه ډېر نه ليدل کېږي په يوه کور کې يوه يا دوې پشيانې وي.

(۴) عليه الصلوة والسلام سل پسونه او اووه بزې درلودې چې ام ايمن به وريپولې.

(۵) خيل يعني آس. تاريخ وايي چې اول چې پر آس سپور سوی اسماعيل عليه السلام دی. د اسماعيل عليه السلام دمخه آسان وحشي وه خدای جل جلاله و اسماعيل عليه السلام ته مسخر کړل. وقصة تسخيرها لاسماعيل عليه السلام د سورت بقره په تفسير کې تېره سوه. وفي الحديث "اركبوا الخيل فانها ميراث ابيكم اسماعيل" او له انس خادم رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه روايت دی "لم يكن شيئ احب اليه بعد النسآ من الخيل" او عليه الصلوة والسلام پر اوو آسانو سپور سوی دی.

(۶) البغال جمع بغل وهو مركب من الفرس والحمار. په يوه روايت کې راغلي دي چې د بغل ترکيب د فرس او حمار څخه اول قارون کړی وهذا مردود ولي د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی چې د غاطرو تناسل ؤ لکن دوی اسرع د دواب وي چې لرګي او بوټي يې د نمرود اورته وړل چې د ابراهيم عليه السلام د سوځولو لپاره بلاوه، نو ابراهيم عليه السلام ښيرا ورته وکړه خدای جل جلاله يې نسل قطع کړی او دا خو يقيني خبره ده چې ابراهيم عليه السلام خو تر قارون موسی دمخه ؤ. د بغل په نوع کې صبر د حمار موجود دی او قوت د آس. تاريخ وايي چې بغال مراكب الملوک في اسفارهم او کښتي د مسکنانو په قطعاً کې د حاجاتو.

(۷) آنحضرت صلى الله عليه وسلم شپږ غاطرې په ټوله عمر کې درولې دي (۱) غاطره بغله شهباً يې بلل چې دلدل يې هم بالله چې مقوقس د مصر والي په هديه کې ورته را استولې وه يعني چې دمخه تر هرقل يې والي ؤ، عليه الصلوة والسلام پر دغه بغل په مدينه منوره کې او په سفرو کې پر سپرېدی، نو چې د ډېر عمر سول غاښونه يې ورژېدل، نو به يې وربشې ګرګره کړې خوړلې به يې وعاشت بعد النبي صلى الله عليه وسلم حتی چې حضرت عثمان رضي الله عنه هم پر دغه غاطره سپور سوی دی او

علي ﷺ له خوارجو سره پر دغه قچر جنگ کړی دی، او وروسته تر علي ﷺ دده زوی حسن ﷺ وروسته حسین ﷺ پر سپرېدی، وروسته بیا محمد بن الحنیفیة چي د علي ﷺ زوی ؤ وروسته تر وفات د فاطمې ﷺ له حنیفیه څخه.

**پوښتنه**: په کتب کي د ادابو د اهل الله راغلي دي چي تابع لکه شاګرد یا مرید د متبوع کالي نه اغوندي مګر صریح امر متبوع ورکړي ولا یرکب دابته الا باذنه ولا یجلس في مکانه الخاص، نو پوښتنه داده چي دغه اصحاب کرام ﷺ څرنګه د علیه الصلوة والسلام د سپرتیا پر غاطره سپرېدل بدون اجازة رسول الله ﷺ لانه علیه السلام توفی قبل ذالک؟

**ځواب**: ددوی سپرتیا لپاره د تبرک وه یعني پر دښمن فتح او ظفر پیدا کولو په توسط د قچر د علیه الصلوة والسلام ددې معنا داده چي دوی ببله غزواتو او وقائع نه پر سپرېدل.

(۲) بله غاطره د علیه الصلوة والسلام فضه یې بلل یعني لکه سپین زر داسي بر ښنېدل (۳) بله قچره یې ایلیه بلل (۴) بله قچره کسری ملک فارس ورته را استولې وه (۵) بله قچره د دومة الجندل څخه ورته راغلې وه (٦) بله قچره نجاشي ملک الحبشة ورته را استولې وه.

(۸) والحمیر: جمع حمار تاریخ وایي چي علیه الصلوة والسلام دوه خره درلودل، یو یې یعفور باله بل عفیر. علیه الصلوة والسلام وایي چي یعفور د علیه الصلوة والسلام ته د خیبر په غزا کي لاس ته ورغلی ؤ. راوي وایي چي علیه الصلوة والسلام چي وفات سو او خبر یې شائع سو. یعفور لکه لېوني خان یې وځاه ته واچاوه جزعاً علی فراق رسول الله ﷺ. او بلغاً وایي چي حمار ذلیل ترین د ومخلوق د خدای ﷻ دی کما قال الشاعر:

و لا یقیم علی ضیم یراد به ........ الا الاذلان عیر الحی والوقد
هذا علی الخسف مربوط برمته ........ و ذا یشبح فلا یرثی له احد

والمعنی صبر نه کوي پر ظلم چي مراد ددوی مګر نه دوه ذلیله شیان چي یو د کلي والاوو خر دی، او بل موږی دی د خر ذلت دادی چي دی یې ترلی وي په ذلت

سره په يو زاړه تناؤ سره، دې بېچاره ولاړ وي كه چا وانبه وغيره ورواچول كه نه او موږې چي خلگ يې يو ځاى تگوهي پر داسر سر يې وهي او د چا زړه نه پر سوځي.

**درويش وايي**: چي وهذا من بلاغات البلغا. په صحيح حديث كي راغلي دي من لبس الصوف" كه د وړيو ځيره كالي چا واغوستل او مېږه يې ولوشل او پر خرې سپور سو "فليس في جوفه يعني في قلبه شيئ من الكبر" نو په دې سړي سره هيڅ كبر نسته.

## وَيَخْلُقُ مَا لَا تَعْلَمُونَ ۝

او خداى (ﷻ) پيدا كوي هغه شيان چي تاسي علم نه پر لرئ، يعني په اسمانو او مځكو كي ډېر مخلوق سته چي تاسي علم نه پر لرئ، ومنها ما اعد للمؤمنين في الجنة وللكافرين في النار مالاعين رئت ولا اذن سمعت ولاخطر على قلب بشر.

## وَعَلَى اللّٰهِ قَصْدُ السَّبِيلِ وَمِنْهَا جَآئِرٌ

پر خداى (ﷻ) لازمه ده يعني ازروى تفضل والاحسان لا بالوجوب العقلي، ولي چي پر خداى ﷻ عقلاً هيڅ شى لازم نه دى خلافًا للمعتزلة دوى وايي چي اصلح للعبد پر خداى ﷻ واجب دى عقلاً والدلائل والجوابات لدلائل المعتزلة په شرح عقائد او شرح مقاصد للعلامة التفتازاني رحمه الله وگورئ ولا بالوجوب الشرعي لانه مختص بالمكلفين بيان د صراط مستقيم نو اضافت د قصد وسبيل ته اضافت د صفت و موصوف ته دى اى السبيل القصد يعني بالقصد متوسط بين الافراط والتفريط وهو الصراط المستقيم الموصل للحق.

**پوه سه**: چي په ترجمه كي فقير بيان لفظ راوړى اشاره ودې ته ده چي تر قصد دمخه مضاف محذوف دى وهو لفظ البيان. او مظهري رح وايي چي مراد له سبيل څخه جنس دى واضافة القصد اليه بمعنى من اى المستقيم من السبيل "ومنها جائر" او بعض له لارو څخه كږه وي د حق او استقامت.

**فائده**: قصد السبيل يوازي او يوازي دين د اسلام دى، او جائر تولې لارې د

كفر دي على اختلاف انواعها من الشرك والمجوسية والدهرية وغيرها وقصد السبيل في فرق من اهل اسلام چي درې اوويا (٧٣) طريقه د اهل اسنة والجماعة چي د ناجيه په مبارك نامه له مباركې خولې څخه د مبارك ذات ﷺ راوتلې ده بخلاف فرق اهل الاهوا من المعتزلة والكرامية والخوارج وغيرها، او د تصوف په باب كي قصد السبيل دادى چي نه عقل صرف وي لكه د حكماؤ او نه عشق صرف وي لكه د منصور.

**وَلَوْ شَآءَ لَهَدَىٰكُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٩﴾**

که د خدای (ﷻ) اراده وای هدایت به يې کړی وای يعني و قصد السبيل ته ستاسي د ټولو.

**يوه سه**: چي مفعول د "شا" محذوف دی لدلالة الجواب للشرط عليه، او مراد له هدايت څخه دلته دلالت موصله الى المطلوب مراد دی او له بيان څخه د قصد دلالت دی على ما يوصل الى المطلوب يعني ارائة الطريق وبالفارسية "راه نمائی" او په افغاني لارښوونه، وبالاردوية "سيدها راسته بتانا" لكن دا مشيت خدای پاک نه دی کړی لان مشيت الله تابعة للحكمة ولا حكمة في تلك المشية ولي چي مدار د تكليف او د ثواب او عقاب اختيار جزي د بندګانو دی كما في كتب العقائد والاصول والتفسير، حافظ شيرازي قدس سره وايي:

مكن بچشم حقارت ملامت من مست
كه نيست معصية وزهد بی مشيت او

**درويش وايي**: چي لار د اختيار د مكلف تر وېښته باريكه ده، نو ډېر بحث نه دی ښکنبې په کار.

**هُوَ الَّذِىٓ أَنزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً لَّكُم مِّنْهُ شَرَابٌ**

خدای (ﷻ) هغه ذات دی چي نازلې کړې يې دي له اسمان څخه يا له وريځي څخه اوبه چي تاسي لره له هغو اوبو څخه اوبه دي چي تاسي يې څښئ (نو شراب په معنی د مشروب دی)

**اعراب**: يوه سه! چي "لكم" متعلق دی په "انزل" پوري او يا خبر د شراب دی.

او كلمه د "من" تبعيضي ده او متعلق په "انزل" پوري ده، د تبعيض وجه يې داده چې ټولي اوبه د اسمان څو خلګ نه سي څيښلاى بعض حيوانات څيښي؛

**سوال**: "منه" يې تر شراب د مخه کړی دا څو حصر پيدا کوي او سره ددې چې موږ څو ګاهي د څاهانو ګاهي د چينو اوبه څيښو؟

**ځواب**: د څاهانو او د چينو اوبه څو هم د اسمان د باران اوبه دي لقوله تعالى "فسلک ينابيع في الارض" قوله تعالى "فاسكناه في الارض"

وَمِنْهُ شَجَرٌ فِيهِ تُسِيمُونَ ⑩

او له هغو څخه د اسمان اوبه دي د درختو او ژوند دى د نباتاتو چې په هغه شجر کي تاسي څروئ او پيايا ست مواشي خپل.

**درويش وايي**: چې ما په تفسير کي د ژوند د نباتاتو زيات کړی بدلالة الشجر عليه، نو دا سوال نه پيدا کېږي چې اوښان که څه هم له درختو څخه خوراک کولاى سي لکن مېږي او بزې څو درختو ته نه رسېږي چې خورک ځني وکړي بناً على ان الشجر ماله ساق وجه الدفع ظاهر.

يُنْبِتُ لَكُم بِهِ الزَّرْعَ وَالزَّيْتُونَ وَالنَّخِيلَ وَالْأَعْنَابَ وَمِن كُلِّ الثَّمَرَٰتِ

خداى پاک شنه کوي ستاسي د نفع لپاره په هغو اوبو د اسمان کښت که د غنمو وي که د شاليو وي او که د جوارو الى غير ذالک، او د زيتون درختي او د خورما درختي (نخيل جمع د نخلة ده) او انګور (يعني درختي د انګورو چې تاکان يې بولي) وجه التفسير ان الاعناب جمع عنب مېوې ته د انګور وايي درختي ته يې کرم وايي.

**نکته**: نخيل او اعناب يې جمع راوړه لكثرة اقسامها غاية الكثرة كما لايخفى على المتبع، او د ټولو مېوو څخه لکه انار، اينځر، سېب، شفتالو، کېلې، ببرې، شليل الى غير ذالک من الثمرات.

**فائده**: من تبعيضي يې راوړی، ولي چې ټولې مېوې څو په جنت کي دي او په دنيا کي بعض دي على طريقة مشت نمونه خوار، وورد في الحديث چې په جنت کي ما لاعين رئت ولا اذن سمعت ولاخطر على قلب بشر.

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ⑪

په تحقيق په مذكوره اشياؤ كي دليل واضح دی پر وجود د صانع او پر قدرت او علم او حكمت دده. چونكه مراد له آيت څخه جنس دی چي قليل او كثير ته شامل دی. نو دا سوال نه پيدا كېږي چي په مذكوره شيانو كي خو ډېر حجج او دلائل سته. نو آيات ولي وه نه ويل سو؟ لكن دا دلائل د هغه چا لپاره چي په مصنوعاتو كي د خداى پاک فكر ووهي..... سعدي رحمه الله وايي:

برگ درختان در نظر هوشيار ..... هر ورقی دفتريست معرفت كردگار

**فائده:** يو څوک چي فكر ووهي چي يو تخم دانه چي په لنده مځكه كي واقع سي او لندوالی د مځكي دې ته ورسېږي، نو دا تخم لوړي خوا ته چاک پيدا كړي او تر هغه چاک د درختي يا د نبات تنه پيدا سي او كښته هم دا تخم وچوي او له هغه څخه ريښې د درختي يا د نبات پيدا سي بيا يې نما شروع سي، نو بلگونه او گلان او مېوې په بعضې زمانو كي دون بعض، او د هرې درختي خپل شكل سته له بلې درختي څخه جلا او د هري درختي مېوه خپل شكل او خوند او بوى وي، او سره ددې چي ماده او اصل د ټولو مځكه او اوبه دي ليس الا، او نسبت د اسباب علويه لكه لمر او سپوږمی، او ستوري وه ټولو سفلياتو ته برابر دی، فمن اين جائت الاختلاف المذكورة آنفًا فليس تلک الاختلافات الا من صانع خالق قادر يفعل مايشاءُ ويخلق مايريد بقدرته واختياره وعلمه وحكمته لاشريک له ولا منازع في خلقه.

**درويش وايي!** وهذا نبذ قليل في تفسير قوله تعالى "ان في ذالک الآية"

**فوائد شتى:** (١) شجرة په عرف عام كي هغه نبات ته وايي چي ساق لري او پر ساق ولاړ وي. نو بنا پر دې د مځكي وابنه او يا نبات د هندوانو، ختكيانو، بادرنگو وغير ذالک ته شجر نه واى. نو ځكه ما د منه شجر سره نباتات زيات كړه او تفسير خازن په ص (٦٨) له ابو اسحاق رحمه الله څخه روايت كړی دی "كل ما ينبت على وجه الارض فهو شجر" او دا شعر يې شاهد گرځولی دی:

نطعمها اللبن اذا عز الشجر

"موږ شیدي ورکوو آسانو ته چي مځکه له نباتاتو څخه خالي سي" نو په دغه شعر کي اطلاق د شجر پر ټولو نباتاتو وسو. ولي که له شجر څخه ماله ساق مراد وای، نو ددې په خالي والي فقط اسانو ته د شیدو د ورکړي ضرورت نسته لوجود النباتات بدون الشجر فافهم.

**درویش وایي**: چي پر تقدیر د خازن د منقول تفسیر د شجر و زیادت ته د: ما قلنا ضرورت نسته کما لا یخفی.

(۲) پوه سه! چي خدای پاک په بیان کي د حیواناتو تفصیل او اجمال وکړی دغه رنګه په ذکر کي غذائي مواد او مېوو تفصیل او اجمال راوړی نو شروع یې له زرع څخه وکړه چي دانو ته د غنمو، اربشو، جوارو، ورجو الحاصل چي قوت او غذا د انسانانو وي، ولي په دې غذائي شیانو قوام او ژوند د انسان مربوط دی، وروسته یې زیتون ذکر کړه، ولي چي د زیتون غوړي هم نان خورش دی او هم برکت دی د اعضا لکه سر وغیره د زیتون په تېلو غوړول فائده ورته کوي، دریېم وار یې نخیل ذکر کړی، ولي چي خورما هم لذیذه غذا ده هم فاکهه ده، په بخاري شریف کي د سیدتنا ام المومنین عائشه ﷺ څخه روایت دی، دا وایي چي پر موږ د آنحضرت ﷺ په حیوة کي داسي وخت راغلی دی چي موږ به درې هلاله یعني د اول سر میاشت ولیدلې چي دوې میاشتي به پوره سوې د علیه الصلوة والسلام په یوه کور کي اور نه دی بل سوی، نو راوي پوښتنه څني وکړه چي نو چي اور نه سي بل نو ټوله مطعومات من الخبز واللحم وغیر ذالک خو په اور پوري مربوط دي، نو داسي دا دوې میاشتي څه شي خوړل؟ دې مبارکې ورته وویل زموږ غذا "الاسودان، الما والتمر او کما قال" او پر ذکر د اعنابو یې ختم کړی لانها متشابهة للنخلة في المنفعة من التفکة والغذا الجید لبدن الانسان وروسته خدای ﷻ ذکر د ټولو مېوو وکړی اجمالاً بقوله ومن کل الثمرات تنبیهاً علی عظیم قدرته وامتنانه علی عباده.

وَسَخَّرَ لَكُمُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ ۙ وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ؕ

او خدای (ﷻ) مسخر ګرځولي دي ستاسي د نفع لپاره شپه او ورځ چي په

شپه کې ارام او راحت وکړئ او د ورځې کسب یا تجارت وغیره وکړئ، او لمر او سپوږمۍ یې مسخر ګرځولي دي چې د لمر په رفتار سره څلور فصله پسرلی، دوبی، منی او ژمی پر تاسي راځي، او د سپوږمۍ په رفتار سره ستاسي بعض دیني امور مربوط دي لکه روژه، حج وغیرهما.

وَالنُّجُومُ مُسَخَّرَٰتُۢ بِأَمۡرِهِۦٓۚ

او ستوري مسخر دي ستاسي د نفع لپاره په اراده د خدای (ﷻ).

**پوه سه:** چې "نجوم" مبتدأ ده او "مسخرات" یې خبر دی.

**درویش وایي:** چې د ستورو فائده داده چې په سفر کې بحر و بر و خلګو ته معلومېږي، او ستوري د مېوو په کار کې لویه ونډه لري، شیخ سعد رح وایي:

آبر وباد ومه وخورشید و فلک د ر کارند
تاتو نانی بکف آری وبغفلت نخو ری
همه از بهر تو سر گشته و فرمان بردار
شرط انصاف نباشد که تو فرمان نه بری

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَٰتٖ لِّقَوۡمٖ يَعۡقِلُونَ ۝١٢

په تحقیق په دغو مذکوره شیانو کې بالاجمال والتفصیل ډېر دلائل دي د وجود د صانع او د توحید او د قدرت کامله د هغه قوم لپاره چې له عقل سلیم څخه کار اخلي، په صحیح حدیث کې راغلي دي چې د علیه الصلوة والسلام څخه چا پوښتنه وکړه "من احسن الناس عقلاً؟ قال علیه الصلوة والسلام المسارع لمرضات الله والمجتنب عن محارم الله" هغه څوک ښه عقل لرونکی دی چې تلوار کونکی وي و هغو کارو ته چې خدای ﷻ په راضي کېږي، او پرهېز کونکی وي د هغو عملو څخه چې خدای ﷻ حرام کړي دي.

**پوه سه:** چې اهل علم له حکماؤ څخه د اسلام وایي چې عقل یو جوهر مضئ دی خلقه الله في الدماغ وجعل نوره في القلب، چې ادراک د غائبو شیانو په وسائطو سره کالحدس وترتیب المقدمات او د محسوساتو المشاهدة.

**درویش وایي:** چي په دې آیت کي رد دی پر فلاسفه وو چي دوی وایي چي موثر په تکوین کي د نباتاتو حرکات د ستورو دي، وجه ذالک چي که موږ دا هم ومنو مګر تحقیق دادی چي تاثیرات د امورو د افلاکو او د عناصرو مبني پر عادت الهي چي بعض اشیاً وروسته تر بعض اشیاؤ پیدا کوي کالشبع بعد اکل الغذاً والری بعد شرب الماً مثلاً، لکن نسبت د ایجاد او خلق و دغو شیانو ته نه دی صحیح ولي چي ممکنات ټوله معدوم في ذاتها تحتاج الی الموجد فکیف تقتضي وجود غیره کما لا یخفی.

## وَمَا ذَرَأَ لَكُمْ فِي الْأَرْضِ مُخْتَلِفًا أَلْوَانُهُ

هغه چي خدای (ﷻ) پیدا کړي دي ستاسي لپاره په مځکه کي یعني حیوانات یا د خورک لپاره فقط لکه پسونه وغیره او یا د بار لپاره فقط لکه غاطره، خر وغیر ذالک، او یا د بار او خوراک دواړو لپاره لکه اوښ او غویی، او نباتات یا ستاسي د خورک لپاره یا ستاسي د حیواناتو لپاره. او معدنیات د زېوراتو او نورو فائدو لپاره.

**پوه سه:** چي کلمه د "ما" عطف ده پر "اللیل" باندي ای سخر لکم ما ذرء او "مختلفاً" حال دی له ضمیر مستتر څخه په "ذرء" کي.

**درویش وایي:** چي چونکه تفاوت د رنګو ظاهر و، نو ځکه یې په "الوانه" روایه، که څه هم ما ذرء في الارض نوري خواصي هم سره مختلفي لري کالطعم والصغر والکبر الی غیرها من التفاوت، ولهذا فسر الوانه باضافه، وفي بحر العلوم مختلفاً الوانه ای هیئاته من خضرة وبیاض وحمرة وسواد وغیر ذالک.

**حکمت:** د خدای ﷻ حکمت په دې اختلاف کي دادی چي له هره صنفه چي د سړي زړه وغواړي خورک وکړي.

## إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّقَوْمٍ يَذَّكَّرُونَ ﴿١٣﴾

په تحقیق په دغه اختلاف الالوان کي حتماً یو دلیل او حجت سته پر صنع د صانع حکیم د هغه قوم لپاره چي پند اخلي والاصل یتذکرون.



Scanned by CamScanner

## وَهُوَ الَّذِي سَخَّرَ الْبَحْرَ لِتَأْكُلُوا مِنْهُ لَحْمًا طَرِيًّا

او خدای ﷻ هغه ذات دی چي مسخر یې گرځولی دی دریاب چي خلگ نفع پر اخلي په سپرتیا سره د کښتیو او په غوټه خوړلو کي لپاره د اخراج د لولوء والمرجان وغير ذالک کالتجارة. چي تاسي وخورئ له دریاب څخه غوښي تازه چي مراد ځني غوښې د ماهیانو دي. بعض مفسرين وايي چي د طراوة مقصد دادی چي چونکه ارطب د ټولو انواعو څخه د غوښو غوښي د ماهي دي، نو باید سرې یې ژر وخوري تاچي فاسدې نه سي لان الرطب يتسارع اليه الفساد باتفاق الاطبا.

**پوښتنه**: د ماهي د غوښو تر خوړلو وروسته ولي سړی ژر تږی کېږي؟

**ځواب**: اطبأ وايي چي طبع د ماهي د غوښو داده چي په کولمو پوري مبتلي، نو طبعيت انساني لپاره د دفع د هغه الصاق تطلب الماً.

**حکمت**: د خدای ﷻ حکمت او قدرت دی چي شيريني غوښي د ماهي سره ددې چي ماهيان على الاغلب پر ترخو غليظو اوبو کي پيدا کېږي، او بعض مفسرين وايي چي د طراوة مقصد دادی چي د ماهي غوښي به وچوي نه. ولي چي طبيبان پر دې متفق دي چي اضر د غوښو قديد د ماهي د غوښو دي، ودلت عليه التجربة ايضاً. په حيوة الحيوان کي وايي المذهب المفتي به حل جميع الحيوانات التي في البحر الا السرطان والضفدع والتمساح يعني چنګاښ او چونګوښه او واګو على اى صورة كان. وفي الحديث اكل السمک يذهب بالحسد.

## وَتَسْتَخْرِجُوا مِنْهُ حِلْيَةً تَلْبَسُونَهَا

او تاسي راوباسئ له درياب څخه زېور لکه ملغلرې او مرجان چي تاسي واغوندئ يعني په ځان پوري يې وځړوئ.

**سوال**: مخاطب خو نر دي! او نران خو په ځان پوري زېور نه ځړوي؟

**ځواب**: مراد دادی لتلبسوا نسائكم يا په حذف د مضاف يا په اسناد د مجازي لان النسا من جملة الرجال، او بل دا سبب دی چي ښځي چي په ځان پوري زېور ځړوي مرو ته ځان ښائسته کوي فاسند فعلهن اليهم مجازاً.

## وَتَرَى الْفُلْكَ

او ته وینې (ای مخاطب غیر معینه) کښتیانې.

**پوه سه**: چې لفظ د "فلک" هم جمع راځي هم مفرد فرق یې اعتباري دی که مفرد وي ضمه د فا یې لکه ضمه د "قفل" چي مفر دی. او که جمع وي ضمه د فا یې لکه ضمه د "اسد" چي جمع د اسد دی، والقرینة علی الافراد والجمعیة یه مسند یا صفت سره لکه دلته مواخر ورته مسند کړی چي صیغه د جمع ده.

**فائده**: "وتری" عطف دی پر "لتاکلوا" عطفاً بالمعنی لان المعنی ە ولترکبوا الفلک.

## مَوَاخِرَ فِيهِ وَلِتَبْتَغُوا مِنْ فَضْلِهِ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿١٤﴾

یعني جاري په درياب کي وقال قتاده رح مقبلة ومدبرة تجریان بریح واحدة. وقال الحسن رح مملوة وقال الاخفش والفرا رح تشق الما والمخر شق الما "ولتبتغوا آه" معطوف علی قوله لتاکلوا" او چي تاسي طلب وکړئ د رزق د خدای ﷻ په واسطه د سفر په کښتیو کي لپاره د تجارت، او شاید تاسي به شکر د خدای ﷻ وواياست چي تاسي ته یې درياب مسخر کړی دی چي تاسي په رکوب في البحر د کښتیو په ذريعه طلب د رزق د خدای ﷻ وکړی بالتجارة.

علما وایي چي تجارت د بحر ګټور دی تر تجارت د بر. او دې ته اشاره کړي ده شیخ سعدي قدس سره په دې قول سره:

سود دریا خوش بودی گر نبودی بیم موج
صحبت گل نیک بودی گر نیستی تشویش خار

**مسئله**: فقها رحمهم الله وایي رکوب د بحر روا دی بشرط علم السباحة (یعني آب بازي یعني که چېري کښتی ته خطره پېښه سي راکب به په ذريعه د آب بازی ځان ته نجات ورکړي) وعدم دوران الراس "او چي سر یې نه پرله ګرځي "والا فقد القی نفسه الی التهلکة" یعني که دا دوه شرطه نه وي. نو ځان یې وهلاک ته پېش کړی. کریمه "ولاتلقوا بایدیکم الی التهلکة" وکره رکوب النسا لان مبني حالهن علی الستر وهذا متعسر في السفینة، وهذا مذهب الجمهور انتهی.

**درویش وايي:** چي دا شرطونه په ښځوانيو کښتيو کي ؤ، اوس هغه کښتي په دریابو کي شاذ او نادر دي اوس آب کوټ په دریابو کي چلېږي چي په هغو کي د ښځو ځای جلا دی له نرو څخه او دوران الرأس يې غالبًا نسته او نه په ادا کي د فرائضو لکه لمونځ نقصان راځي بلکې لمونځ په ولاړي په رکوع او سجده سره کېدای سي او خطر يې هم کم دی الا ماشاء الله تعالی.

**درویش وايي:** چي په لعلکم تشکرون کي اشاره ودې ته ده چي شکر اقوی عبادت دی وروسته تر انعام د خدای ﷻ کریمه "ولئن شکرتم لازیدنکم" او شکر لکه چي سبب د زيادت د نعمت دی سبب د ثواب جزيل په اخرت کي هم دی، نو مؤمن باید همېشه شاکر وي، ولي چي بنده مسلمان په هیڅ حال د نعم الهيه متکاثره څخه د خدای ﷻ خالي نه دی واعلی نعم الله تعالی الاسلام ثم القرآن، کریمه "ولئن تعدوا نعمت الله لاتحصوها"

وَأَلْقَىٰ فِي الْأَرْضِ رَوَاسِيَ أَن تَمِيدَ بِكُمْ

او اچولي دي خدای پاک پر مځکه، نو کلمه د "في" په معنی د "علی" ده غرونه محکمه پر ځای ثابت "رواسي" جمع د راسية ده په معنی د ثابتة.

**پوه سه:** چي ميد اضطراب ته وايي تو له مفسرين په اتفاق دا وايي چي عبارت قرآني يا په حذف د مضاف دی ای کراهة ان تميد وتتحرک بهم او يا په حذف د لام جاره او لا نافيه ده والتقدير لئلا تميد بهم، والحاصل چي مځکه کانت کروية تتحرک بادنی سبب للتحريک، نو چي خدای ﷻ ددې پر مخ غرونه پيدا کړه غرونه په سبب د ثقل خپل مائل و مرکز عالم ته سول او مځکه پر ځای ودرېدله، کذا قال المظهري رحمه الله في تفسيره، نو غرونه په مثال د موږیو د مځکي دي.

**فائده:** حکماً وايي چي لوی لوی غرونه پر ربع مسکون کي د مځکي (۶۶۷۳) غرونه دي، او کوچني غرونه چي په عربي يې تلول بولي په دې کي نه دي حساب والله اعلم بالصواب.

وَأَنْهَارًا وَسُبُلًا لَّعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴿١٥﴾

او خدای ﷻ پیدا کړي دي په مځکه کي رودونه.

**درویش وایي**: چي د پښتنو په عرف کي "انهاراً" ویالو ته وایي چي د وطن اوبه خوره خندي کوي. لکن په عرف کي د عربو او د قرآن کریم دا کوچنی ویالو ته جداول وایي او "انهار" لویو رودو ته وایي لکه رود نیل د مصر، فرات، دجله د هلمند رود وغیرها "وسبلاً" او لاري یې پیدا کړي دي په دښتو کي او په غرو کي چي ددې لارو په سبب خلګ و خپلو مقاصدو ته د تجارت وطلب الرزق ورسېږي.

**پوه سه**: چي "لعل" په معنی د لام دی یعني ددې لپاره چي د دغو قدرتي شیانو چي ذکر سول و معرفت د خالق مقتدر لار پیدا کړي یعني دغه شیان به دلائل د وجود د صانع او د قدرت دده او د علم او حکمت دده وګرځوي.

## وَعَلٰمٰتٍ

او خدای (ﷻ) پیدا کړي دي علامې د لارو لکه غرونه، درختي، ستوري یا بناوي چي په هغو سره قافله وال دلاري درک معلوموولای سي.

**پوه سه**: چي له دې قسمه څخه د اسبابو د امور شرعیه وو کالاوقات الخمسة للصلوة الخمس وشهر رمضان لوجوب الصوم والمال النامي مع حولان الحول لوجوب الزکوٰة وغیر ذالک والسکر في الخمر لحرمة الخمر الی غیر ذالک ومثل ذالک العالم علی الصانع، والمعجزة علی النبوة وسرعة النبض علی الحمی وامثال ذالک کثیرة معلومة.

## وَبِالنَّجْمِ هُمْ يَهْتَدُوْنَ ﴿١٦﴾

او په ستورو سره (نو مراد له ستوري څخه معنا جنس ده چي ډېرو ته هم شامل ده وهو المراد ه) یعني په ستورو سره خلګ لار پیدا کوي د شپې، او بعض مفسرین وایي چي غرونه علامات النهار دی او ستوري علامات اللیل دی، مظهري وایي چي ضمیر د "یهتدون" راجع دی و قریشو ته لانهم کثیراً ماکانوا یسافرون للتجارة باللیل للتجارة، ولي چي بلاد ددوی ډېر ګرم دي او د ورځي سفر یې سخت دی او قریش مشهور وه په لار پیدا کېدلو کي په ستورو سره په خپلو سفرو کي.

**درویش وایي**: چي ضمیر راجع کول و قریشو ته بېله ذکر ددوی قبلاً اضمار قبل الذکر دی بلکي سیاق د آیاتو سابقه وو عام دی، نو تعمیم د انسب دی.

عمر بن الخطاب ﷺ وایي تعلموا من النجوم ماتهتدون به في طرقکم وقبلتکم ثم کفوا یعني نور تعمق مه پکښې کوه لکه نجوم گران چي د مغیباتو خبرونه له ستورو څخه معلوموي "وتعلموا من الانساب ما تصلون به ارحامکم" بعض سلف وایي چي علوم څلور دي (۱) الفقة للادیان.

**درویش وایي:** چي مراد له فقهي څخه معنی عامه ده چي متعارف فقه او عقائدو دواړو ته شامل ده لان تخصیص الفقه بالمتعارف مستحدث وفي الزمان القدیم یقال للفقه المتعارف الفقه الاصغر وللعقائد الفقه الاکبر، او له هم دې جهته څخه امام اعظم رحمه الله خپل کتاب چي په عقائدو کي یې تصنیف کړی دی په فقه اکبر مسمی کړی دی، نو دا سوال نه واردېږي چي فقه خو یوازې د ادیانو لپاره کافي نه ده بل لابد من العقائد ایضاً فتأمل.

(۲) والطب للابدان یعني علم طب زدکړه غواړي لپاره د حفظ صحت موجوده او لپاره د بیرته راگرځولو د صحت زائله (۳) و علم النجوم للازمان یعني علم نجوم دومره دومره قدر زدکړه غواړي چي سړی د میاشتو او د کلو حساب په وکړای سي (۴) علم النحو للسان او علم نحو زدکړه غواړي چي سړی عربي ژبه په زده کړي او په اعراب او بناً او په احکامو د اسم او فعل او حرف وغیر ذالک وپوهېږي حتی یکون وسیلة الی علم القرآن الکریم والآحادیث الشریفة.

أَفَمَن يَخْلُقُ كَمَن لَّا يَخْلُقُ ۗ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿١٧﴾

آیا کېدای سي هغه څوک چي خلق کولای سي یعني د مخلوق وهو الله الخالق لکه هغه څوک چي خلق نسي کولای چي بتان دي یعني په استحقاق کي د عبادت، نو دا آیت رد دی پر مشرکینو چي دوی خپل بتان هم د عبادت مستحق گڼله. آیا تاسي ایها المشرکون پند د توحید د مستحق العبادة نه اخلئ چي شرک پرېږدئ او لا اله الا الله ته غاړه کېښېږدئ وروسته تر دې چي دلائل او حجج او بینات د توحید مو واورېدل.

**سوال:** په نحو کي وایي چي کلمه د "من" د ذوی العلم لپاره ده، نو په دې قانون سره خو من یخلق صحیح دی. ولې خدای ﷻ ځني مراد دی چي ذی العلم

دی لکن من لا یخلق څرنګه صحیح کېږي، ولې چې مراد ځني بتان دي چې ذی علم نه دي؟

**ځواب**: درویش وایي: چې ددې سوال څو ځوابه دي (۱) الو العلم ته یې تغلیب ورکړی پر غیر الو العلم نو په هغو کې یې کلمه د من استعمال کړې ده والتغلیب باب واسع في العربي، کالابوین للاب والام. والقمرین للشمس والقمر وغیر ذالک (۲) اطلاق د کلمه "من" پر بتانو بنا پر زعم ددوی ده چې دوی بتان آلهه بلل ولابد للمعبود من العلم بمن یعبده بل للعلم بکل شيئ (۳) اطلاق د کلمه "من" پر بتانو مشاکلة ده کما قالوا في قوله تعالی صبغة الله ومن احسن من الله صبغة (۴) او یا په دې کې مبالغه ده په رد کې د مشرکانو چې د بتانو عبادت یې کاوه چې نه یې خلق کولای سوای او نه یې علم پر شي درلودی، نو حاصل د معنی د آیت پر دې تقدیر ده "افمن یخلق کمن لایخلق من اولی العلم فکیف حال من لا یخلق ولا یعلم وهو الاصنام.

**پوه سه**: چې همزه لپاره د انکار دی او کلمه د فا لپاره د تعقیب ده یعنې وروسته تر دې چې تاسي دلائل واضحه تکاثره پر کمال د قدرت او د علم او د حکمت د خدای ﷻ واورېدل او دا مو هم واورېدل چې خدای ﷻ خالق متفرد بالخلق دی لا معنی للاشراک لمن لایقدر علی خلق شيئ من الاشیا بل لا یقدر علی منع الذباب عن وجهه کریمه "وان یسلبهم الذباب شیئًا لا یستنقذوه"

**پوه سه**: چې بت پرستانو به په خپلو خدایانو پورې ددوی په زعم خوشبوی عطر موښل، نو موچان چې به پر راتول سول هغه خوشبوی روغن به یې ځني تولول فمعنی الکریمة که ددې بتانو چې مشرکان یې خدایان بولي حمله کړي مچ بو شی دوی یې نسي ځني اخستلای بیرته.

وَإِن تَعُدُّوا نِعْمَةَ اللَّهِ لَا تُحْصُوهَا

که تاسي شمېرئ نعمت د خدای (ﷻ) تاسي یې توان د ضبط او حصر نه لرئ فضلاً تر دې چې تاسي یې شکر ادا کړئ. ولې چې نعمتونه د خدای ﷻ حصر نه دي په ماذکره تعالی بلکې غیر متناهي دي في العدد للعبد.

**فائده**: لـه دې آيت څخه مقصد دادی چې مطلوب د بندګانو شکر د ټولو نعمتو د خدای نه دی لان هذا الشکر غیر مقدور لهم بلکې مقصود دادی چې په محبت او په ټولو اعضاؤ متوجه و خدای ﷻ ته سئ او په خپل عجز اقرار وکړئ.

**إِنَّ اللَّهَ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٨﴾**

په تحقیق خدای ﷻ بخښونکی د تقصیر ستاسي دی او مهربان دی چې په سبب د تقصیر او معاصیو قطع د نعمت در څخه ونه کړي او عذاب پر ناشکری في الحاله درنه کړي....... سعدي رحمه الله.

عطایست هر مو ازو برتنم ........ چه ګونه به هر مویی شکر کنم

ولنعم ماقیل:

لو عشت الف عام في سجدة لربی .... شکراً لفضل یوم لم اقض استظهار

عاصیان از ګناه توبه کنند .... عارفان از عبادت استغفار

ولذا ورد لا احصی ثناً علیک انت کما اثنیت علی نفسک. او سید د طائفه د عارفانو بایزید بسطامي قدس سره وایي:

چار چیز اورده ام شاها که در ګنج تو نیست

عاجزی و مسکینی فقر و ګناه اورده ام

**وَاللَّهُ يَعْلَمُ مَا تُسِرُّونَ وَمَا تُعْلِنُونَ ﴿١٩﴾**

خدای ﷻ خبر دی په هغو عملو او عقائدو ستاسي چې تاسي يې پټ ساتئ من القصور عن اداً الشکر والغفلة والکبر، او تاسي يې ښکاره کوئ من الاعمال الصالحة والفاسدة یعني فیجازیکم ان خیراً فخیر وان شراً فشر.

**فائده**: کلمه د ما په دواړه ځایه کي موصوله دی او عائد يې محذوف دی ای ماتسرونه وما تعلنونه.

**وَالَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ لَا يَخْلُقُونَ شَيْئًا وَهُمْ يُخْلَقُونَ ﴿٢٠﴾**

او هغه شیان چې مشرکان يې عبادت کوي او الهه يې بولي، ماسوی له خدای ﷻ څخه. نه سي پیدا کولای یو حقیر د شیانو لکه مېږی او غوماشه فضلاً عن

الجواهر والاعراض، او چېري ممکن دی شرکت ددوی د خدايانو په خلق کي د آسمانو او مځکو فکيف يدعونها الهةً وشركاً لله تعالى. او ددوی بتان مخلوق دي.

**بوه سه**: چي عاصم او يعقوب رح له قرآ سبعه وو څخه "يدعون" په يا د غيبت وايي. او باقي قرآ يې په تا د خطاب وايي.

## اَمۡوَاتٌ غَيۡرُ اَحۡيَآءٍ ۚ وَمَا يَشۡعُرُوۡنَ ۙ اَيَّانَ يُبۡعَثُوۡنَ ﴿۲۱﴾

"اموات آه" خبر د مبتدا محذوفي دی ای هم اموات نو معنى د اموات داده چي دغه بتان جمادات دي او حيوة دوی ته ورغلی نه دی. نو دا معبودان بتان اخس منزلةً دی تر عابدانو ددوی فكيف يكونوا آلهة. او دا بتان نه دي خبر چي کله بعث کېږي دوی يعني جمع کېږي او ددوی عابدان. ولي چي دا بعث نه ددوی په اختيار کي دی او نه يې په دائره کي د علم ددوی دی بل هو في اختيار الخالق جل مجده في دائرة علمه المحيط بكل ذرةٍ من ذرات العالم.

## اِلٰـهُكُمۡ اِلٰـهٌ وَّاحِدٌ ۚ

معبود بالحق ستاسي خدای ﷻ دی يو.

**سوال**: دا دعوه د وحدانيت د معبود بالحق خو دمخه هم تېره سوې ده فما الفائدة في الاعادة؟

**ځواب**: هو! دا تکرير د مدعى دی بعد اقامة الحجة وهو معمول لاهل المعقول لاينكره احد كقولهم العالم حادث لانه متغير وكل متغير حادث فالعالم حادث.

## فَالَّذِيۡنَ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ بِالۡاٰخِرَةِ قُلُوۡبُهُمۡ مُّنۡكِرَةٌ وَّهُمۡ مُّسۡتَكۡبِرُوۡنَ ﴿۲۲﴾

پس هغه کسان چي ايمان پر آخرت نه لري يعني بعث بعد الموت زړونه ددوی منکر دي له هغه نعمتو څخه د خدای ﷻ چي دوی ته يې ورکړی دی چي حساب يې نه کېږي او سره د ظهور د هغو نعمتو د خدای ﷻ بالبداهة والبرهان کمامر. ولي په زړو کي ددوی نور د مغفرت الهي نسته چي شکر ددې نعمتو ووايي او ايمان راوړي "وهم مستكبرون" او دوی تکبر کوي له عبادت څخه د خدای ﷻ بالتوحيد نه مني بلکې بتان هم ورسره شريک بولي په عبادت کي او

نعم الهيه د خداى ﷻ رحمت او فضل نه بولي بلکې خپل ځانونه مستحق بولي، او له اتباع څخه د رسول د خداى هم انکار کوي او د قرآن مبارک من عند الله بللو څخه هم انکار کوي او وايي "لو لا انزل هذا القرآن على رجل من القريتين عظيم" او وايي لو نشا لقلنا مثل هذا.

لَا جَرَمَ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعْلِنُونَ

"لاجرم" درويش وايي: چي په فارسي ددې لفظ ترجمه داده هر آئينه راست است او په عربي يې ترجمه داده لابد او لامحالة او حقًا او په پښتو يې ترجمه داده چي رشتيا ده دا وروسته خبره يعني چي په تحقيق خداى ﷻ خبر دى په هغو عملو ددوى چي دوى يې پټ ساتلي دي چي انکار د نعمتو د خداى ﷻ دي او استحقاق د عبادت دى بالتوحيد او چي ښکاره او برملا وايي چي استکبار د عبادت دى او اتباع الرسول.

**فائده:** ابو البقآ الکفوي رح په اعراب القرآن کي وايي چي په لاجرم کي څلور قوله دي (۱) لانفي اورد د کلام ماضي دى اى ليس الامر کما زعم الکفار من ان محمد ﷺ ليس برسول وان القرآن ليس بکتاب الله وامثال ذالک وجرم فعل ماض بمعنى کتب وفاعله مستتر فيه راجع الى الله ومابعده يعني ان الله الآية في موضع النصب على انه مفعول به لجرم. فالمعنى خبره داغه سي نه ده لکه مشرکان چي وايي خداى ﷻ دا ليکلې ده چي ان الله الآية (۲) په لاجرم دوې کلمې سره مرکب سوى په ترکيب امتزاجي معنا يې حق حقًا ده او مابعد يې په محل کي رفع دى چي فاعل د حق دى (۳) معنا يې لامحالة ده او مابعد يې يا مرفوع يا منصوب دى يا مجرور فتفکر فيه (۴) د لاجرم معنى په لامنع وروسته په تقدير د من مجرور محلاً دى والتقدير لا منع من ان الله يعلم الآية، او روح المعاني قريب و قول ته د ابو البقآ رح بيان کړى دى.

إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُسْتَكْبِرِينَ ۝

په تحقيق د خداى ﷻ نه دي خوښ متکبر کسان يعني مبغوض به دي، مسلم د ابن مسعود رضي الله عنه روايت کړى دى قال قال رسول الله ﷺ "لايدخل الجنة من کان في قلبه مثقال ذرة من کبر ولا يدخل النار من کان في قلبه مثقال ذرة من ايمان"

يعني اهل د مثال ذرة من "من ايمان" اى من اهل ايمان والمراد التابيد في النار لما ثبت في الاحاديث الصحيحة من دخول بعض عصات المؤمنين النار.

وَإِذَا قِيلَ لَهُم

چي وه به ويل سول و دغو كسانو ته چي پر آخرت به يې ايمان نه درلودى او عليه الصلوة والسلام يې نبي نه باله او قرآن مبارك يې كتاب الله نه باله.

**پوه سه:** چي خبر د نبوت د محمد ﷺ چي په اقوامو كي د عربو چي له مكې څخه به خارج وه شائع سو، نو اقوامو مذكوره وو خپل يو وفد يعني هيئت به يې په موسم كي د حج مكې مكرمې ته را استاوه چي معلومات ددې مدعي د نبوت او دده د قرآن حال راوړي، د مكې گمراهانو كافرانو قريشو به په موسم كي د حج پر تولو هغه لارو چي خلگ يعني اطرافي به له هغو لارو څخه به مكې ته داخليدل خپل نفر يې كښېنولي وه. نو اطرافي خلگ چي به مكې ته لا نه وه داخل سوي، نو د لاري كښېنستو نفرو څخه به يې پوښتنه وكړه.

مَّاذَا أَنزَلَ رَبُّكُمْ قَالُوا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴿٢٤﴾

څه شى نازل كړى رب ستاسي يعني پر دغه مدعى النبوة، پوه سه! چي "اساطير" جمع د "اسطر" اسطر جمع د "سطور" ده اخبار كاذبه ته وايي والمعنى د لارې مشركانو د مكې به ورته وويل چي دا د پخوانيو خلگو د دروا غو قصې دي يعني من عندالله شى نه دى، نو مقصد يې دا و چي نه محمد ﷺ رسول من عندالله دى او نه يې قرآن صادق من عندالله دى تاچي روزانه د عليه الصلوة والسلام سره ملاقات ونه كړي او ايمان رانه وړي.

لِيَحْمِلُوا أَوْزَارَهُمْ كَامِلَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَمِنْ أَوْزَارِ الَّذِينَ يُضِلُّونَهُم

**پوه سه:** چي لام متعلق دى په "قالوا" پوري يعني دا خبره ذوى ددې لپاره ورته كول چي ذوى پر ځان بار كړي گنهونه د ضلال د خپلو ځانو پوره او كامل په ورځ د قيامت، او بعض گنهونه د هغو كسانو چي ذوى يعني اهل مكه به يې گمراه كول هغه كسان.

**فائده**: من تبعيضي يې راوړی له دې سببه چې بعض ګنهونه د هغو خپل شخصي ګنهونه وه چې په اهل مکه پوري يې کار نه درلودی د هغو ګنهو خو اهل مکه متحمل نه دي بلکې دوی متحمل د اضلال د هغو خلګو دي.

**پوه سه**: چې مسلم په خپل صحيح کې او اصحابو د سنن اربعه و يعني ترمذي ابن ماجه، ابو داؤد او نسائي په خپلو کتابو کې له حضرت ابو هريره ﷺ څخه روايت کړی دی چې رسول الله ﷺ وويل "من دعى الى هدى كان له من الاجر مثل اجور من تبعه لا ينقص ذالک من اثامهم شيئاً.

## بِغَيۡرِ عِلۡمٍ

يعنې بېله حجت او دليله. نو دا حال دی له فاعل څخه د "يضلونهم" اى متلبسين هؤلاً المضلين بعدم العلم والحجة. نو جهل عذر د چا نسي کېدای.

## اَلَا سَآءَ مَا يَزِرُوۡنَ ۝۲۵

خبر او سه چې بد هغه شی (نو کلمه د ما موصوله ده په معنی د شيئ او عائد و ماته محذوف دی او مخصوص بالذم هم محذوف دی) والتقدير بئس شيئاً يزرونه اى يحملونه فعلمهم وهذا هو المخصوص بالذم اى الاضلال.

## قَدۡ مَكَرَ الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ

په تحقيق سره مکر او حيله برابر کړې او سنجولې وه هغه کفارو چې تر کفار مکه دمخه وه و خپلو رسولانو ته چې دوی په دعوه کې د رسالت نا کامه کړي او يا يې هلاک کړي. لکه کفارو د مکې چې به په دار الندوة کې د عليه الصلوة والسلام لپاره مکر او حيله سنجولې وه. لکن ټول له مکرونه د کفارو سبب د هلاکت د دوی سوه لا لغيرهم. مقوله مشهوره من حضر لاخيه جباً وقع فيه منكباً.

**پوه سه**: چې بغوي رح دا آيتونه پر تمثيل حمل کړي دي والحق ماقاله صاحب المدارک. و وهب بن منبه رح چې د "الذين من قبلهم" څخه مراد نمرود بن کنعان چې د ابراهيم رح د وخت فرعون ؤ دی لپاره د مقابلې د ابراهيم رح په بابل کې يو مناره جوړه کړه چې اسمان ته وخېژي او د ابراهيم عليه السلام د خدای سره جنګ وکړي.

د منارې جگ والی پینځه زره گزه ؤ او عرض یې دوه فرسخه ؤ. نو خدای ﷻ باد پر را او الوزاوه له بېخه یې وکښل سر یې په دریاب کې و مبتلی او بېخ او باقي نوره پر نمرود او قوم دده راولوېدی تو له تر لاندې هلاک سوه.

**فَأَتَى اللَّهُ بُنْيَانَهُمْ مِنَ الْقَوَاعِدِ فَخَرَّ عَلَيْهِمُ السَّقْفُ مِنْ فَوْقِهِمْ وَأَتَاهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُونَ**

نو ورغلی امر د خدای (ﷻ) (لان الاتیان علی الله محال) لپاره د ابطال د حیلو ددوی. نو آبادي ددوی یې له بېخه وکښل او بام د ابادۍ پر دوی د لوړې خوا راولوېدی او دوی ته راغلی عذاب مهلک له داسي خوا ځخه چې ددوی توقع نه وه فصارت تلک الحیل اسبابًا لاهلاکهم. د بغوي رح پر مذهب د آیت ترجمه داسي ده چې د مثال په توگه یو قوم وي چې آبادي لوېه د ځانو د ساتنې لپاره جوړه کړې وي چې په دې آبادي کې مورچې پر دښمنانو غالب سو. نو اخیر د بنیان دېوال ضعیف سو او ونړېدی بام سربېره پر دوی را ایله سو او تو له یې هلاک کړل. په اخیر کي بغوي رح وایي فالکلام وارد علی التمثیل او د مدارک او وهب بن منبه پر تقدیر ترجمه داسي ده. په تحقیق مکر کړی ؤ هغه کسانو چې تر کفارو د مکې دمخه وه یعني نمرود و قومه چې مناره جوړه کړې وه. نو امر د خدای ﷻ یعني تند باد او بنیان د هغو چې مناره یې له بېخه ځخه وکښل. نو د منارې بام یې یعني کښته حصه یې پر دوی راچپه کړل او دوی تو له یې تر لاندې هلاک کړل او دوی ته هلاکت راغلی له داسي ځایه ځخه چې ددوی هیڅ خیال نه ؤ.

**ثُمَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يُخْزِيهِمْ**

وروسته په ورځ د قیامت خدای ﷻ دوی ذلیل گرځوي یعني عذاب د ذلت ورکوي ماسوی له هغه عذاب ځخه چې په دنیا کې یې دوی ته ورکړی ؤ کریمه "ربنا انک من تدخل النار فقد اخزیته"

## وَيَقُولُ أَيْنَ شُرَكَآءِيَ

او خدای (ﷻ) ووايه په ژبه د ملکو لپاره د توبیخ (لا بالذات لان كلام الله نعمةٌ وهم من اهل النقمة) چيري دي زما شريكان.

**سوال**: څرنګه يې شريکان و ځان ته مضاف کړل؟

**ځواب**: استهزا بهم، او حکايت د قول ددوی يې وکړی چي دوی شرکا د خدای بلله لزيادة التوبيخ لهم.

## الَّذِينَ كُنتُمْ تُشَٰٓقُّونَ فِيهِمْ

هغه بتان چي تاسي به په دنيا کي اختلاف کاوه د رسول ﷺ او د مؤمنانو سره ددوی په معبوديت کي.

## قَالَ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ

وه به وايي هغه کسان چي علم يې پر وحدانيت د خدای (ﷻ) درلودی په دنيا کي چي انبيا او ملائکه عليهم السلام او مؤمنان دي لپاره د سپکاوي د دغو کافرانو او لپاره د اظهار د خوشالۍ په حال ددوی او لپاره د شکر د نعمت د هدايت د خدای ﷻ دوی ته په دنيا کي چي کفارو غوندي مو پر خدای ﷻ پر ضلالت ونه ګرځولو.

## إِنَّ الْخِزْيَ الْيَوْمَ وَالسُّوٓءَ عَلَى الْكَٰفِرِينَ ﴿٢٧﴾

په تحقيق ذلت او سپکاوی نن ورځ د قيامت او عذاب پر کافرانو دی.

## الَّذِينَ تَتَوَفَّىٰهُمُ الْمَلَٰٓئِكَةُ ظَالِمِيٓ أَنفُسِهِمْ

هغه کافران چي دوی ته ورغلي ملکي يعني ملك الموت و اعوانه لپاره د قبض د روحانو ددوی "ظالمي انفسهم" منصوب على الحال چي دوی ظلم کاوه پر خپلو ځانو يعني چي ځانونه يې و عذاب مخلد ته د خدای ﷻ وړاندي کړل.

## فَأَلْقَوُا السَّلَمَ مَا كُنَّا نَعْمَلُ مِن سُوٓءٍ

نو دوی منقاد سي حکم ته د خدای ﷻ او داسي ووايي، موږ نه ؤ په دنيا کي

چي مونږ دي عمل د بدو كړي وي يعني الكفر والمعاصي وعصيان الرسل، نو ملئكة الموت جواب وركړي.

بَلَىٰٓ إِنَّ ٱللَّهَ عَلِيمُۢ بِمَا كُنتُمۡ تَعۡمَلُونَ ﴿٢٨﴾

"بلی" اثبات د نفي د كفر ددوی دی، په تحقيق خدای (ﷻ) ښه خبر دی (الصيغة للمبالغة) په هغه شي چي تاسي يې عمل كوئ من الكفر والمعاصي په دنيا كي.

**فائده**: كلمه د ما موصوله ده والعائد محذوف ای تعملونه او يا مصدريه ده ای بعملكم.

فَٱدۡخُلُوٓاْ أَبۡوَٰبَ جَهَنَّمَ خَٰلِدِينَ فِيهَاۖ فَلَبِئۡسَ مَثۡوَى ٱلۡمُتَكَبِّرِينَ ﴿٢٩﴾

نو داخل سئ و دروازو ته د جهنم (يعني طبقاتو ته د دوږخ يعني هر صنف دي خپلې طبقې ته ولاړ سي) چي همېشه به ياست په جهنم كي، پر هر آئينه بد دی حال د اقامت د متكبرانو يعني الكافرين چي په دنيا كي يې كبر كاوه او ايمان ته يې سر نه كښېته كاوه. والمعنى بالفارسية: پس هر آئينه بد مقامی وبد آرام گاهيست متكبران را جهنم.

**پوه سه**: چي جهنم مؤنث سماعي دی او "خالدين" حال مقدر دی ای مقدرين الخلود فيها لان الخلود لايكون وقت الدخول.

**ښهانه فائده**: شيخ علي سمرقندي رحمه الله په خپل تفسير كي چي نوم يې بحر العلوم دی وايي چي تكبر درې قسمه دی (۱) تكبر دی پر خدای ﷻ چي تر خدای پاک ځان لوړ وبلي لكه فرعون، نمرود وغيرهما چي ځانونه يې ربكم الاعلى بلل، وهو اخبث انواع الكبر واقبحها او ددې تكبر منشأ الجهل بالله دی (۲) تكبر دی پر رسولانو د خدای ﷻ يعني زه متابعت څرنگه وكړم د بشر چي مثل د نورو خلگو دی او دا تكبر د مثل د تكبر على الله دی په ورځ د قيامت في الخلود السرمدي (۳) تكبر على العباد هغه دادی چي ځان لوړ وبلي تر نورو خلگو او نور خلگ حقير وبلي تر خپل ځان او نه د عالم او نه د واعظ نه د بل چا انقياد كوي، وهو ايضاً قبيح صاحبه جاهل كبير يساهل سخطاً عظيماً د لوی غضب د خدای ﷻ لائق دی كه توبه ونه كاږي، البته تر اولو دوو كم دی او خالد في النار نه دی.

وَقِيلَ لِلَّذِينَ اتَّقَوْا مَاذَا أَنزَلَ رَبُّكُمْ

او وويل سول يعني له طرفه څخه د هيئت د قبيلو د عربو و هغو كسانو ته چي ځانونه يې ساتلي وي له ضلال او اضلال څخه چي څه شی نازل کړی دی خدای ستاسي يعني د قرآن عظيم الشان په باره کي چي کفارو دمکي د هغه په باره کي بعض وافدين ته وويل كمامر اساطير الاولين.

قَالُوا خَيْرًا

مؤمنانو به ورته وويل چي نازل کړی دی خدای ﷻ زموږ خير الكلام يعني ما فيه صلاح الدين والدنيا والآخرة.

**پوه سه**: چي "خيراً" منصوب دی په فعل مقدر سره ای انزل خيراً وانما حذف الفعل للتنبيه على ان المؤمنين لم يتوقفوا في الجواب بل قالوا على الفور خيراً

لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا فِي هَٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ

هغو كسانو لره د مؤمنانو چي ښه كړي عقائد او اعمال خپل يعني د شريعت غرا سره برابر په دې دنيا كي، جار او مجرور يعني في هذه الدنيا متعلق دی په "احسنوا" پوري خصلة حسنة ومثوبة حسنة قال ابن عباس رضي الله عنهما هي تضعيف الاجر الى العشر.

**درويش وايي**: چي ابن عباس رضي الله عنهما ادنی درجه د تضعيف چي د عموم مسلمان لپاره ده ذكر كړه، كه نه د ځينو خواصو لپاره اوويا (٧٠) ضعفه ثواب سته. بلكي د بعضي خواصو لپاره اووه سوه (٧٠٠) ضعفه ثواب سته بل الى ماشاء الله تعالى. او ضحاك رح وايي هي النصر على الاعداء والفتح لقرى وبلاد الكفرة. او مجاهد رح الى هي الرزق الحسن. او مظهري رح وايي هي الحيوٰة الطيبة في الدنيا بحيث يرتضيه الخالق آه.

وَلَدَارُ الْآخِرَةِ خَيْرٌ

يعني حيوٰة د دار الآخرة چي قيامت بهتر دی تر ژوند د دنيا يعني متقينو لره. ولي چي په هغه دار الآخرة كي به دوي ثمرات د عملو د دار الدنيا ومومي في كرامةٍ وجنةٍ ابد الآبدين ورضى الرحمن بلا خوف ولا مصيبة ولا مرض ولا

تكليف بعبادة من العبادات مثل الصوم والصلوة وغير ذالك.

## وَلَنِعْمَ دَارُ الْمُتَّقِيْنَ

او ډېر ښه دار د متقينو. حسن بصري رح وايي چې مراد له دار المتقين څخه دار الدنيا ده. ولې چې په دنيا کې دوی زاد الآخرة جمع کړې دي من العبادات الشاقة. لکن اکثره د مفسرينو وايي چې مراد له دار المتقين څخه دار الآخرة دی او مظهري رح وايي چې اضافت د دار و متقينو ته لپاره د جنس يعني نعم دار المتقين اى دار كانت الدنيا والآخرة.

## جَنّٰتُ عَدْنٍ

جنتونه دي د اقامت.

**الاعراب**: جنات مرفوع دی خبر يې محذوف دی ای لهم جنت عدن او يا خبر د مبتدأ محذوفي دی ای هي جنت عدن او دار هم جنت عدن او يا مخصوص بالمدح دی د ولنعم.

## يَّدْخُلُوْنَهَا تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ لَهُمْ فِيْهَا مَا يَشَآءُوْنَ

دوی به داخلېږي ودې جنتو ته چې جاري به وي لاندې تر ماڼيو ددوی ځلور ويالې من ما غير آسن. وعسل مصفى وخمر لافيها غول ولا هم عنها ينزعون، ولبن سائغ للشاربين، او دوی لره به وي هغه شی چې ددوی هوا او اشتها ورته کېږي.

**فائده**: "فيها" يې تر "مايشاؤن" دمخه کړی تنبيهًا على ان الانسان لا يجد جميع ما يشتهيه الا في الجنة رزقنا الله بفضله وكرمه تلك النعمة العظمى في تلك الدار.

## كَذٰلِكَ يَجْزِى اللّٰهُ الْمُتَّقِيْنَ

پر دغه ډول يعني لکه تاسې چې واورېدل په مخنۍ آيت کې جزا او ثواب ورکوي خدای ﷻ متقينو ته يعني چې خانونه له شرک او ګنهو څخه وساتي.

**درويش وايي**: چې اوس خدای ﷻ بيرته احوال د متقينو بيانوي.

**الَّذِينَ تَتَوَفّٰهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ طَيِّبِينَ**

هغه کسان دي متقين چې ملک الموت او اعوان د هغه د قبض روح لپاره ورته راسي په داسي حال کي چې دوی پاک وي قال البغوي في تفسير "طيبين" مؤمنين طاهرين من الشرک، وقال مجاهد زاکية افعالهم و اقوالهم چې پاک وي افعال ددوی او اقوال ددوی يعني ممايخالف الشريعة الغرا، او بعض مفسرين وايي وفاتهم تقع طيبة سهلة په سبب د زېري د ملکو دوی ته د جنت قال المولوي المعنوي جلال الدين الرومي قدس سره في بيان هؤلاء المبشرين بالجنة.

هم چنين باد اجل با عارفان ..... نرم وخوش همچون نسيم يوسفان[1]

پس رجال از نقل عالم شادمان ..... و ز بقايش شادمان اين کودکان

**يَقُولُونَ سَلٰمٌ عَلَيْكُمُ ادْخُلُوا الْجَنَّةَ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿۳۲﴾**

ملکې ورته وايي دوی ته سلام دی پر تاسي يا اخبار دی يا دعا، داخل سئ وجنت ته په سبب د هغه چې تاسي بې عمل کاوه په دنيا کي.

**فائده:** کلمه د "ما" يا موصوله ده فالعائد محذوف ای تعملونه، او يا مصدريه ده ای بعملکم في الدنيا، والمراد حين تبعثون في الآخرة ولي چې جنت تاسي لره اراسته دی بالسبب المذکور في الآية، او بعض مفسرين وايي چې سلام عليکم په وخت کي د وفات ورته وايي، او د قيامت په ورځ ورته وايي "ادخل الجنة الآية"

**فائده:** روح المعاني وايي سلام عليکم لا يلحقونکم بعده مکروه آه، او قرطبي رح وايي چې بيهقي د محمد بن کعب القرظي رح روايت کړی دی "اذا استدعيت نفس المؤمن" چې وغوښتل سي نفس د مسلمان يعني د روح د قبض وخت يې راسي جائه ملک الموت عليه السلام فقال السلام عليک يا ولي الله ان الله يقرء عليک السلام وبشره بالجنة انتهى.

**پوښتنه:** په دې آيت کي يې اعمال صالحه سبب د دخول د جنت ګرځولي دي،

[1] اشارة الى ماقال يعقوب عليه السلام انى لاجد ريح يوسف آه والجمع للسجع فافهم.

او په حديث صحيح کي چي روايت يې مسلم او بخاري کړی دی راغلي دي "لن يدخل احدکم الجنة بعمله الحديث" فتعارض هذه الآية والحديث المذکور.

**ځواب:** درويش وايي: چي محيي الدين النووي رحمه الله په شرح کي د مسلم په يوه وړده بيان سره جواب ورکړی دی او سيد محمد آلوسي رحمه الله په روح المعاني کي په لنډه وجه ځواب ورکړی دی. دی وايي چي کلمه د با په آيت مبارک کي لپاره د سببيت عادي ده يعني عادت د خدای پاک په دې سره جاري دی چي مؤمنان متقين وه جنت ته داخلوي په محض فضل او کرم سره، او په حديث کي با لپاره د سبب حقيقي ده ولا يجب على الله شيئ" فلا منافات. ولي سبب عادي موجود دی کما في الآية. او سببيت حقيقي يعني الوجوب على الله معدوم دی کما في الحديث. او معتزله وايي خذلهم الله چي ثواب د مطيع او عقاب د عاصي پر خدای واجب دی. والتفصيل في کتب العقائد. نو دوی عمل په آيت کوي او حديث مذکور يې کان لم يکن شيئاً مذکوراً ګرځولی دی. او بعض مفسرين په اخصر وجه د سوال مذکور ځواب داسي ورکوي چي مراد په آيت کي دخول د منازلو او مراتبو او قصورو د جنت دی د هغو سبب اعمال المتقين دی، او مراد په حديث کي نفس دخول د جنت دی وذالک بمحض فضل الله وکرمه لا دخل للعمل فيه.

**درويش وايي:** چي دا هم جواب معقول موافق د احاديثو شريفه وو سره دی والله ﷻ اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب وهذا في وسع الفقير غفرله.

هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ تَاْتِيَهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ اَوْ يَاْتِيَ اَمْرُ رَبِّكَ

الاستفهام للانکار ای ما ينتظرون هؤلاء الکفار والذين مر ذکرهم في الآيات السابقة شيئاً. نو استثنا مفرغ ده. مګر ودوی ته چي راسي ددوی ملکي يعني ملک الموت واعوانه لپاره د قبض د روحانو ددوی. او يا راځي امر د خدای ﷻ يعني ما امر به چي قيامت دی يا عذاب د استيصال دی في الدنيا.

كَذٰلِكَ فَعَلَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ

"کذالک" يعني مثل ددغه فعل چي کفار موجودين يې کوي من الشرک وتکذيب الرسل" فعل کاوه هغه کافرانو چي تر دوی دمخه وه يعني هغو ته عذاب د

دنیا بالاستیصال ورسېدی یعني موجود ینو ته به هم ورسېږي ... سعدي رح میگوید

پند گیر از مصائب دیگران ...... تا نه گیرند دیگران ز تو پند
نرود مرغ سوی دانه فراز ...... چو دیگر مرغ بیند اندر بند

وَمَا ظَلَمَهُمُ اللهُ وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ۝

خدای ﷻ ظلم نه دی کړی پر هغو بعذاب الاستیصال، لکن وه دوی چي پر خپلو ځانو یې ظلم کاوه په سبب د کفر او معاصیو چي هغه ورسول دوی عذاب استیصال ته.

فَاَصَابَهُمْ سَيِّاٰتُ مَا عَمِلُوْا وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ۝

نو ورسېدله دوی ته جزا د سیئات عملو ددوی (یامضال محذوف دی وهو لفظ الجزا او یا یې جزا د سیئاتو په نامه د سیئاتو مسمی کړی د تسمیة المسبب باسم السبب مجاذاً مرسلاً) او احاطه وکړه پر دوی هغه شي چي دوی پسخند په واهه یعني العذاب چي رسولانو به دوی بېرول دوی به د پسخنده وویل لولا یعذبنا الله بما تقول یعني ولي خدای پاک نه په عذابوي موږ په قول زموږ چي موږ وایو چي بتان د خدای شریکان دي.

وَقَالَ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا لَوْ شَآءَ اللهُ مَا عَبَدْنَا مِنْ دُوْنِهٖ مِنْ شَيْءٍ
نَّحْنُ وَلَآ اٰبَآؤُنَا

او وایي هغه کسان چي شرک کوي که چېري د خدای ﷻ اراده وای موږ به عبادت نه کولای ماسوای له خدای ﷻ څخه د هیڅ شي نه موږ او نه زموږ پلرو؛ (پوه سه: چي راګرځول د "نحن" لپاره د تاکید د ضمیر "عبدنا" دی.

**سوال:** لپاره د تاکید د ضمیر متصل د عطف لپاره خو فصل هم کافي دی والفصل ههنا موجود بقوله من دونه من شیئ آه؟

**ځواب:** غرض ددوی مبالغه ده)

وَلَا حَرَّمْنَا مِنْ دُوْنِهٖ مِنْ شَيْءٍ

او نه به حرام ګڼلای بېله خدایه یعني بېله ارادې د خدای ﷻ یو شی لکه

سائبه، بحیره، حام وغیرها کمامر تفسیر هذه الاشیا.

**يوه سه:** چې دا قول ددوی یا استهزا ده او یا یې غرض دادی چې ارسال الرسول ته حاجت نسته او نه و کتاب ته. په دې دلیل ان ماشاء الله کان ومالم یشالم یکن. نو څه فائده ده د رسول او د کتاب را استولو ته، نو ددوی د کلام حاصل دادی چې زمونږ شرک یا تحریم د نامونږو حیواناتو قبیح نه دی او خدای په راضي دی. ولې که راضي نه وای، زمونږ څخه به یې ددغو کارو مشیت نه کولای.

**درویش وایي:** چې ددوی جاهلانو په فاسد گمان مشیت د خدای جل جلاله او رضی د خدای جل جلاله سره لازم او ملزوم دي ولیس کذالک.

**يوه سه:** چې زمونږ بعض جاهلان مسلمانان چې په یوه گناه اخته وي او یو عالم ودوی ته نصیحت کوي چې دا کار گناه ده مه یې کوئ، هم داغه دلیل د مشرکانو وایي. نو پر عالم ناصح لازمه ده چې په بنه فصیح ژبه دوی ته د مشیت د خدای جل جلاله او د رضی د خدای فرق بیان کړي لان الفرق بینهما دقیق لا یفهمه العوام بالسهولة مثلاً داسي دي ورته وایي چې د یو سړي زوی خپل پلار ته وایي چې ماته یو لوی مبلغ نقود راکړه زه د شمالي کوریا مثلاً تجارت په کومه د پلار یې رضی نه وي یا په سبب ددې چې زوی مې بې تجربې دی د لوی کار وبار قابل نه دی او یا ددې سببه چې ځوان دی د کافرانو په مملکت کې به په زنی مثلاً یا شراب خوري مثلاً اخته سي. لکن زوی ورته ټینګ سي چې خامخا زه دغه تجارت کوم نو پلار نقود ورکړي او تجارت ته د کوریا مثلاً ولاړسي، نو دغه ورکړه د روپو په اراده د پلار ده، لکن په راضي نه دی. وهذا المثال ینبغي ان یکتب بمداد الذهب علی قراطیس الاذهان او ددې فرق لپاره نور ډېر مثالونه هم سته لو لا مخافة الطول الموجب لملال خواطر المتعلمین لآتیت بها.

كَذَٰلِكَ فَعَلَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۚ فَهَلْ عَلَى الرُّسُلِ إِلَّا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ ۝

**يوه سه:** چې فعل په دې آیت کې په معنی د قول دی لان لفظ الفعل عام.

والمعنى په مثل د قول د دغو مشركانو ويلي دي هغه كسانو چي تر دوى د مخه وه، نو نسته پر رسولانو (نو استفهام انكاري په معنى د نفي دى په دليل د استثنا) مگر نه تبليغ د اوامرو او نواهيو د خداى ﷻ په واضح او ښكاره ډول يعني پر رسولانو هدايت موصله نسته فانها بيد الله تعالى ومشيته بلكې د دوى په ذمه كي هدايت په معنى د ارائة الطريق دى وبس فافهم الفرق بين الهدايتين.

**وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولًا أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوتَ**

اى والله په تحقيق موږ استولى ؤ هر امت ته يو رسول چي تاسي (بحذف البا اى بان) به عبادت كوئ د خداى ﷻ يعني بالتوحيد من الشرك. او ځان به ساتئ له متابعت څخه د طاغوت يعني الطغيان والمراد منه الشيطان.

**فَمِنْهُم مَّنْ هَدَى اللَّهُ وَمِنْهُم مَّنْ حَقَّتْ عَلَيْهِ الضَّلَالَةُ**

نو بعض له هغو كسانو څخه چي رسول ور استول سوى ؤ هغه كسان وه هدايت ورته وكړى خداى ﷻ اى شا هدايتهم او توفيق يې وركړى د ايمان په ارشاد او لاربنوونه سره د رسول د هغه امت. او بعض له هغو كسانو څخه حق او ثابت پاته سوه پر دي گمراهي او كفر نو دوى ته توفيق نه وركړل سو د ايمان او اراده د خداى ﷻ د دوى د هدايت نه وه، يعني نو خداى پاك هغه ټول هلاك كړل پر كفر او كورونه د هغو يې خالي پرېښوول. لكه د فرعونيانو كورونه د دوى په غرق سره خالي پاته سوه وبني اسرائيلو ته وهكذا نمرود وقومه.

**فَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَانظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ ﴿٣٦﴾**

نو تاسي سفر وكړئ يا معشر قريش په مځكه كي او بيا وگورئ يعني په نظر د عبرت چي څرنگه ؤ آخر كار د هغو كسانو چي تكذيب د رسولانو يې كړى ؤ يعني كورونه د عاديانو او د ثموديانو او د قوم لوط او اصحاب الايكة چي ستاسي د اسفارو په دوران كي دغه ځو ځايونه په مخه درسي.

پند گير از مصائب ديگران ....... تا نه گيرند ديگران زتو پند
نرود مرغ سوى دانه فراز ....... چو ديگر مرغ بيند اندر بند

**پوه سه**: چي په دې آيت کي اشاره ده ورد ته د هغه قول د مشرکانو چي مشيت الهي او رضي د خدای ﷻ سره لازم او ملزوم بولي کما في الآية السابقة وقال الذين اشرکوا الآية" په دې معنی که مشيت او رضا سره لازم او ملزوم وای لکه دوی چي ويل، نو دا کفايه ولي په عذاب هلاک کول او دا هلاک بالاتفاق په مشيت د خدای ﷻ وه.

**تنبيه**: په وروستني آيت کي خدای پاک و عليه الصلوة والسلام دا بيان کوي چي دا کفار قريش حقت عليهم الضلالة دي، نو ته حرص پر هدايت د دوی مه کوه او مه يې پر ځان ډېروه او مه غمجن کېږه په ايمان نه راوړلو سره ددوی.

# إِن تَحْرِصْ عَلَىٰ هُدَاهُمْ فَإِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي مَن يُضِلُّ

که ته حرص وکړې پر هدايت د کفارو د قريشو.

**درويش وايي**: چي اصل جزا محذوفه ده يعني لافائدة في حرصک و اغتمامک بعدم قبول قولک فان الله آه دا دليل دی د جزا محذوفي.

ولي چي خدای ﷻ هدايت يې معنی د ايصال الی الحق نه کوي و هغه چاته چي خدای ﷻ گمراه کړي دي يعني په سبب د اختيار د هغه. الكفر والضلال على الهدى والايمان هكذا ينبغي ان يفهم هذا المقام ليحصل الخلاص من مذهب الجبرية فتدبر.

# وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ ﴿٣٧﴾

او نشته دوی لره مرسته کونکي چي دوی له عذاب څخه د خدای ﷻ خلاص کړي. او يا مشيت الهي دي له دوی څخه رد کړي.

**درويش وايي**: چي صاحب د روح البيان يوه ډېره زيبا او په زړه پورې او د جبريه وو دندان شکنه ترجمه ددغه آيت "فان الله لايهدی من يضل" کړې ده حيث قال فاعلم ان الله لايخلق الهداية جبراً وقهراً فيمن يخلق فيه الضلالة بسوء اختياره. او دا ترجمه موافق ده د هغې ترجمې سره چي سابقًا فقير وکړه فافهم.

**شان نزول**: ابن جرير او ابن ابی حاتم له ابو العاليه رحمه الله څخه روايت کړی دی کما في روح البيان وتفسير المظهري، چي د يوه مسلمان پر يو مشرک پور

باندي ؤ مسلمان ورته راغلی او خپل پور يې غوښتی. نو مسلمان په دوران کې د خبرو ورته وويل چې زما دې قسم وي په هغه خدای ﷻ چې زه اميد ورته لرم د بعث بعد الموت آه. مشرک ورته وويل چې ستا خيال دی چې وروسته تر مرګ ته بعث کېږې؟ مسلمان ورته وويل هو! مشرک ډېر سخت قسم واخستی لايبعث الله من يموت فانزل الله ﷻ هذه الآية.

## وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ لَا يَبْعَثُ اللَّهُ مَن يَمُوتُ

**پوه سه**: چې دا آيت عطف دی پر هغه آيت "وقال الذين اشركوا آه" لپاره د اعلام په دې سره چې مشرکين لکه د توحيد څخه چې منکر دي له بعث بعد الموت څخه هم منکر دي او دوی قسم اخلي په خدای ﷻ سره په سخت د قسمو سره ددوی چې نه ژوندي کوي خدای هغه کسان چې مړه سي يعني په قيامت، ثواب او عقاب هيڅ نسته. خدای ﷻ په ځواب کې ددوی وايي:

## بَلَىٰ وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ۝

"بلی" يعني يبعث الله بعد الموت.

**پوه سه**: چې لفظ د "بلی" وروسته تر نفي اثبات د منفي دی کما تقرر في کتب النحاة "وعداً" مفعول مطلق دی د فعل محذوف ای وعد بذالک وعداً "عليه" ای ثابتاً عليه انجازه، ولې چې خلاف په وعده کې د خدای ﷻ محال دی کما ثبت في علم الکلام "حقاً" ای حق بصيغة المجهول حقاً، نو دا هم مفعول مطلق دی.

## لِيُبَيِّنَ لَهُمُ الَّذِي يَخْتَلِفُونَ فِيهِ

("ليبين لهم" لام متعلق دی په يبعثون پوري چې "بلی" دلالت پر وکړی او ضمير د "هم" راجع دی "ومن يموت" ته په اعتبار د معنی که يې څه هم لفظ مفرد دی او دا ضمير شامل دی و مسلمانانو او کافرانو ته، ولې چې من يموت خو دواړې ډلې دي) هغه شی چې مسلمانان او کافران پکښې په اختلاف کې دي يعني البعث بعد الموت نو د "ليبين" معنی داده چې خدای ﷻ ښکاره کړي و مسلمانانو او کافرانو ته هغه اختلافي موضوع حتی چې دا واضح سي چې

مسلمانان حق په جانب دي.

وَلِيَعْلَمَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّهُمْ كَانُوا كَاذِبِينَ ۝٣٩

او چې معلومه سي و هغو کسانو ته چي کفر يې کاوه چي په تحقيق مونږ درواغ ويونكي وو في ان لا بعث بعد الموت. په دې ايت کي اشاره وحکمت الهي ته ده په بعث بعد الموت يعني چي فرق راسي د محق او مبطل او د حق او د باطل او ثواب و عقاب موعودان معرض ته د ظهور راسي.

إِنَّمَا قَوْلُنَا لِشَيْءٍ إِذَا أَرَدْنَاهُ أَنْ نَقُولَ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ ۝٤٠

نه دی قول زمونږ مګر دادی چي يو شي ته زمونږ اراده يعني د وجود وسي، مونږ وايو هغه ته چي موجود سه. نو هغه موجود سي.

**پوه سه**: چي "قلنا" مبتدأ ده او خبر يې "ان نقول آه" دی او يكون په رفع سره په حذف د مبتدأ ای فهو يكون. او "شيء" عام دی که له امورو څخه د دنيا او که د آخرت وي.

**سوال**: له دې آيت څخه خو دا فهمېږي چي معدوم قبل الوجود هم شی دی لانه تعالى سماه قبل الوجود شيئاً؟

**ځواب**: "شيء" چي يې وباله په اعتبار د ماسيكون شيئاً عند تعلق ارادته تعالى بايجاده كما في قوله تعالى في سورة يوسف "اني اراني اعصر خمراً" اى عنباً يكون خمراً باعتبار المآل. او يا شی دلته په معنی د موجود نه دی بلکې په معنی د مايمكن ان يعلم ويخبر عنه والشيء بهذا المعنى يشمل للموجود والمعدوم بل المحال ايضاً لانه يصح ان يقال اجتماع النقيضين محال وتحقيق ذالک في كتاب سلم العلوم للمحقق البهاري رح وشرحه للمولوي حمد الله رح.

**درويش وايي**: چي شيخ ابراهيم الكوراني رح وايي چي اطلاق د "شيء" پر معدوم روا دی لکه پر موجود چي روا دی يعني پر دواړو يې حقيقةً اطلاق روا دی. په دې مسئله کي ده يوه رساله جليله تصنيف کړې ده چي نوم يې جلاء الفهوم پر اينبي دی. ددې رسالې له تحقيق څخه دا معلومه سوه چي اطلاق د شي پر معدوم خاص په معتزله وو سره نه دی كما هو المشهور.

**پوه سه**: چي بخاري له ابو هريره ﷺ څخه روايت کړی دی چي رسول الله ﷺ وويل چي خدای ﷻ وفرمايل چي زما تکذيب کوي زما بنده (چي مراد ځني مشرکان دي) او ده لره نه ؤ مناسب دا شی "وشتمني عبدي ولم يکن له ذالک" او ماته بنکنځل او بد نسبت کوي زما بنده او ده لره دانه وه مناسب.

**درويش وايي**: چي مراد له دې بنده څخه مشرکان دي چي ملائکه بنات الله بولي کريمه "الکم الذکر وله الانثی تلک اذاً قسمة ضيزي" او يهودان چي عزير ابن الله بولي او نصاری چي عيسی ابن الله بولي. فاما تکذيبه فقوله لن يعيدني کما بدوني وليس اول الخلق باهون علي من اعادته هر چي تکذيب د بنده دی هغه دادی چي دی وايي ما بيرته خدای نسي ژوندی کولای لکه چي اول يې پيدا کړی يم او نه دی اول خلق اسانه پر ما تر اعاده بعد الموت. واما شتمه اياي فقوله اتخذ الله ولداً وانا الاحد الصمد الذي لم الد ولم اولد ولم يکن لي کفواً احد او بنکنځل د بنده ماته دا قول د بنده دی چي خدای ﷻ لره ولد سته کما يقول المشرکون الملايکة بنات الله واليهود عزير ابن الله والنصاری عيسی ابن الله او سره ددې چي زه يو يم. يعني شريک في الملک والعبادة نه لرم او صمد يعني بې نياز او بې احتياج يم و چاته. هغه رب يم چي له ما څخه څوک زېږېدلی نه دی او نه زه له چا څخه زېږېدلی يم او نه سته ما لره مثل او مقابل هيڅ څوک.

**فائده**: في تحقيق قوله تعالی کن فيکون" روح البيان وايي وهذا الکلام مجاز عن سرعة الايجاد وسهولته علی الله تعالی وتمثيل الغائب وهو تاثير قدرته تعالی في المراد بالشاهد وهو امر المطاع للمطيع في حصول المامور به من غير امتناع وتوقف ولا افتقار الی مزاولة العمل واستعمال آلة وليس هناک قول ولا مقول له ولا آمر ولا مأمور حتی يقال انه يلزم احد الامرين اما خطاب المعدوم (ان کان المخلوق معدوماً) او تحصيل الحاصل ان کان موجوداو المعنی ان ايجاد کل مقدور علی الله تعالی بهذه السهولة فکيف يمتنع البعث بعد الموت الذي هو بعض المقدورات.. قال الشاعر:

انکه پيش از وجود جان بخشد ....... هم تواند که بعد ازان بخشد
چون در آرد از عدم بوجود ....... چی عجب باز اگر کند موجود

او مظهري رحمه الله دې ته نژدې تحقيق کړی دی يعني تمثيل ته نژدې خبري يې کړي دي، او روح المعاني وايي هذا تمثيل لسهولة تاتی المقدورات بعد تعلق مشيته تعالی وتصوير لسرعة حدوثها بما هو علم في ذالک من طاعة المأمور المطيع لامر الآمر المطاع انتهی.

**درويش وايي:** چي وروسته روح المعاني ډېري وږدې خبري کړي دي او فخر الاسلام او نور علما وايي چي حقيقةً کلام د "کن فيکون" مراد دی او محمول پر عادت د خدای ﷻ دی آه. او روح المعاني دا قول د فخر الاسلام په قيل سره راوړی دی او تر سخت تنقيد لاندي يې نيولی دی ان شئت فارجع اليه.

## وَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا فِى اللّٰهِ مِنْۢ بَعْدِ مَا ظُلِمُوْا

او هغه کسان چي هجرت يې کړی وي له مکې څخه و مدينې ته "في الله" يعني في سبيل الله ولوجه الله ولرضاته" وروسته تر دې د کفار مکې لخوا پر دوی ظلمونه کړل سوي وه. ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي دا آيت په ابی جندل بن سهيل رضي الله عنه کي نازل سوی دی. او بغوي رحمه الله وايي چي دا آيت په بلال، صهيب، خباب بن الارت، عمار بن ياسر، عائش بن جبير او ابو جندل بن سهيل رضي الله عنهم يعني ددې تولو مذکوره کسانو په باره کي نازل سوی دی چي مشرکانو د مکې دوی نيولي وه او قسم قسم سخت عذابونه يې ورکول. او ابن المنذر او ابن ابی حاتم او عبيد بن حميد رحمهم الله په روايت د قتاده رحمه الله وايي چي دا آيت په باره کي د تولو صحابه کرامو رضي الله عنهم چي په مکه کي وه نازل سوی دی چي د مکې د کفارو له خوا څخه د ظلمو له کبله دوی د خپل تاټوبي او کورونو څخه جبراً ووتل يعني حبشې ته مهاجر سوه. وروسته خدای پاک دوی ټول په دار الهجرة المدينة المنورة کي سره جمع کړل، او انصار د مدينې رضي الله عنهم ددې مهاجرينو د اکل او شرب او مسکن ذمه وار خدای ﷻ وګرځول. وفي الحديث الصحيح من فر بدينه من ارض الی ارض وان کان شبراً استوجب له الجنة الحديث"

**ژباړه:** که څوک فرار وکړي په سبب د دين خپل له يوې مځکي څخه بلې مځکي ته که څه هم يوه لوېشت وي، واجب يې کړی د ځان لپاره جنت.

لَنُبَوِّئَنَّهُمْ فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَلَأَجْرُ الْآخِرَةِ أَكْبَرُ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ ﴿٤١﴾

هر آئینه موږ به دوی نازل کړو یعني ځای به ورکړو حسنه یعني ښه ځای. چي مدینه منوره ده، او هر آئینه ثواب د آخرت پر هجرت ډېر بالا دی یعني هر هغه څه چي موږ دنیا دوی ته ورکوو. بغوي رح وایي چي عمر بن الخطاب رضی الله عنه چي خلیفه سو او د مهاجرینو تنخواه به یې ورکول، نو داسي به یې ورته وویل "خذوا بارک الله فیه هذا ما وعدک الله في الدنیا" او هغه چي ذخیره ګرځولي دي خدای ﷻ تاسي لره هغه تر دې افضله ده. نو بیا دا آیت د دلیل په ډول عمر رضی الله عنه تلاوت کړی.

**پوه سه:** چي ضمیر د "لوکانوا" و کفارو ته د مکې راجع دی. یعني که کفار خبر وای چي خدای ﷻ و مهاجرینو ته دواړه دار الدنیا والآخرة ورکوي نو به یې ظلم نه پر کولای او هجرت ته به یې نه مجبوره کولای. او یا ضمیر و مهاجرینو ته راجع دی، یعني که مهاجرین خبر وای چي موږ ته ثواب د دارینو خدای ﷻ راکوي، نو ډېر کوشش به یې کولای په هجرت کي او صبر به یې کولای پر جلا وطنی. باندي "لان حب الوطن من الایمان"

الَّذِينَ صَبَرُوا وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ ﴿٤٢﴾

هغه کسان دي چي صبر یې کړی وي پر آزار د کفارو. دوی لره او پر جلا وطنی او خاص پر خدای ﷻ یې توکل وي یعني تفویض د ټولو امورو و خدای ﷻ ته کوي.

**الاعراب:** نحات په ورته ځایو کي وایي چي د "الذین" لفظ مرفوع علی المدح دی په حذف د مبتدأ ای هم الذین. یا منصوب علی المدح دی په حذف د فعل او فاعل ای اعني، لکن رفع او نصب دواړه محلي دي فافهم. وتفصیل ذالک في شرح العلامة الجامي علی الکافیة.

**فائده:** جلا وطني یو دومره لوی مصیبت دی چي حجاج بن یوسف هغه شخص ظالم سفاک چي دنیاوال ټول ده په ظلم اعظم خبر دي. وایي چي که د

مهاجر دا امید نه وای چې صبا به ولاړ سم، یا میاشت وروسته یا کال وروسته خپل وطن ته. نو ما خلګ نه وژل بلکې له وطنه مې مهاجر کول. ولې چې د وژلو درد یو ګړی دی او د هجرت درد او غم دائمي دی.

**تجربه**: زه په خپله سره د اهل وعیاله د روسانو د تسلط په سبب پر افغانستان له وطن محبوب افغانستان خصوصاً له قندهار څخه و همسایه وطن پاکستان ته مهاجر سوم. اوس اته ویشت (۲۸) کاله کېږي چې تر اوسه مې غم د افغانستان له زړه څخه نه دی وتلی سره ددې چې د مالي ژوندانه چاري مې په پاکستان کې په کسب او تجارت د زامنو ډېري پر مخ تللي دي حتی چې په قندهار کې مې د بل امامت کاوه او د مقتدیانو زکوٰة ته په انتظاروم. او هم دا اوس شکر دي وي خدای ﷻ لره چې دوه چته پوخ په سیخ او کانګرېټو سره ډېر زیبا جامع مسجد مې جوړ کړی دی په غالیو فرش. نه د چا زکوٰة ته اړیم او نه یې اخلم او زامن مې خپل د سپرتیا لپاره موټران لري. لکن ددې ټولو نعمتو سره سره مې محبت د افغانستان خصوصاً د قندهار له زړه څخه نه دی وتلی.

**سوال**: شورویان "روسان" خو د وخته له افغانستان څخه وتلي دي، نو ولې خپل وطن ته نه تلې؟

**ځواب**: تر هغه وروسته د حزبو د مشرانو تر منځ کشمکش او جنګ ؤ.

**سوال**: هغه خو بیا ختم سو او قدرت و مجاهدینو طالبانو ته نقل سو، نو ولې نه تلې؟

**ځواب**: چې موږ ځان سره بنوراوه لوی ښامار د دنیا یعنې امریکا ځان جوړ کړی و قبضې ته د افغانستان. دا بیت واوره او له دې څخه یې قیاس کړه:

په سرینا کې د ډالرو باران اوري ....... پر افغان اولس د وینو ځاځکي اوري

هغه لږ وخت وروسته امریکایانو د طالبانو حکومت ړنګ کړی او د افغانستان حکومت یې په خپله قبضه کې واخستی. او برای نام یو رئیس جمهور تش په نامه یې مقرر کړی.

والله المستعان اللهم دمر الامریکین وزلزلهم زلزالاً شدیداً ومزقهم کل ممزق واخرجهم بقدرتک من بلاد افغانستان واعط زمام حکومة افغانستان بید رجل مؤمن قوي عدل لیجری قانون الاسلام في جمیع افغانستان.

**پوه سه:** چې د قريشو کفارو له نبوت څخه د عليه الصلوة والسلام په دې سبب انکار کاوه دوی به ويل الله اعظم من ان يکون رسوله بشراً فهلا بعث الينا ملکاً فنزل هذه الآية.

وَمَآ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ قَبۡلِكَ اِلَّا رِجَالًا

مونږ نه دي استولي يعني په نبوت سره مګر نه رجال يعني دون الملائکة.

**فائده:** له دې آيت څخه دا معلوه سوه چې نبوت په نرو پوري خاص دی ښځه نبي نسي کېدای ولي چې نبي به په اعلان او په محافلو کي کافرنو ته تبليغ کوي. او بنا د حال د ښځي پر ستر ده.

نُّوۡحِيۡۤ اِلَيۡهِمۡ فَسۡـَٔلُوۡۤا اَهۡلَ الذِّكۡرِ اِنۡ كُنۡتُمۡ لَا تَعۡلَمُوۡنَ ۝

مونږ وحي کوو پر ژبه د ملکو و دوی ته يعني که تاسي په شک کي ياست چې خدای ﷻ نه دي را استولي الا الرجال دون الملائکة. نو تاسي پوښتنه وکړئ له اهل علم څخه بالکتب السابقة من اليهود والنصارى، يعني چې موسى او عيسى او نور له انبياؤ عليهم السلام څخه د بني اسرائيلو رجال وه او که ملکې، وهکذا من قبلهم، ابراهيم و نوح الى آدم عليهم السلام . اهل کتاب به تاسي ته اطمنان درکړي چې دا ټول له رجال وه، که تاسي ياست چې علم نه لرئ.

**فائده:** له دې آيت څخه دا معلومه سوه چې پر جاهلانو په مختلف فيه مسئلو کي واجب ده چې علماؤ ته به رجوع کوي، او دا هم معلومه سوه چې اخبار مفيد د علم دی که چېرې مخبر ثقه او معتمد عليه وي.

بِالۡبَيِّنٰتِ وَالزُّبُرِ ؕ

دا متعلق دی بقوله "ارسلنا" والتقدير ما ارسلنا بالبينات ای المعجزات الظاهرات والزبر ای الکتب من الزبر وهو الکتابة الا رجالاً.

وَاَنۡزَلۡنَاۤ اِلَيۡكَ الذِّكۡرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ اِلَيۡهِمۡ وَلَعَلَّهُمۡ يَتَفَكَّرُوۡنَ ۝

او نازل کړی دی مونږ و تا ته يا محمد ذکر يعني القرآن، چونکه قرآن مبارک موعظة دی، نو ځکه يې ذکر بولي چې ته بيان کړې و خلګو ته هغه څه چې نازل

سوي دي و دوی تـه پـه واسطه د قـرآن مـن العقائـد والاحکـام مـن الحـرام والحـلال والوعد والوعید والشرائع الی غیر ذالک. شاید دوی به فکر ووهي او لـه ژور نظر څخه به کار واخلي، مطلب دادی چي بعض احکام د شرعي ببلـه بیانـه د شارع سړي ته په فکر سلیم هم ور معلومېږي، دمثال پـه تو گـه خدای ﷻ وایي "نسائکم حرث لکم فـاتوا حرثکم انی شئتم" یعنې ستاسي مـاینې د کښت ځـای دی چي تخـم د نطفې پکښې وپاشئ حاصل د ولد به خدای ﷻ درکړي. لـه دې څخـه دا معلومېږي چي په لږ فکر سره چي مراد اتیان و ماینې ته دی په فرج کي، ولي چي ددې لـه اتیان څخه ولد زېږي نه پـه دبره کي، ولي چي لـه اتیان څخـه ولـد نـه پیـدا کېږي، بلکې نطفه ضائع گرځي. وهکذا قال الله تعالی "المطلقات یتربصن بانفسهن ثلثة قروء" طلاقي سوي ښځي به انتظار کوي یعنې بـل مېړه بـه کوي تر درې قروء وروسته، که څه هم قروء مشترک دی په منځ کي د طهر او د حیض لکه چي سړی فکر ووهي په دې به وپوهېږي چي په آیت کي مراد حیض دی، ولي چي طلاق سني مشروع پـه طهر کي دی نو که مراد په آیت کي طهر وای نـو پـه طهر کي سړی ماینې تـه طلاق ورکړي، نو دغه طهر که په عدت کي شمار سي، نو خو عده ددې دوه طهره کامل او یو طهر ناقص سو، درې طهره کامل پوره نه سوه، او کـه د طلاق طهر نسي حساب نـور درې طهـره کامـل غـواړي، نـو ددې عـده درې طهـره ده، او بعض د طهر طلاق سوه، یعنې تر درې طهر څه بالا سوه مع ان لفظ ثلاث نص دی پـه درو کي، یعنې نه به بالا وي او نه کم، نو دا معلومه سوه چي له قروء څخه حیض مراد دی فتدبر.

## اَفَاَمِنَ الَّذِيْنَ مَكَرُوا السَّيِّاٰتِ

آیا په امن کي دي یعنې بېغمه دي هغه کسان چي مراد ځني کفار د مکې دي چي دوی چمونـه کـوي مکرات السیئات یعنـې بـد مکرونـه چـي هغـه کسـان د قریشو وه چي په دار الندوة کي چي ددوی د قومي مشورې سرای و چي د علیه الصلوة والسلام په باره کي یې په دې کي مشوره کول چي بعضو به ویل قتـل بـه یې کړو او بعضو به ویل چي بندي به یې کړو او بعضو ویل له وطنه بـه یې وشړو وقد مر القصة بالتفصیل في هذا التفسیر في موضعه.

أَن يَخْسِفَ اللَّهُ بِهِمُ الْأَرْضَ أَوْ يَأْتِيَهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُونَ ﴿٤٥﴾

چي كښته به بوزي مځكه متلبس په دوى سره (يعني په مځكه به يې ننباسي لكه قارون چي يې خسف كړى يعني بيغمه بايد نسي) او يا دى عذاب ناببره پر دوى له داسي جهته څخه چي ددوى گمان نه كېدى لكه پر قوم لوط چي يې د ډبرو باران وكړى، او پر نورو كفارو يې قسم قسم عذاب مسلط كړى چي ددوى به گمان نه و.

أَوْ يَأْخُذَهُمْ فِي تَقَلُّبِهِمْ فَمَا هُم بِمُعْجِزِينَ ﴿٤٦﴾

او يا دوى ونسي په عذاب سره په گرځېدو راگرځېدو سره يعني په سفرو كي ددوى نو دوى نه سي عاجزه كولاى خداى ﷻ له دغو عذابو څخه.

أَوْ يَأْخُذَهُمْ عَلَىٰ تَخَوُّفٍ

في القاموس تخوف الشيئ تنقصه ومنه قوله تعالى او يأخذهم على تخوف انتهى، نو معنى دلته داده چي دوى ته به خداى ﷻ كم والى وركوي په انفس او اموالو كي شيئًا بعد شئ حتى يهلكوا جميعًا ولا يهلكوهم في حالة واحدة، نو مراد د "اويأتيهم العذاب الآية" عذاب د استيصال دى مرةً واحدةً.

**فائده**: دا دري حاله چي خداى پاك ذكر كړه مقصود پكښي دادى چي خداى قادر دى پر هر هلاک ددوى من الانواع الثلثة لا الحصر في هذه الثلثة.

فَإِنَّ رَبَّكُمْ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴿٤٧﴾

په تحقيق خداى ستاسي بخښونكى او مهربان دى چي تلوار په عقوبت كي ستاسي نه كوي مع استحقاقكم لها فهذا من الله امهال لا اهمال.

**درويش وايي**: چي بايد مؤمن په توالي د نعمتو د خداى ﷻ سره د معصيت ذده غره نسي لان الله كما هو غفور رحيم كذالک هو عزوجل قهار منتقم فينبغي له ان يرعى الادب ظاهراً وباطنًا مع الرب العزيز الجبار ........ بيت:

از خدا خواهيم توفيق ادب ........ بى ادب محروم ماند از فضل رب

روايت دى چي رويم رح و ابن الخفيف رح ته وويل "اجعل عملک ملحًا وادبک دقيقًا ....... بيت:

بی ادب تنها نه خودرا داشت بد ........ بلکه آتش درهمه آفاق زد

اَوَلَمْ يَرَوْا

**پوه سه**: چي جمهور د قراؤ دا کلمه په یا د غیبت وایي. نو ضمیر راجع دی و "الذین مکروا السیئات" ته. نو دا قرائت موافق دی له دمخه آیتو سره چي تو له په یا د غیبت وه. او کسائي يې په تا د خطاب وايي چي خطاب هم هغو کسانو ته دی، نو په دې آیت کي علی قرائت الکسائي التفات دی له غیبت څخه و خطاب ته او استفهام لپاره د انکار دی. او نفي د نفي اثبات دی یعني قدروا ذالک.

اِلٰى مَا خَلَقَ اللّٰهُ مِنْ شَيْءٍ

و هغه ته چي خدای (ﷻ) پیدا کړي یو شی د اشیا که څه هم حقیر صغیر وي، نو مراد دادی چي ولي دوی و کمال قدرت ته د خدای نه گوري چي ایمان راوړي، او له عذابه د خدای نه بېرېږي چي هنوز پر شرک ولاړ دي.. سعدي رح:

برگ درختان در نظر هوشیار ..... هر ورقی دفتریست معرفت کردگار

يَتَفَيَّؤُا ظِلٰلُهٗ عَنِ الْيَمِيْنِ وَالشَّمَآئِلِ

چي میل کوي په ارتفاع د شمس او په انحدار د شمس، سایې د دغو کسانو و راسته او چپه خواته ددوی.

**پوه سه**: چي مراد له دغو شیانو څخه هغه اجسام مراد دي چي سایې لري.

**فائده**: مراد خو جانبین د هغه ذي الظل دي لکن اطلاق د یمین او شمال پر کول استعاره ده له یمین او له شمال څخه د انسان.

**فائده**: یمین يې مفرد راوړی او شمال يې جمع کړی، الاول نظراً الی لفظ ما، والثاني نظر الی معناه لکه مفرد راوړل د ضمیر د ظلاله او جمع کول ددې لفظ یعني شمائل.

سُجَّدًا لِّلّٰهِ وَهُمْ دٰخِرُوْنَ ﴿۴۸﴾

خضوع کونکي و خدای ﷻ ته. مظهري رح وايي چي مراد له سجود څخه انقیاد دی د امر د خدای ﷻ یا طبعًا کما یقال سجدت النخلة یعني مالت بسبب

كثرة الحمل يعني ميوه او اختيارًا كما يقال سجد البعير چي دی به چوک سو په اختيار سره لپاره د سپرتيا.

**پوه سه**: چي "سجدًا لله" او "وهم داخرون" دواړه حال دي له ضمير څخه د "ظلاله" والمعنى او ذوی يعني اصحاب الظلال داخرون او مذلل دي د امر د خدای ﷻ.

**سوال**: ضمير د "ظلاله" خو مضاف اليه دی او حال على ماتقرر في النحو مابيين هيئة الفاعل، او المفعول به؟

**ځواب**: روح المعاني وايي لان المضاف اليه كالجزء من المضاف او مضاف چي "ظلال" دی فاعل دی د "يتفيؤا".

**پوښتنه**: ضمير د هم او صيغه د داخرون خو په ذوی العقول پوري خاصه وه، نو د اصحاب الظلال چي درختي او ډبري او غرونه دي څرنګه اطلاق پر صحيح دی؟

**ځواب**: روح المعاني وايي يا دا اطلاق استعارةً دی او يا له دې سببه چي په اصحاب الظلال کي خو ذوی العقول يعني انسانان هم داخل دي، نو په ضمير او صيغه کي يې تغليب ذوی العقول ته ورکړی، او روح البيان هم ورته ځواب ذکر کړی دی، او مظهري رحمه الله هم اجمالي اشاره ودغه ځواب ته کړې ده.

**درويش وايي**: چي دا تحقيق ما خاص د طالبانو او د بعضو ملايانو لپاره وکړی، عوامو لره په دې تحقيق کي هيڅ فائده نشته لکن چونکه د فقير تفسير يوازې د عوامو لپاره نه دی بلکې د عوامو او خواصو لپاره دی، نو له دې سببه بعضي مطالب په خواصو پوري مربوط دي ماپکښي راوړي دي، البته د تفسير ژبه پښتو ده، نو هيڅ څوک دې ګله نه کوي.

**وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ مِنْ دَآبَّةٍ**

او خدای ﷻ لره خاص دي منقاد او مذلل نه د غير د خدای ﷻ لا انفرادًا ولا اشتراكًا، ويدل على الحصر والخصوص تقديم الجار والمجرور على عامله.

**فائده**: کلمه د "ما" عامه ده ذوی العقول او غير ذوی العقول لره كما حققه الجامي رح في شرح الكافيه، او پر تقدير ددې چي کلمه د ما خاص په غير ذوی

العقول پوري سي كما هو المشهور، نو بيا يې تغليب غير ذوى العقول ته په اعتبار د كثرت د افرادو پر ذوى العقول وركړى دى، يعني هغه شيان چي په اسمانو كي دي او هغه چي په مځكه كي دي.

**فائده:** مراد له مافي السموات څخه ټوله علويات دي چي لمر، سپوږمى، ستوري او ملكو ته شامل دي. او له مافي الارض څخه ټوله سفليات نه دي مراد بلكې من دابة بيان د مافي الارض والدبيب الحركة على الارض. ويدل عليه قوله تعالى "والله خلق كل دابة من ما" لان ما في السما كالملائكة لايكون خلقهم بالتولد وليس لهم دبيب بل لهم اجنحة يطيرون فيها.

وَالْمَلٰٓئِكَةُ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿۴۹﴾

او ملائكه كبر له عبادت او له انقياد څخه د خداى نه كوي. "والملائكة" عطف دى پر ما في السموات. او تخصيص بعد التعميم دى لان ما في السموات شامل للملائكة كمامر، وجه د تخصيص يې شرف د ملكو دى لكه عطف د جبرئيل پر ملكو په بل آيت كي.

يَخَافُوْنَ رَبَّهُمْ مِّنْ فَوْقِهِمْ وَيَفْعَلُوْنَ مَا يُؤْمَرُوْنَ ﴿۵۰﴾

**بوه سه:** چي دا جمله حال دى له ضمير مستكن څخه د "لايستكبرون" او دوى بېرېږي له خداى ﷻ څخه د لوړي خوا يعني چي پر موږ عذاب نازل نه كړي د لوړي خوا. او يا معنى داده چي دوى بېرېږي له خداى ﷻ څخه په داسي حال كي چي خداى ﷻ فوق دى يعني په قهر او غلبه سره پر دوى. كريمه "وهو القاهر فوق عباده". او دوى هغه كار كوي چي د خداى ﷻ له خوا څخه په امر كړل كېږي.

**بوه سه:** چي كلمه د ما موصوله ده او عائد يې محذوف دى اى ما يؤمرون به.

**فائده:** مراد د ما يأمرون طاعت د خداى ﷻ دى، او هغه كار چي د حال سره ددوى لائق وي.

**درويش وايي:** چي په مناسبت ددې مقام دا بيتونه لپاره د بخښنې د گنهو او بلكې د هر حاجت لپاره من حاجات الدنيا والآخرة او لپاره د اظهار د عجز او د

نفي الكبر والاستكبار د پر مجرب دی په شپه کي سره له طهارته درې درې واره وايي تر هغو چي مطلب يې حاصلېږي. او که يې هره شپه يو يو وار وايي ډېر به ښه وي. ابيات دادي:

يا من يرى مافي الضمير ويسمع ........ انت المعد لكل ما يتوقع
يا من يرجى للشدائد كلها ........ يامن اليه المشتكى والمفزع
يامن خزائن رزقه في قول كن ........ امنن فان الخير عندک اجمع
مالى سوى قرعى لبابک حيلة ........ فلين رددت فاى باب اقرع
مالى سوى فقرى اليک وسيلة ........ فبالافتقار اليک فقرى ادفع
ومن ذا الذي ادعوا واهتف باسمه ........ ان كان فضلک عن فقيرک يمنع
حاشا لجودک ان تقنط عاصياً ........ الفضل اجزل والمواهب اوسع
ثم الصلوة على النبي وآله ........ خير الانام ومن به يتشفع
لبست ثوب الرجاوالناس قد رقدوا ........ وبت اشكو الى مولاى ماجد
وقلت يا املى في كل نائبة ........ ويامن عليه لكشف الضراعتمد
وقد مددت يدی مفتقراً ........ اليک يا خير من مدت اليه يد
اشكوا اليک اموراً انت تعلمها ........ مالي على حملها صبر ولا جلد

پای ته ورسېدل ابيات د شيخ المشائخ حضرت ميان فقير الله قدس سره.

**درويش وايي:** چي هر مطلب چي د سړي وي هغه دي په زړه کي تر تمام د وينا دا ابيات وايي يعني غوښتنه دي کوي.

## وَقَالَ اللَّهُ لَا تَتَّخِذُوٓا إِلَٰهَيۡنِ ٱثۡنَيۡنِۖ

او ويلي دي خدای ﷻ چي تاسي مه اخلئ يعني عقيده او عبادت مه کوئ د خدايانو دوو.

**پوښتنه:** "الهين" خو تثنيه ده پر دوه واري دلالت کوي نو په ذکر کي اثنين څه فائده ده؟

**ځواب:** لپاره د دلالت پر دې چي مقصود په نهي سره د "اثنين" دی نه نفس معبوديت. ولي چي معبوديت د خدای ﷻ پر ځای دی او لازم دی.

**فائده**: که څه هم کفارو د مکې درې سوه شپېته (۳۶۰) خدایان درلودل، نو اقل د مراتبو د عدد چې دوه دي منهي عنه دی نو بالا تر هغه په طریق اولی ممنوع دی کما لا یخفی.

إِنَّمَا هُوَ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ

معبود بالحق یو دی.

**بوه سه**: چې په دې آیت کې که څه هم "اله" پر وحدت دلالت کاوه لکن د وحدت قید یې ددې لپاره ذکر کړی چې مقصود بالاثبات وحدت دی دون الالوهیة لان المشرکین لا ینکرون الوهیة تعالی بل یشرکون في معبودیته الاصنام.

فَإِيَّايَ فَارْهَبُونِ ﴿٥١﴾

نو خاص له ما څخه وېرېږئ په دې آیت التفات دی له غیبت څخه و خطاب ته.

**بوه سه**: چې ایراد د فا لپاره د جزا ده یعني ان ترهبون شیئًا فارهبوني وتقدیم المفعول علی شریطة التفسیر للمبالغة او کسره د نون لپاره د دلالت پر ما محذوفه دی لکه یعقوب رح په اثبات د یا وایي فارهبوني ففي الآية مبالغة في الدعوة الی التوحید کما لا یخفی فافهم.

وَلَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ

او خدای ﷻ لره دي خاص هغه شیان چې په اسمانو کې دي من الملائکة والشمس والقمر والنجوم وغیرها مما لا یعلمه الا الله تعالی او هغه شیان چې په ځمکه کې دي من الحیوانات والنباتات والمعدنیات وغیرها از روی خلق فلا یمکن خلق شیئ من غیره تعالی خلافًا للمعتزلة، دوی وایي چې خالق د افعالو د بندګانو بندګان دي، اهل سنت وایي چې خالق د افعالو د بندګانو خدای ﷻ دی بنده صرف کاسب دی والفرق بین الخلق والکسب دقیق مذکور في کتب علم العقائد والکلام وملکًا فلا یتصور الظلم في حقه تعالی لان الظلم هو التصرف في ملک غیره بغیر اذنه او مخلوق نه دی دا تصرف په شي د اشیاؤ بېله اجازې د خدای ﷻ.

ما

## وَلَهُ الدِّيْنُ وَاصِبًا

او خدای ﷻ لره دی دین او اخلاص دائما ثابتا او دا طاعت له بنده څخه نه ساقطیږي په هیڅ حال کي لانه هو الله وحده، نو بنده لره په کار ده چي له خدای ﷻ څخه دي بیریږي او عبادت دي د خدای ﷻ کوي په ټولو احوالو کي که غني وي که فقیر او اقتدا دي په ملائکه پسي کوي چي خدای پاک ددوی په شان کي وايي "لا یعصون الله ما امرهم ویفعلون ما یؤمرون" او په مقابل کي د طاعت د خدای دي د بل چا طاعت ته دي سر نه کښته کوي، قال رسول الله ﷺ لاطاعة لمخلوق في معصیة الخالق. او دا صحیح حدیث دی چي په مختلفو روایاتو او متقاربو الفاظو د علیه الصلوة والسلام څخه مروي دی.

**پوه سه**: چي بعض مفسرین ددې آیت وله الدین واصبا تفسیر داسي کړی دی چي دین په معنی د جزا دی پر اعمال د بندګانو دائما لاینقطع ثوابه لمن آمن ولاینقطع عذابه لمن کفر وقیل غیر ذالک والله اعلم بمراده في کتابه.

## أَفَغَيْرَ اللَّهِ تَتَّقُونَ

آیا له غیر څخه د خدای ﷻ تاسي بیریږئ والاستفهام للانکار یعني له ماسوی څخه د خدای ﷻ تاسي خوف مه کوئ اذ لا ضار سواه کما لانافع غیره تعالی.

## وَمَا بِكُمْ مِنْ نِعْمَةٍ فَمِنَ اللَّهِ

کلمه د ماشرطیه ده یا موصوله د متضمن معنی لره د شرط ده او فمن الله جزا ده. والمعنی هر نعمت چي په تاسي پوري ملحق او متصل وي هغه له جانب څخه د خدای ﷻ دی فیجب علیکم شکره تعالی "کریمه "لئن شکرتم لازیدنکم او مراد په نعمت سره عام دی من الصحة والعافیة في اعضا البدن والرزق والغنی والاولاد والمتاع. کریمه "وان تعدوا نعمة الله لاتحصوها.

**پوښتنه**: په قاعده د نحاتو خو جزا تر شرط وروسته وي نحو ان جائک زید فاکرمه یعني امر بالاکرام خو تر مجئ د زید وروسته دی وههنا لیس کک. ولي چي استقرار د نعمت خو تر من الله وروسته دی، واجاب عنه الآلوسي في روح المعاني

والبروسوي في روح البيان والمظهري في تفسيره بان معنى الشرط والجزا باعتبار الاخبار دون الحصول فان استقرار النعمة بهم يكون سبباً للاخبار بانه من الله لاغيره لاحصولها منه تعالى فانه مقدم على الاستقرار فتدبر غاية التدبر فانه دقيق.

**ثُمَّ إِذَا مَسَّكُمُ الضُّرُّ فَإِلَيْهِ تَجْأَرُونَ**

وروسته چي تاسي ته ورسېږي يو ضرر في المال من فقر او يا په بدن کي لکه ناجوړي او يا جدب او قحط درباندي راسي نو خاص الخاص و خداى ﷻ ته تاسي تضرع او زارى كوئ لا الى غيره لكه ستاسي بتان.

**پوه سه:** چي جوار پورته كول د اواز دى او استغاثه په دفعه كي د ضر واقع بكم.

**ثُمَّ إِذَا كَشَفَ الضُّرَّ عَنكُمْ إِذَا فَرِيقٌ مِّنكُم بِرَبِّهِمْ يُشْرِكُونَ**

بيا چي خداى ﷻ ستاسي د عجز او زاريو په سبب ضر واقع پورته كړي له تاسي څخه، نو ناڅاپه يوه ډله له تاسي څخه په رب كي ددوى شريک بولي د خداى سره يعني خپل بتان په عبادت كي.

**پوه سه:** كه خطاب عام وي نو كلمه د من تبعيضي ده، ولي مؤمنانو خو داغسي نه وي، او كه خطاب خاص په كافرانو پوري سي كما هو الظاهر من السياق، نو كلمه لپاره د بيان ده. والمعنى ففريق وهم انتم ايها الكفار.

**لِيَكْفُرُوا بِمَا آتَيْنَاهُمْ ۚ فَتَمَتَّعُوا ۖ فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ**

تاچي دوى كفر وكړي په هغو نعمتو چي مونږ دوى ته وركړي خصوصاً نعمت د كشف الضر عنهم بتضرعهم، نو لام لپاره د عاقبت دى او امر د "تمتعوا" لپاره د تهديد دى، ژر دى چي تاسي به پوه سئ په اغلظ عذاب اليم د خداى ﷻ ولي تاسي نعمتونه زما وغير ته چي ستاسي اصنام دي منسوب كړه او عبادت د غير الله ته مو دوام وركړى.

**تنبيه:** پوه سه! چي په حديث صحيح كي راغلي دي قال عليه الصلوة والسلام ما عبد اله ابغض على الله من الهوى ثم قال عليه السلام انما هو اله واحد، وهذا الحديث كانه تفسير لقوله تعالى "افرئيت من اتخذ الهه هواه" د هوى تفسير ما

بميل اليه الطبع وتهواه النفس للاشتها من غير دليل شرعي من الآية والحديث واجتهاد مجتهد كشرب الخمر والزنى وغير ذالک من المنهيات.

## وَيَجْعَلُونَ لِمَا لَا يَعْلَمُونَ

او گرځوي مشرکين د هغه شي لپاره چي هغه هيڅ علم نه لري بلکي جمادات دي چي مراد ځني بتان دي، نو ضمير د جمع په "لايعلمون" کي راجع دی و "وما" کلمه ته که څه هم مفرد دی لفظاً لکن جمع ده معنًى، ولي چي بتان خو ډېر دي، او بعض مفسرين وايي چي د "يجعلون" او د "يعلمون" ضمير دواړه راجع دی و مشرکينو ته او له "ما" څخه مراد بتان دي، او کلمه د "ما" موصوله ده عائد يې محذوف دی. والتقدير لما لايعلمونها. يعني مشرکان پر دې علم نه لري چي دغه بتان الهه دي او مستحق د عبادت دي او ضار او نافع دي بلکې جهلاً وتقليداً لآبائهم وايي چي دغه اصنام الهه دي تضر وتنفع وتشفع.

## نَصِيبًا مِّمَّا رَزَقْنَاهُمْ

يوه برخه له هغه مال څخه چي موږ په رزق ورکړي دي.

**پوه سه:** چي "نصيباً" مفعول به د "يجعلون" دی. دوی به حرث او انعام کي داسي ويله. کريمه "فقالوا هذا لله بزعمهم وهذا لشركائنا.

## تَاللَّهِ لَتُسْأَلُنَّ عَمَّا كُنتُمْ تَفْتَرُونَ ﴿٥٦﴾

قسم په خدای دی چي هر آئينه به ستاسي څخه سوال کبري يعني په ورځ د قيامت د هغه شي چي تاسي پر خدای ﷻ دروغ ويله يعني ان الاصنام شركائه تعالى هذا وعيد شديد لهم، وفي الآية التفات من الغيبة الى الخطاب وهو من محسنات العربية كما في كتب المعاني والبيان والبديع.

## وَيَجْعَلُونَ لِلَّهِ الْبَنَاتِ سُبْحَانَهُ

او دوی گرځوي يعني حکم کوي په ثبوت د لوڼو خدای ﷻ لره چي خزاعة او کنانه دوه قومه وه چي دوی به ويل چي ملائکه بنات الله دي اوامهاتهم بنات سروات الجن "سبحٰنه" خدای ﷻ پاک دی له نفس ولد څخه که زوی وي او که لور.

**یوه سه:** چي کېدای سي چي "سبحٰنه" دي لپاره د تعجب وي لقولهم هذا لان العرب يستعملون هذا اللفظ للتعجب ايضاً.

وَلَهُم مَّا يَشْتَهُونَ ﴿٥٧﴾

او دوی لره هغه اولاد دي چي ددوی خوښه وي يعني البنين. زامن.

**یوه سه:** چي کلمه د "ما" مرفوع محلاً ده او لهم يې خبر مقدم دی.

وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُم بِالْأُنثَىٰ ظَلَّ وَجْهُهُ مُسْوَدًّا وَهُوَ كَظِيمٌ ﴿٥٨﴾

او چي زېری وکړل سي و يوه ته ددوی په ولادت د لور، وګرځي مخ دده تور ټوله ورځ، ولي په ورځ کي خلګ پېغور ورکوي چي فلانيـه لور دي زو کړې ده. او بل دا چي ورځ د غم او خوشالۍ وخت دی په سبب د اختلاط د خلګو سره او شپه زمانه د خوب او غفلت ده "مسوداً" تور له حيا څخه د خلګو.

**یوه سه:** چي اسواد الوجه کنايه ده له ډېره غمه څخه کـه څـه هم ظاهراً تور نـه وي "وهو كظيم" او دی د غم او غصې ډک وي کـه يې څه هم اظهـار نـه کـوي. پـه شرعه کي چي د فقهي يو کتاب دی وايي چي مؤمن لره په کار ده چي پـه لـور دي ډېره خوشالي ښکاره کوي مخالفةً لاهل الجاهلية.

**درویش وايي:** چي په اوسنۍ زمانه کي دا مشکله ده الا لخواص اهل الله.

**حکایت:** خليفة المسلمين هارون الرشيد يوه شپه خوب ليدلی ؤ چي مخ يې تک تور وي. سهار چي راويښ سو له ډېره غمه مغموم او فکرجن ؤ. نو ملايان يې راوغوښتل چي ددې خوب څه تعبير دی ملايان هم فکرجن سوه لکن د خليفـه د زړه د ارام لپاره بعضو ورته وويل چي دا خوب يو ګډوډ خوب دی بعضو ورته وويـل چـي دا خوب د شيطان له خوا څخه دی چي صرف مطلب يې دادی چي تا پـه غم کـي واچوي. بعضو ورته وويل چي ښه خلګ چي داسي خوب ويني ترجمه يې بالعکس ده. لکن د هارون الرشيد زړه اطمئنان نـه کـاوه. ولـي چـي پـه دې پـوه سو چـي دا مراعاتي تعبيرونه دي. او رئيس المفسرين و المعبرين في عصره يعني علامه ابن سرين رح يې طلب کړی علما دلته ناست وه. ابن سيرين رح ته يې خوب ووايه. نو

هغه ورته وویل چي دا هیڅ مشکل خوب نه دی، تاته به خدای ﷻ لور درکړي، د مجلس علماؤ ورته وویل چي دا تعبیر تا له څه درکه وکړی؟ ابن سیرین رح ورته وویل چي د هغه آیت له درکه "واذا بشر احدهم بالانثی ظل وجهه سوداً وهو کظیم" دی په داغه بحث کي اخته ؤ چي له حرم سرایه د هارون الرشید قاصد راغلی چي زیری مي درباندي لور دي پیدا سوه، د هارون الرشید تر له غم او غصه دفعه سوه، او حاضرین علماً د ابن سیرین رح پر تعبیر احسنت احسنت باران وکړی، او هارون شل زره طلاوي ابن سیرین رح ته په طور د انعام ورکړې انتهی.

# يَتَوَارَىٰ مِنَ الْقَوْمِ مِن سُوٓءِ مَا بُشِّرَ بِهِۦٓ ۚ أَيُمْسِكُهُۥ عَلَىٰ هُونٍ

دا د لور خاوند ځان پټ ساتي له خپل قوم څخه د حیاً او د پېغور له کبله، له سببه د بدوالي د هغه شي چي ده ته زیری په وکړل سو یعني لور، په دې کي متردد وي چي ژوندۍ یې پرېږدم د اهانت او سپکاوي پر حال.

**بوه سه:** چي ضمیر د "یمسکه" راجع دی و "ما" ته باعتبار اللفظ لانه مذکر دون المعنی لانه انثی، بغوي رح وایي چي قوم د مضر، کنانه او خزاعه دا عادت درلودی چي لونې به یې ژوندۍ په خاورو کي ښخولې چي دې ته په عربي وأد البنات وایي، یعني زنده درگور کردن "خوفًا من الفقر علیهن، او له جهت څخه د غیر کفو په دوی کي او که سړی د دغو عربو چي لور به یې وزېږېدل او ده به اراده وکړه چي ژوندۍ به یې پرېږدم، نو یو قمیص د وړیو یا د وجغونو چي لږ به لو سوه نو به یې پسونه په څړول په صحرا کي، وذالک معنی قوله تعالی "ایمسکه عن هون" ای حالت الزلة.

# أَمْ يَدُسُّهُۥ فِى ٱلتُّرَابِ ۗ

که یې پټه کړي ژوندۍ په خاورو کي، نو اراده د قتل به یې وه، نو چي لور به یې د شپږو کالو سوه، نو مور ته به یې وویل چي په لور دې ښه کالي واغونده او سترگې یې ورتوري کړه چي د عزیزانو کور ته یې بیایم، او پلار به دمخه لا د څاه غوندي ځای جوړ کړی ؤ په صحرا کي، لور چي به یې هغه څاه ته وروړ رسول پلار به یې ورته

وويل چي ته په دې ځاه کي وګوره، هغې چي به ورته وکتل ده به پسي ورپوري وهل، ځاه ته چي به ور ولوېدل خاوري به يې پسي ورواچولې پټه به يې کړل.

**درويش وايي:** چي عجيب زړونه وه ددغو جاهليت والاوو چي تر زړو د حيواناتو بد تره وه، هيڅ حيوان د خپل اولاد سره ورته کار نه کوي.

**فائده:** دا د عليه الصلوة والسلام معجزه ده او د قرآن عزيز برکت دی چي داسي جاهل قوم يې مهذب کړی دی چي په نړۍ کي د عربو مثل اوس نه ليدل کېږي.

أَلَا سَاءَ مَا يَحْكُمُونَ ﴿٥٩﴾

آګاه اوسه چي بد دی هغه شی چي کفار د جاهليت په بنه سره حکم کاوه، يعني چي خدای ﷻ چي متعال دی د نفس ولد څخه يعني که نر وي او که ښځه دوی و هغه خدای ﷻ ته د اسؤ الفريقين يعني نران او ښځي دي، او هغه خوار شی چي لوڼو ده ته يې نسبت کاوه او د خپل ځانو لپاره يې هغه اسؤ الفريقين نه ؤخوښ کما قال الله تعالى في موضع من القرآن الكريم "الكم الذكر وله الانثى تلك اذا قسمة ضيزى"

لِلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ مَثَلُ السَّوْءِ ۖ وَلِلَّهِ الْمَثَلُ الْأَعْلَىٰ ۚ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٦٠﴾

لپاره د هغو کسانو چي ايمان پر اخرت نه لري چي هغه کسان دي چي خدای ته بنات منسوبوي، صفت دی بد چي حاجت و ولد ته دی خصوصًا الذکور لبقآ النسل بعد موته وکراهية الاناث و وأد البنات خشية الفقر، او خدای ﷻ لره دی صفت اعلى چي وجوب الوجود دی او غني مطلق دی وانه لا اله الا هو، او خدای موصوف دی په صفاتو د جمال او کمال او په صفاتو د جلال کالعلم الشامل والقدرة الکاملة وغيرهما، او منزه دی د صفاتو د مخلوق والحدوث والاحتياج والغنا والعجز وغير ذالک، او خدای ﷻ په کمال غلبه سره موصوف دی او کمال حکمت دده ويار دی.

وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللَّهُ النَّاسَ بِظُلْمِهِم مَّا تَرَكَ عَلَيْهَا مِن دَابَّةٍ
او خدای (جل جلاله) ونسي خلګ په ظلم سره ددوی یعني عاجل عقوبت او عذاب پر نازل کړي.

**پوه سه:** چي الف ولام په الناس کي لپاره د عهد دی بقرينة المواخذة واضافة الظلم چي معنی دلته کفر دی او عصيان "ماترک عليها آه" دا آيت جزا د "لو" ده يعني نه به وای پرې ايښی خدای جل جلاله پر مځکه باندي يو دابة. والدابة مايدب على الارض ای يتحرک فيها.

**سوال:** لفظ د ارض خو دمخه نه دی ذکر سوی. نو ارجاع وضمير و ارض ته به اضمار قبل نه وي؟

**ځواب:** لا ولي چي ذکر د مرجع عام دی که لفظاً او که دلالةً وي، دلته لفظ الناس پر مځکه دلالت کوي لانهم من سکان الارض.

**پوه سه:** چي مراد د "دابة" ظالمه ده يعني الکفار رواه صاحب تفسير المدارک عن ابن عباس رضي الله عنهما او يا مراد له دابة څخه من دواب الارض يعني غير المؤمنين الصالحين، ولي مسئله داده چي نه ده روا چي خدای جل جلاله دي هلاک کړي مؤمنان په ظلم او کفر د ظالمانو، البته که مؤمنانو امربالمعروف او نهي عن المنکر نه کاوه او عذاب د خدای جل جلاله لکه قحط او وبا نازل سو، بيا مؤمنانو او ظالمانو دواړو ته رسيږي لرضا المؤمنين بذنوب الظالمين وترکهم ماوجب عليهم من الامر بالمعروف والنهي عن المنکر کما قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ان الناس (ای المؤمنون) اذا رؤا منکراً فلم يغيره اوشک (قريب ده) ان يعمهم الله وبعقابه. رواه ابن ماجه والترمذي. او بعض مفسرين وايي چي مراد په آيت تولـه دواب د مځکي دي سوی المؤمنين الصالحين څخه، ولي وجود د نورو دوابو تبع دی د انسانانو ولي چي نفع ددوی ته راجع ده، کريمه "خلق لکم مافي الارض جميعًا" قتاده وايي قد فعل الله ذالک في زمن نوح عليه السلام فهلک من على الارض الا من کان في سفينة نوح عليه السلام.

**پوه سه:** چي بيهقي رح له ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چي يو سړي د ابو هريره رضي الله عنه په مخ کي وويل چي ظالم ضرر نه رسوي مګر خپل ځان ته، ابو

هريره ﷺ ورته وويل "بلى والله" يعني ضرور يې بل چاته هم رسېږي 'حتى الحبارى لتموت في وكرها هزلاً بظلم الظالم يعني بقحوط المطر فلا ينبت نبات.

وَلَٰكِن يُؤَخِّرُهُمْ إِلَىٰٓ أَجَلٍ مُّسَمًّى

لكن مهلت وركوي خداى ﷻ په خپل علم سره. تر هغه اجل پورې چي معين دى په علم كي د خداى ﷻ.

فَإِذَا جَآءَ أَجَلُهُمْ لَا يَسْتَأْخِرُونَ سَاعَةً وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ ﴿٦١﴾

نو چي راسي اجل موعود او مسمى ددوى نه ځنډول كېږي دوى تر اجل وروسته يو ګړى، او نه دمخه كېږي تر اجل.

درويش وايي: چي په دې آيت كي يو سوال مشهور سته، هغه دا چي "ولا يستقدمون" خو عطف دى پر "لايستأخرون" باندي، نو تقدير د آيت داسي كېږي "اذا جاء اجلهم لايستقدمون" وهذا ممتنع يعني د اجل تر راتلو وروسته دوى دمخه سي مثلاً د يو سړي د اجل ورځ د جمعې ورځ وي، نو چي جمعې ته راورسېږي، نو څرنګه به دى د پنجشنبې په ورځ مړ سي، ولې تر پنجشنبې خو دى ژوندى راتېر سوى دى، ددې سوال په ځواب كي بعض مفسران وايي چي "لايستقدمون" پر "لايستأخرون" عطف نه دى حتى يلزم المحال المذكور بلكي پر مجموع شرطيه. فتقدير الآية ولكن يؤخرهم الى اجل مسمى لايستقدمون، فلا محذور فافهم، والى هذا الجواب ذهب جمهور المفسرين، او روح البيان په دغه عبارت ځواب وركړى دى وانما تعرض لذكره يعني "لايستقدمون" مع انه لايتصور الاستقدام عند مجئ الاجل (كما ذكرت في المثال المذكور آنفًا) مبالغةً في عدم الاستيخار بنظمه في سلك ما يمتنع فتدبر غاية التدبر هداك الله الى فهم الدقائق والله المستعان.

وَيَجْعَلُونَ لِلَّهِ مَا يَكْرَهُونَ

او دوى ګرځوي خداى ﷻ لره هغه شى چي دوى يې بد بولي د خپل ځان لپاره، يعني البنات والشركا في الرياسة والاستخفاف برسلهم.

**پوه سه**: چي مراد له جعل څخه جعل په معنی معروفه سره نه دی، بلکي جعل په معنی د حکم او عقيدې دی.

## وَتَصِفُ أَلْسِنَتُهُمُ الْكَذِبَ أَنَّ لَهُمُ الْحُسْنَىٰ

او وايي ژبې ددوی درواغ سره د ماقبل "ان لهم الحسنی" دا بدل ده له کذب څخه چي دوی لره خصلت حسنی سته، يمان رح وايي چي مراد ددې جنت دی په قيامت کي.

**پوښتنه**: دوی يعني مشرکان خو له بعث بعد الموت او له جنت او دوزخ څخه منکر وه، نو دوی څرنګه وايي چي موږ لره جنت سته؟

**ځواب**: دوی دا خبره علی الفرض والتقدير کوله حيث کانوا يقولون نحن في الجنة ان کان محمد صادقاً في البعث بعد الموت.

## لَا جَرَمَ

ای لامحالة، نو پر دې تقدير "لاجرم" مجموع يوه کلمه ده په معنی د حقا ده، بغوي رح وايي چي د "لاجرم" معنی د ابن عباس رضي الله عنهما په نيز "بلی" ده چي مخصوص په ځواب پوري د نفي دی.

**درويش وايي**: چي پر دې تقدير "لاجرم" دوې کلمې دی، نو لا نفي دی د کلام سابق "ان لهم الحسنی" ولي د هغه معنی خو داوه چي موږ اور ته نه داخليږو، نو خدای پاک پر دوی رد وکړی په لا سره او جرم په معنی د "حقا" ده نو حاصل يې "بلی" "حقا" سوه، او زجاج وايي چي لا رد د کلام سابق دی کما مر عنقريب وجرم بمعنی کسب دی وان لهم آه، او قطرب وايي چي لا رد دې د کلام سابق ددوی يعني ان لهم الحسنی او جرم په معنی د ثبت و وجب دی وان لهم آه محلاً مرفوع دی فاعل د جرم دی.

## أَنَّ لَهُمُ النَّارَ وَأَنَّهُم مُّفْرَطُونَ ﴿٦٢﴾

په تحقيق دوی لره اور دی په عوض کي د ماقالوا ان لهم الحسنی آه او په تحقيق دوی، په قاموس کي وايي د "مفرطون" په معنی کي ای منسيون متروکون في النار

او مقدمون معلجون اليها. قال البغوي رحمه الله قال ابن عباس رضي الله عنهما منسيون في النار. وقال مقاتل رحمه الله متروكون في النار. وقال قتاده رحمه الله معجلون في النار.

**درويش وايي:** چي دا ټولې معانې يو له بل سره نژدې دي. وكلها صحيحة.

## تَاللّٰهِ لَقَدْ اَرْسَلْنَآ اِلٰٓى اُمَمٍ مِّنْ قَبْلِكَ

قسم په خداى جل جلاله دى چي په تحقيق ما استولى وُ خلګو ته (يعني رسلاً فالمفعول محذوف) و جماعاتو ته د خلګو يعني لكه ته چي استولى يې ودې امت ته يعني رسالت د بشر و انسانانو ته كوم نوى شى نه دى حتى يقولون ابعث بشراً رسولاً بلكې رسالت يو قديم عادت او نعمت د خداى جل جلاله و انسانانو ليخرجونهم من الظلمات الى النور ومن الاشراك الى التوحيد.

## فَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ اَعْمَالَهُمْ

نو ښائسته كړه دوى ته يعني الامم شيطان عملونه ددوى چي عبادة د غير الله دى. يعني شيطان ددوى په زړو كي دا ورواچول چي عبادت د بتانو كوئ.

**درويش وايي:** چي مراد اكثر الامم دي ولي په هر امت كي مؤمنان هم پيدا سوي وه وان كانوا قليلون.

## فَهُوَ وَلِيُّهُمُ الْيَوْمَ

نو شيطان ولي د دوى دى يعني قرين. والمعنى شيطان ددوى ملګرى دى يعني ودوى ته اعمال خبيثه ددوى چي اعلى يې شرک دى ودوى ته ښائسته كوي. مظهري رحمه الله وايي چي ضمير د "هم" راجع دى و كفارو ته د قريشو. ولي چي سوق د كلام په دوى كي دى. له "اليوم" څخه مراد موجوده زمانه ده يعني لماكان مزيناً لمن كان قبلكم من الامم يعني شيطان د هغو له اضلال څخه و اضلال د كفار قريش فارغ سو. او دا هم روا ده چي ضمير د "لهم" و امم سابقه وو ته راجع دى. نو دا حكايت د حال ماضيه دى. يعني كان الشيطان ولي الامم السابقة في الدنيا فزين لهم الكفر والمعاصي. او دا هم روا ده چي مراد له يوم څخه دي ورځ د قيامت وي. نو پر دې تقدير آيت حكايت دى د حال آتيه. فالمعنى ان الشيطان

قرين يوم القيامة مع التابعين له په وسپنو کي سره تړل، او يا معنى داده چي شيطان ناصر ددوی دی په ورځ د قيامت يعني لاناصر لهم غير الشيطان وهو عاجز عن نصر نفسه فكيف ينصرهم.

وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٦٣﴾

يعني في يوم القيامة دوی لره عذاب درد ورکونکی، نو "اليم" چي وزن يې د فعيل دی په معنی د مولم دی چي اسم فاعل له بابه د افعال دی. او بيضاوي رح هغه شعر ددې شاهد گرځولی دی.

امن ريحانة الداعي السميع (ای مسمع) .... يورقني واصحابي هجوع

وَمَآ أَنزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَٰبَ إِلَّا لِتُبَيِّنَ لَهُمُ الَّذِى اخْتَلَفُوا فِيهِ ۙ وَهُدًى وَرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿٦٤﴾

او ما نه دی نازل کړی پر تا يا محمد (ﷺ) کتاب يعني القرآن العزيز مگر نه ددې لپاره چي ته بيان کړې خلگو ته (يعني خصوصًا و عمومًا) هغه مسئله چي خلگو اختلاف درلودی په هغه مسئله کي من التوحيد والبعث بعد الموت والجنة للابرار والنار للاشرار وغير ذالک من العقائد والاحكام الاشرعية. او دا کتاب هدايت او رحمت دی د مؤمنانو لپاره.

**پوه سه:** چي هدی او رحمت دواړه مصدرونه دي او حمل يې پر کتاب مبالغةً دی نحو زيد عدل او تخصيص د مؤمنين چي يې وکړی، ولي چي مؤمنانو پر قرآن نفع واخستل چي ايمان يې پر راوړی او مستحق د رحمت الهي وگرځېدل وان كان هدايت القرآن بمعنى ارائة الطريق عامة لجميع الناس ولذا ورد في وصف القرآن هدًى للناس.

**فائده:** هدًى ورحمةً دواړه مفعول له دي او عطف دي پر محل د "التبيين" كما في قولهم مررت بزيد وعمراً. او دغه دواړه فعل دي د فاعل د انزلنا لکه دا هم شرط نحوي د مفعول له چي فاعل د مفعول له دی او د فعل معلل به په سره يو وي چي په دې ځای کي فاعل خدای ﷻ دی بخلاف لتبين لانه فعل المخاطب

وهو رسو الله ﷺ كذا في روح البيان وتفسير المظهري وروح المعاني الا ان صاحب روح المعاني قد اطال الكلام بايراد السؤال والجواب وكذا قال الحلبي والخازن. فتأمل.

**وَاللَّهُ أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا**

بيان دی د نعمت اخرى للناس او اظهار د قدرت عظمی خپل دی. خدای پاک اورولي د اسمان څخه يا لـه وريځي څخه (لان كل ما علاک سما) اوبه يعني باران (تنوين د ما لپاره د بعضيت دی. ولي چي ټولي اوبه په يوه وار نه اوري) نو يې ژوندی کړې ده په هغو اوبو سره مځکه.

**يوه سه:** چي حيوٰة د مځکي دادی چي نباتات پر شنه سي او سر سبز و شاداب وګرځي وروسته تر مرګ د مځکي.

**يوه سه:** چي مرګ د مځکي کنايه ده لـه دې څخه چي روح نباتي ځني سلب سي لکه په موسم کي د ژمي چي مځکه سپېره وي.

**إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّقَوْمٍ يَسْمَعُونَ ﴿٦٥﴾**

يـه تحقيق پـه دې احيـا كي د مځکي وروستـه تـر مـرګ ددې دليـل واضـح او حجة عظيم دی پر بعث بعد الموت باندي هغه کسانو لره چي په سماع د فكر عميق قرآن مبارک اوري.

**وَإِنَّ لَكُمْ فِي الْأَنْعَامِ لَعِبْرَةً ۖ نُّسْقِيكُم مِّمَّا فِي بُطُونِهِ**

او تاسي لره په انعامو كي يعني الابل والبقر والغنم هر آئينه عبرت سته (يعني دلالت سته چي تاسي لـه جهل څخه د شرک و علم ته د توحيد راباسي) موږ څښنو په تاسي له هغو شيانو چي په نسو كي د دوی دي.

**يوه سه:** چي "نسقيكم" جمله مستأنفه ده لپاره د بيان د عبرت.

**سوال:** ضمير د "بطونه" مذكر يې ولي مذكر او مفرد راوړی. او سره ددې چي راجع و انعام ته دی؟

**ځواب:** نظر ولفظ ته د والانعام ولي چي انعام اسم جمع دی لفظ يې مفرد دی

معنى يې جمع ده. ځکه يې سورت المؤمنين په مونث راوړى دى نظر و معنى ته سيبويه رح د انعام لفظ په مفرداتو كي راوړى دى چي پر لفظ د افعال جوړ دى كاخلاق كذا قال الفراء. وقال ابو عبيدة والاخفش رح ان النعم والانعام واحد چي مذكر او مونث دواړه مستعملېږي، چي مونث مستعمل سي په لحاظ د معنى او څوک چي يې مذكر مستعمل كړي په اعتبار د لفظ دى. او كسائي رح ضمير راجع بولي و ما ته يعني في بطون ماذكرناه. او بعض مفسرين وايي چي افراد په اعتبار د جنس دى.

**پوه سه**: چي كلمه د "من" په مما كي لپاره د تبعيض ده لان اللبن بعض مافي البطون دى ولي چي په بطن كي انعام خو نور شيان هم سته. او ضمير د بطونه راجع دى و بعض ته د انعامو وهو الاناث لان اللبن لايكون للذكور.

## مِنۢ بَيۡنِ فَرۡثٖ

كلمه د "من" ابتدائيه ده متعلق په "نسقيكم" پوري ده.

**پوه سه**: چي فرث خوشيو ته وايي چي د حيوان په كرش كي چي لكه معده د انسان جمع وي. او چي تر دبره د حيون ووتل بيا يې فرث نه بولي.

## وَدَمٖ لَّبَنًا خَالِصٗا

يعني په منځ كي د فرث او وينو خداى جل جلاله په خپل قدرت سره پيدا كوي شيدې خالصې چي نه د فرث بوى ورسره وي نه د وينو رنګ پکښې وي مع كون اللبن متولدا بينهما.

## سَآئِغٗا لِّلشَّٰرِبِينَ ۝٦٦

چي ښه په اسانى سره تر حلق تېرېږي يعني څوک شيدې په ساه نه وهي لكه اوبه چي بعض وخت څوک په ساه ووهي.

فضيلت اللبن: عليه الصلوة والسلام ويلي دي چي دوډى يا غوښي وغيره خوري، نو داسي دعا دي كوي اللهم بارک لنا فيه واطعمنا خيرا منه. او كه يې شيدې وڅښلې، نو داسي دعا دي كوي "اللهم بارک لنا فيه وزدنا منه" عليه الصلوة والسلام فرمايي فاني لا اعلم شيئا انفع منه اى اللبن.

**درویش وایي**: چي هم دا سبب دی چي طبیبان یا ډاکټران په هیڅ مرض کي له شیدو څخه پرهېز نه ورکوي، او ډاکټران وایي چي څورلس ویټامینه چي په غذائي موادو کي منقسم دي، ټوله دغه ویټامینونه په هیڅ غذا کي جمع نه دي بېله شیدو، او د شیدو دا فضیلت بس دی چي که چا په خوب ولیدل چي ما شیدو وڅښېلې ټوله معبران یې تعبیر په علم سره کوي چي اشرف د صفاتو د بشر دی کریمه "وقل رب زدني علماً".

**فائده**: درویش وایي: چي په اصطلاح کي د قرآن او احادیثو شریفه وو خو لبن شیدو ته وایي لکن عرب اوس اوس یو عرف حادث لري چي لبن شلومبو ته وایي او شیدو ته حلیب وایي.

**قصه**: درویش وایي: چي زه یو کال حج ته تللی وم ډېر پخوا چي په مینا کي د توکرانو خیمې وې، نو موږ یو څو کسه حاجیان اندیوالان وو چي د شکرېې په له ذبح څخه تر اندیوالانو دمخه خېمې ته راغلم، یو عرب ناري وهي لبن لبن. نو زما خو د شیدو خیال سو، نو مي یو څو قرشه ورکړه هغه اعرابي ډېري شیدې زما په گمان راکړې ما تعجب وکړی چي دا شیدې یې څرنگه ارزانه راکړې نو مي ستهوپ ولگاوه لږ اوبه مي ورواچولې چي هغه وه ایشېدلې چای مي ورواچولې او بوره مي هم ور واچول پخې مي کړې د لبن په اچولو سره، زما دا خیال ؤ چي اندیوالان راسي دا شیرچای به وخورو خیر اندیوالان راورسېدل ما ته یې وویل چي مولوي صاحبه څه شي دي باندي کړي دي ما ورته وویل چي شیر چای دي، خیر دوی کوپونه راواخستل ما شیر چای ورتوی کړې، دوی چي یو غړپ څني وکړی، نو یې وویل چي مولوي صاحب دا خو دي شلومبو ته چای او بوره اچولي دي، ما چي یې خوند وکتی رشتیا هم شلومبې وې، دا ؤ تبدیل د اصطلاحي غلطیا، اوس بیرته د آیت د تفسیر پر خوا.

په تفسیر کواشي کي وایي خلق الله اللبن في مكان وسط بين الفرث والدم، ولي چي حیوان چي په خپل کرش کي واښه وغیره پاخه کړي یعني هضم یې کړي، نو په کبنسته حضه کي د کرش فرث پیدا سي او په منځ کي یې لبن خالص

پیدا سي چي بل شی په ګډ نه وي، او په لوړه حصه کي يې وينه پيدا سي او په منځ کي ددغو درو چي په لون، بوی او غوند سره مخالف دي قدرت د خدای ﷻ مانع وي چي يو له بله سره ګډېږي نه په خوند، نه په بوی او نه په رنګ کي مع شدة الاتصال بينها، بيا هينه چي کبد يې بولي پر مسلط کړل سي پر دې درې وصفو باندي، نو هينه وينه ورګو ته د بدن واستوي او شيدې و غولانځي ته؛ حيوان ولېږي او فرث په کرش کي باقي وي څو کښته تر دبره د حيوان وځي.

**سوال**: مور ځيني وخت حيوان ذبح کړو، نو په کرش کي نه شيدې وي او نه وينه، نو دا خبره څرنګه صحيح ده چي په کرش کي د حيوان وينه، شيدې او فرث درې سره وي؟

**خواب**: د کواشي رح مطلب دادی چي په کښته حصه کي د کرش ماده د فرث ده او په منځ کي د ماده د لبن ده، او په اعلا کي يې ماده د دم ده.فالمنحدر الى الضرع مادة اللبن فيصير هناک لبنًا. د علامه زمخشري رح له بلاغاتو څخه دا شعر دی:

كما يحدث بين الخبيثين ابن لا يؤبن ...... الفرث والدم يخرج بينهما لبن

لکه چي پيدا کېږي په منځ کي د پلار او مور چي دواړه خبيث يعني کافران وي، زوی چي نه وي دده سره ګډ نه خباثت د پلار او نه مور يعني مؤمن طاهر وي داغسي دي فرث او دم چي په منځ کي د لبن پيدا کېږي چي نه خباثت د وينو پکښي سته چي رنګ دی او نه خباثت د فرث چي بد بويي ده.

**سوال**: ځيني وختونه د حيوان له غولانځي څخه وينه راسي، نو څرنګه صحيح ده چي ضرع ته لبن ورځي؟

**خواب**: په سبب د يو آفت په غولانځه کي هغه شيدې وينه وګرځي، له شقيق البلخي قدس سره څخه چا پوښتنه وکړه چي اخلاص په عبادت کي د خدای ﷻ څه شی دی؟ ده ورته وويل تمييز العمل من العيوب كتمييز اللبن من بين دم وفرث.

وَمِنْ ثَمَرٰتِ النَّخِيْلِ وَالْاَعْنَابِ تَتَّخِذُوْنَ مِنْهُ سَكَرًا وَّرِزْقًا حَسَنًا ؕ

كلمة من متعلقة بمحذوف اى ونسقيكم من آه، حسين کاشفي رح وايي: وی

اشا مانيم شمارا ارگونه میوهای درختان خرما ودرختان انگورها، نو مراد له نخیل څخه چي جمع د نخل ده د خورما درختي دي. او مراد له اعناب څخه چي جمع د عنب ده د انگور درختي دي.

**پوه سه:** چي ضمیر د منه راجع دی و عصیر مخذوف ته. والمعنى تاسي جوړوئ له هغه عصير څخه او لفظ مصدر دی مراد ځني خمر دی او مراد له رزق حسن څخه خورما او دوښا او له انگورو څخه وڅکي او رُب او سرکه ده. نو پر دې تقدير دا آیت دمخه تر تحريم د خمر دی، او په دې آیت کي اشاره وکراهت ته د خمر قبل التحريم. ولي د سكر مقابل رزق حسن راوړی. او مقابل د حسن خو حسن نه وي نو ادنى مرتبه يې كراهت دی كذا في روح البيان.

**فائده:** تتخذون جمله مستأنفه ده د بیان د کیفیت د استقا چي محذوف و.

**إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿٦٧﴾**

په تحقيق په دغه مذكوره في الآية السابقة كي دليل د قدرت د خداى ﷻ دى هغه قوم لره چي دوى له عقل سليم څخه كار اخلي او د خداى ﷻ په منزله آياتو كي د قرآن عزيز فكر وهي.

**وَأَوْحَىٰ رَبُّكَ إِلَى النَّحْلِ**

او الهام کړی او په زړه کي ور اچولی رب ستا و مچمچی ته.

**أَنِ اتَّخِذِي مِنَ الْجِبَالِ بُيُوتًا وَمِنَ الشَّجَرِ وَمِمَّا يَعْرِشُونَ ﴿٦٨﴾**

چي ته جوړوه (ان مفسرة دی که څه هم ان مفسره وروسته تر قول راځي لکن په "وحي" كي معنى د قول سته) له غرو څخه يعني په غرو كي خوني يعني چرگنی او په درختو کي او په بامو کي د خلگو.

**پوه سه:** چي كلمه د من درې سره ځایه د تبعیض لپاره ده لان النحل لا يبنى في كل جبل وكل شجرة او ددې و چرگني ته يې بيوت وويل تشبيهاً بيناً الانسان البيت للسكونة.

**درويش وايي:** چي "نحل" له عجائبو څخه د مخلوق د خداى ﷻ ده (١) له

خولې څخه عسل راباسي او له نبښه څخه زهر (۲) وکفی للنحل شرفاً قوله تعالی و اوحی ربک (۳) وکل ذباب في النار الاذباب العسل (۴) په عجائب المخلوقات کې وايي چې د کوچني اختر ورځي ته یوم الرحمة وايي، او په دغه ورځ کې خدای ﷻ و نحل ته یعني مچمچی ته صنعة العسل الهام کړی دی (۵) په حیوة الحیوان کې وايي چې د نحل خوړل حرام دی که څه هم عسل يې حلال دي لکه د ښځې شيدې کوچني ته که خپل وي او که بېگانه وي حلالي دي او غوښې يې حرامې دي (٦) د نحل قتل ناروا دی لانه قطع مادة العسل الذي فیه شفاً کما سیثاتي (۷) د نحل خرڅول چې دوی ټولې په خپل شرګنې کې وي او یا خلګو چې صندوقان ورته اېښي وي روا ده. او که دوی نه وي پکښې بلکې په اکل الثمرات پسې تللې وي نه ده روا لانه بیع الغائب کذا في التتمة، او امام اعظم رحمه الله وايي چې د نحل بیع لکه د نورو حشراتو داسې ده یعني نه ده روا (۷) نحل د خپل ځان لپاره بیوت مسدسه جوړوي یعني چې شپږ ضلع لري او دا شپږ ضلع داسې سره برابري وي بې پرکاره چې حاذقان د مهندسانو بېله الاتو نسې جوړولای.

ثُمَّ كُلِي مِن كُلِّ الثَّمَرَٰتِ

بیا خورک کوي له ټولو مېوو څخه چې ستاسې اشتهاً ورته کېږي او که تاسې ته مېسر سي که خوږې وي او که ترخې وي.

پوه سه: چې لام په الثمرات کې لپاره د جنس دی د استغراق لپاره نه دی لان کل الثمرات علی الاستغراق غیر ممکن لهن کما لایخفی.

فَاسْلُكِي سُبُلَ رَبِّكِ ذُلُلًا

دا ځواب د شرط محذوف دی ای اذا اکلت الثمار في مواضع بعیدة من بیوتکم یعني چې شاوخوا د بېوتو ستاسې په قحط کې مېوې او ګلان نه وه، نو تاسې دا خلېږئ یعني ولاړ سئ په لارو کې د خدای ﷻ یعني خدای پاک تاسې د هغه لارو د مواضع بعیده وو الهام کړی دی، نو چې مېوې مو وخوړلې په مواضع بعیده وو کې بیرته خپلو کورو ته که د غرو په چاکو کې وي او که په درختو کې وي او که په بامو کې وي او که چا صندقان ورته اېښي وي د عسلو جمع کولو

لپاره كما في الدور الحاضر او برابر په الهام د خداى ﷻ به خپلو كورو ته راستانه سئ او لار به هم نه درځخه ورکيږي وهذا من عجائب قدرته تعالى.

**پوه سه**: چي "ذللاً" جمع د ذلول ده حال دى له "سبل" څخه يعني دغه لاري په هوا كي خداى ﷻ و تاسي ته مذلل او اسانه كړي چي مانع نه درپيښيږي ذهاباً وايابا.

## يَخْرُجُ مِنْ بُطُونِهَا

راوځي له نسو څخه د نحل.

**پوه سه**: چي په دې آيت كي التفات دى له خطاب څخه د نحل. گويا خداى پاک خلگو ته وايي يخرج الخ. ولي چي عسل خو د خلگو لپاره نعمت دى نه د مچمچي لپاره، او حكمت د خداى پاک په خلق د نحل انتفاع د خلگو ده في العسل الخارج من بطونها.

## شَرَابٌ مُّخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ فِيهِ شِفَاءٌ لِّلنَّاسِ ۗ

مشروب چي مختلف دي رنگونه د هغو چي سپين، سره، ژړ او شنه رنگونه يې دي. په عسلو كي شفا ده د خلگو د مرضو لپاره.

**پوه سه**: چي نحل دغه د قي په ذريعه په خپلو بيوتو كي تو يوي يعني ددې لپاره چي كه مي بيا هوا ورته وسوه بير ته به يې وخورم لكن هغه قي په قدرت د خداى ﷻ عسل وگرځي.

**فائده**: د عسلو ډېر نومان دي، يو نوم يې حافظ امين دى، ولي هغه شى چي يكښي كښېښوه سي له فساد څخه بې عسل ساتي، حتى علما وايي چي كه سړى مړى سر تر نوكه مخ وشا او تول اندامونه په عسلو طلا كړي، نو دا مړى ابداً نه خرابيږي نه بد بو يه كيږي او نه ورستيږي، او غوښي دړې مياشتي له فساد څخه ساتي. او فواكه لكه منه (سېب) يا بهي يا نارنج يا مالته يا كېله وغيره شپږ مياشتي ساتي. او هغه چي ژر ورستيږي او خرابيږي لكه غوښي چي په عسلو كي كښېږدي تر ډېره وخته باقي وي، وفي الحديث اول نعمة ترفع من الارض العسل. وفي الحديث الصحيح كان رسول الله ﷺ يحب الحلوا والعسل مراد له حلوا څخه مطلق خوږ شى دى، او عطف د عسل عطف دى د خاص پر عام



Scanned by CamScanner

اظهاراً لشرف العسل لکه عطف د جبرئيل علیه السلام پر ملکو.

**مسئله**: خوراک د لذیذ الاطعمة والطیبات من الرزق منافي د زهد او صوفي گرت نه دی.

**فائده**: اختلاف د عسلو د رنګو: بعض وخت په سبب د اختلاف د رنګو د خوراکي موادو د نحل وي، مثلاً سپین کشمش انګور یې خوړلي وه یا سره انګور یا تور انګور یا ژړ انګور الی غیر ذالک من الماکولات. او بعض علماً وایي چي په عمر پوري د نحل مربوط دی. نو سپین عسل د ځوان نحل دي. او ژړ عسل د میانه عمر نحل دي او سره یا زرغونه یا تور د عمر رسیده نحل دي، والله اعلم. له ابن عمر رضي الله عنهما څخه روایت دی چي مؤمن باید لکه نحل داسي وي چي طیب شی وخوري او طیب عمل وکړي لکه نحل.

**بوه سه**: چي په حیوٰة الحیوان کي وایي چي ددې "فیه شفاً للناس" معنا داده چي عسل له ادویة مشهوره وو څخه دي چي نافع د ډېرو امراضو دي لکه نوري مشهوري دواګاني دی علماً او حکماً وایي چي دا آیت لایقتضي العموم لکل علة ومرض في کل انسان لانه نکرة في سیاق الاثبات وهي لاتقتضی العموم کما تقرر في النحو. او ابن مسعود او ابن عمر رضي الله عنهم دا آیت پر عموم حمل کوي په اعتبار د عقیدې د مریض. او بیضاوي وایي چي فیه شفاً للناس" یا یوازي شرب العسل لکه په امراض بلغمي ؤ کي او یا سره د نوري دوا لکه د نورو امراضو لپاره، بیضاوي رح وایي چي قلما معجون الاطبا الا والعسل جزء منه. په حدیث صحیح کي راغلي دي چي یو سړی و علیه الصلوة والسلام ته راغلی ورته وې ویل چي زما د ورور استطلاق البطن یعني اسهال ناجوړي ده. علیه الصلوة والسلام ورته وویل اسقه عسلاً. نو هغه سړي مریض ورور ته عسل ورکړه لکن استطلاق یې نور ډېر سو. هغه سړی بیا و علیه الصلوة والسلام ته راغلی فذکر له حال المریض علیه الصلوة والسلام ورته وویل اسقه عسلاً. هغه سړي چي دوهم وار عسل ورکړه استطلاق یې تر دمخه ډېر سو. دریم وار بیا هغه سړی و علیه الصلوة والسلام ته راغلی او د مریض حال یې ورته بیان کړی. علیه الصلوة والسلام ورته

وويل اذهب فاسقه عسلاً فقد صدق الله (یعني في قوله فيه شفا للناس) وكذب بطن اخيك. هغه سړي چي دریم وار عسل ورکړه وروور یې روغ رمټ سو. وفي الحديث الصحيح ان الله جعل الشفا (ای الشفا السريع او الكامل) في اربعة الحبة السودا (دا يې عربي نوم دی او په عربي يې شونيز هم بولي او په فارسي یې سیاه دانه بولي. او په اردو یې کلونجي بولي او په پښتو یې توروانجه بولي چي د هر یوناني طبیب په دکان کي خرڅېږي) والحجامة (وینه کښل په مختلفو ځايو کي د مختلفو مرضو لپاره) والعسل (چي بیان یې تېر سو) وما السما. کریمه "انا انزلناه من السما ما مباركًا.

روايت دی چي يو سړی و حضرت علي رضي الله عنه ته راغلی او شکایت د سوء الحفظ یې ورته وکړی. علي رضي الله عنه ورته وویل چي ماینه لرې چي ولور دي ورکړي وي؟ هغه ورته وویل نعم. علي رضي الله عنه ورته وویل چي له ماینې ځخه دي دوه درهمه وغواړه د ولور له روپو ځخه لکن په طيب نفس نه په زور. او په هغه دوه درهمه عسل او شیدې رانسه. او هغه دواړه وڅیښه سره د باران د اوبو په نهاره تررزق حفظاً كاملاً. د حسن بن فضل رحمه الله ځخه چا پوښتنه وکړه چي علي رضي الله عنه دا څور شیه له څه درکه ورونبوول؟ حسن رحمه الله ورته وویل من آيات القرآن (۱) وانزلنا من السما ما مباركًا (۲) وفي اللبن خالصًا سائغًا للشاربين (۳) وفي العسل فيه شفا للناس (۴) وفي المهر فكلوه هنيئًا مريئًا.

## إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ۝٦٩

یعني په بیان کي د احوال عجيبه وو د نحل یعني تر وله مامر د نحل په قصه کي آیت عظيمه پر قدرت جلیله د خدای جل جلاله چي دومره کوچني حیوان ته یې دومره الهامات کړي دي چي عقل ورته حیران گرځي. اما دا آيت او حجت د قدرت معبود بالحق لپاره د هغو کسانو دی چي په دقائقو کي د صنعت الهي په غور سره فكر وهي.

## وَاللَّهُ خَلَقَكُمْ ثُمَّ يَتَوَفَّاكُمْ

او خدای (جل جلاله) تاسي پیدا کړي یاست له مور ځخه. وروسته بیا تاسي وژني

يعني يا په كوچنوالي په سن كي او يا د ځوانۍ په عمر كي او يا چي ګرروبنتي سي يا د شيخوخت په عمر كي.

## وَمِنكُم مَّن يُرَدُّ إِلَىٰٓ أَرْذَلِ الْعُمُرِ

او بعض ستاسي تر دا څلور سنه چي د قوت في الجمله سنونه وه تېر سي او رد کړل سي او اخس او بېكاره ته د عمر چي دې ته په عربي كي هرم وايي چي ټوله اعضاً حتى العاقلة قوت يې صفر وګرځي. قتاده رح وايي چي ارزل العمر د نيوي (۹۰) كالو سن دی او. او علي رضي الله عنه وايي چي ارزل العمر سن پينځه اوويا دی او بعض وايي چي اتيا كاله دی.

**پوه سه:** چي عليه الصلوة والسلام به دا دعا كوله اللهم اني اعوذبک من ان ارد الی ارزل العمر كذا في البخاري ومسلم وغيرهما.

## لِكَيْ لَا يَعْلَمَ بَعْدَ عِلْمٍ شَيْـًٔا

**پوه سه:** چي لام لپاره د عاقبت دی يعني عاقبة الامر داسي سړی په دغه سن كي جوړ سي چي معلومات يې ټوله هېر سي. داسي دی چي په نورو اسنانو دی د علم خاوند ؤ. نو باره حال دده حال د اطفالو وګرځي في عدم وسوء الفهم قال عكرمه رح من قرء القرآن (يعني لفظاً و معناً) لم يصير بهذه الحالة.

**درويش وايي:** چي په روح البيان كي وايي چي ارزل العمر حد معين نه لري، ولي بعض كسان چي شپېته كاله ته ورسېږي د ارزل العمر دوره پر راسي. او بعض كسان سل كاله ته ورسېږي لكن د ارزل العمر په دام كي نه وي لوېدلی.

**درويش وايي:** چي په اوسني حال كي فقير دا تفسير نوشته كوي عمر يې دري نيوي (۹۳) كاله دی وذالک فضل الله يؤتيه من يشا والله ذوالفضل العظيم اللهم ابقني على الحالة الموجودة الى اتمام هذه التفسير الى اخيره بالخير والصحة والعافية واجعله لي خيراً باقياً الى يوم القيامة وهذا دعائي منذ شرعت في هذا التفسير مدى الليالي والايام وليس لي تمنى غير هذه النعمة العظمى والله اعلم.

**فائده:** محمد بن علي الواسطي رح د ځان لپاره دا دعا كوله:

یا رب لا تحیني الی زمن ........ اکون فیه کلاً علی احد
وخذ بیدي قبل ان اقول لمن ........ القاه عند القیام خذ بیدی

**درویش وايي:** چي بحمده تعالی زه هیڅکله پر زامنو نه یم گرځیدلی بلکې دوی ماته محتاج دي في خدمة البیت او چاته مي نه دي ویلي چي ما تر لاس ونسه ولو في ذمن الحج والعمرة.

**حکایت:** حجاج بن یوسف یو ډېر سپین ږیري ته وویل کیف طعمک؟ خورک دي څرنگه دی؟ هغه ورته وویل چي خورک وکړم دروند سم د ولاړو نه یم او که یې نه خورم ضعیف سم هم د ولاړو نه یم، حجاج ورته وویل کیف نومک؟ خوب دي څرنگه دی؟ هغه ورته وویل چي په مجلس کي د خلگو یم بیده یم او چي د خوب وخت راسي تر سهاره ویښ یم خوب نه راځي. حجاج ورته وویل کیف قیامک وقعودک؟ څرنگه ده ولاړه ستا وروسته تر ناستي، او څرنگه ده ناسته ستا چي ولاړ یې؟ هغه ورته وویل اذا قعدت تباعدت عني الارض. چي زه کښېنم یعني وروسته تر ولاړې مځکه ډېره راڅخه لیري سي، او چي ولاړېږم یعني وروسته تر ناستي مځکه مي تینگه ونسي. حجاج ورته وویل چي تگ دي څرنگه دی؟ هغه ورته وویل ما وېښته تینگوي او پر پچه نوک وهم.

## إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ قَدِيرٌ ۝٧٠

په تحقیق خدای ﷻ ښه علم لري پر مقادیر د عمرو د انسانانو او قادر دی چي شاب قوي مړ کړي یعني بالاجل المعلوم والمکتوب في اللوح المحفوظ او باقي پرېږدي هرم فاني لکه درویش. وفیه تنبیه علی ان تفاوت احوال والناس واعمارهم لیس الا بتقدیر قادر حکیم حلیم. او طبائع د انسانانو په دې کي باد د رمشت دی لکه حکماً چي وايي.

## فَضَّلَ بَعْضَكُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ فِي الرِّزْقِ

او خدای بالا کړی بعض ستاسي پر بل بعض په رزق بعض اعلی مرتبه غنیان حتی کروړپتیان وي. بعض اوسط غنیان لکپتیان وي بعض ادنی درجه غنیان تجاران وي معمولي تجارت لري. بعض وزیران وي. بعض رئیس جمهوران

وي. بعض عسکر وي، بعض فقیران وي چې پر هیڅ شي قدرت نه لري او مزدور کاران وي وهکذا نور خلګ هم سته.

فَمَا الَّذِينَ فُضِّلُوا بِرَآدِّي رِزْقِهِمْ

یعني نه دي هغه کسان چې تفضیل ورکړل سوی دی (یعني الاغنیاء علی حسب درجاتهم) ور کونکي د هغه مال چې تر دوی بالا وي.

عَلَىٰ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ فَهُمْ فِيهِ سَوَاءٌ ۚ

پر هغو کسانو چې ددوی مزدوران او نوکران وي، یعني چې اغنیاء او نوکران د هغه مال په تصرف کې او په صرفولو د مصارفو دي سره برابر وي، یعني مزدور او نوکر دي دومره اختیارات لکه اغنیاء ولري.

**درویش وایي**: چې په دې آیت سره رد دی پر مشرکانو چې د خدای ﷻ سره بعض مخلوق د خدای ﷻ برابروي په الوهیت سره، او سره ددې چې د بتان چې دوی یې د خدای ﷻ شریکان بولي د خدای ﷻ سره صلاحیت د شراکت نه لري په یو شي کې د اشیاؤ او په یوه د وجوه او مشرکان په دې نه دي راضي چې خپل نوکران له خانه سره برابر کړي په اموالو کې خپل ازروی تصرف مع ان ممالیکهم من جنسهم في الانسانیة وقادرون علی التصرفات في الجملة، او ددوی غایت جهالت دی چې اصنام چې جمادات دي د خدای ﷻ سره یې برابروي په الوهیت او عبادت کې.

أَفَبِنِعْمَةِ اللَّهِ يَجْحَدُونَ ﴿٧١﴾

آیا له نعمت څخه د خدای ﷻ تاسي انکار کوئ، ولې چې خدای ﷻ لره شرکاء وایاست، نو باید نعمتونه د خدای ﷻ و هغو شرکاؤ ته منسوب کړئ او له دې څخه منکر سئ چې دا نعمتونه له جانبه څخه د خدای ﷻ دي.

**سوال**: د "جحود" چې معنا یې انکار دی صله کلمه ده با نه راځي؟

**ځواب**: جحود کفر لره مستلزم دی او د کفر صله با راځي. مثلاً یقال فلان کفر بالله.

**درویش وایي**: چې په راتلونکو آیتو کې خدای ﷻ نور نعمتونه و خلګو ته بیانوي.

# وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمْ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ

او خدای (جل جلاله) پیدا کري دي تاسي ته ستاسي له جنس څخه مايني يعني هغه هم انسان ده.

**پوه سه:** چي ازواج جمع د زوج ده او زوج نر او ښځي دواړو ته ويل کېږي. ولي چي زوج په معنی د جوت دی چي مقابل د فرد دی، نو هر يو له نر او ښځي څخه فرد وي چي نر ماينه پيدا کړه يا ښځي مېړه پيدا کړی جفت وگرځي، او بعض کسان گمان کوي چي زوج نر ته وايي او ښځي ته زوجه وايي فقد غلط، ولي له دغه آيت څخه مخالف دی ولي چي ازواج جمع مذکر ده جمع مونث زوجات ده او سره ددې چي مراد له ازواج څخه په دې آيت کي ماينې دي بقرينة لکم چي مراد څني نر دي، او بل مخالف دی له هغه آيت قرآني څخه چي خدای جل جلاله آدم علیه السلام ته وويل "اسكن انت وزوجک الجنة آه".

**فائده:** د ازواج د نعمت حکمت دادی چي په ماينو سره وحشت د نر دفع کېږي او د مايني سره يې الفت پيدا کېږي او اولاد څني پيدا کېږي الى غير ذالک من فوائد الزوجات کخدمة البيت.

# اَزْوَاجًا وَّجَعَلَ لَكُمْ مِّنْ اَزْوَاجِكُمْ بَنِيْنَ وَ حَفَدَةً

او تاسي ته يې پيدا کړل له ماينو څخه ستاسي زامن او لمسيان.

**پوه سه:** چي "حفدة" جمع د حافد ده چي اولاد الاولاد ته وايي كذا في القاموس، او حافد مسرع في الخدمة ته هم وايي، نو له دې سببه بعض مفسرين وايي چي مراد له حفدة څخه هم بنين دي والعطف لتغاير الوصفين البنوة والاسراع في الخدمة، والتغاير الوصفي قائم مقام التغاير الذاتي كما قال صاحب روح المعاني، او بعض مفسرين وايي چي مراد له حفدة څخه بنات دي، ولي چي لوڼې د کور خدمتونه ډېر په چټکۍ سره کوي، لکن دا تفسير روح البيان رد کړی دی په دې سبب چي دا سورت مکي دی او خطاب د مشرکانو سره دی او خدای جل جلاله دوی ته په ډول د امتنان او احسان دا خبري کوي وهم كانوا

تسود وجوههم عند الاخبار بالبنات. كريمه "واذا بشر احدهم بالانثى ظل وجهه مسوداً وهو كظيم" اى مملو من الغم نو به خدای ﷻ په ځای کي د امتنان پر دوی بنات ذکر کوي.

**درویش وایي**: چي روح المعاني ددې آیت نور تفسیرونه هم ذکر کړي دي و تبعه المظهري لکن په سبب د طول البیان هغه تفسرونه درویش ملتوي کړه.

وَّ رَزَقَكُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ ؕ

او تاسي ته یې په رزق درکړي دېر لذیذ خوندور نعمتونه او یا حلالات او کلمه د "من" لپاره د تبعیض ده ولي چي ټوله طیبات خو په جنت کي دي او ما في الدنیا د هغو یو نمونه ده.

اَفَبِالْبَاطِلِ يُؤْمِنُوْنَ وَبِنِعْمَتِ اللّٰهِ هُمْ يَكْفُرُوْنَ ۟ۙ

آیا په باطل سره دوی یعني مشریکنو ایمان دی. چي د بعضو طیباتو نسبت دوی و خپل اصنامو ته کوي؟ او په نعمت سره د خدای ﷻ دوی کفر کوي چي نسبت یې و بتانو ته کوي. په صحیح حدیث کي راغلي دي قال رسول الله ﷺ قال الله تعالى "اني والجن والانس في نبأ عظيم اخلق ويعبد غيري وارزق ويشكر غيري" زه. جن او انس په لوی یه خبره کي سره مختلف یو. پیدا کوم یې زه او عبادت د غیر کړل کېږي یعني انس او جن عبادت د غیر کوي من الاصنام والشمس والقمر والملائكة. او رزق زه ورکوم او شکر د بل ویل کېږي یعني د اصنام وغیرها. او جار ومجرور چي "بنعمت الله" دی پر عامل چي "یکفرون" دی لپاره د تخصیص مبالغه او یا لپاره د محافظت د اواخرو د آیتو. او بعض مفسرین وایي چي له باطل څخه ما امرهم الشيطان مراد دی من تحريم البحيرة والسائبة والوصيلة يؤمنون به وبنعمة الله اى بالطيبات من التي احل الله لهم يكفرون ويجحدون تحليله وقيل الباطل الشيطان دی او نعمت د خدای رسول الله ﷺ دی.

وَيَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللّٰهِ مَا لَا يَمْلِكُ لَهُمْ رِزْقًا مِّنَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ شَيْـًٔا وَّلَا يَسْتَطِيعُونَ ﴿۷۳﴾

او دوی "يعني المشركين" عبادت بېله خدايه د هغه شي كوي چي هغه مالک نه دی دوی لره د رزق د اسمانو څخه يعني د باران په اورېدلو سره او نه د مځكي څخه د ارتذاقي موادو په شنه كېدلو سره د هيڅ شي. او نه طاقت ددوی سته لكونه جمادات.

**يوه سه:** چي اخفش رح وايي چي "شيئًا" بدل دی له "رزق" څخه په معنی د مرزوق دی. نو معنا داده چي دا ددوی معبودات چي بتان او جمادات دي مالک د مرزوقاتو نه دي قليلاً ولا كثيراً. او فرا رح وايي چي "رزقًا" مصدر دی او "شيئًا" منصوب دی مفعول به د "رزقًا" دی.

**سوال:** ضمير د "لايستطيعون" جمع دی راجع و "ما" ته دی او د "لايملک" ضمير چي مفرد دی هم راجع دی و "ما" ته فكيف يجوز ذالک؟

**ځواب:** جمعيت د ضمير نظر و معنی ته د "ما" دی ولي چي مراد له "ما" څخه بتان دي او هغه ډېر دي او افراد د ضمير يې نظر و لفظ ته د "ما" دی چي لفظ يې مفرد دی. او دوی لره په قرآن كريم كي او د عربو په محاوره ډېره مثالونه سته. او دا احتمال هم لري چي ضمير دي كفارو ته راجع وي. يعني طاقت نه لري كفار د رزق او سره ددې چي دوی احيآ دي. فكيف بالجمادات.

فَلَا تَضْرِبُوْا لِلّٰهِ الْاَمْثَالَ ؕ

نو تاسي ايها الكفرة مه بيانوئ خدای ج لره امثال. ولي ضرب المثل خو تشبيه د يوه حال په بل حال سره او تاسي خو خدای ج نه پېژنئ او نه يې په صفاتو سره كما حقه خبر ياست او نه په هغو صفتو خبر ياست چي پر خدای ج نه جاري كېږي بلكي اطلاق پر خدای ج يې ممتنع وي فكيف يصح منكم ضرب المثل لكونه قياسًا للغائب على الشاهد وذالک باطل.

إِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ

په تحقیق خدای ﷻ خبر دی په ضرب د امثالو لکه په قرآن عزیز کي يې ځای پر ځای ضرب المثل راوړي دي، او تاسي په ضرب المثل نه پوهېږئ او نه يې په شرائطو خبرياست، وفي المثنوي:

درتصور ذات او را گنج کو ........ تا درآید تصور مثل او

وفي الحديث النبوي ﷺ ان الله احتجب عن البصائر كما احتجب عن الابصار (خدای ﷻ پټ دی له عقولو څخه د مخلوق لکه چي له سترګو څخه پټ دی) وان الملائكة الاعلى يطلبونه كما تطلبونه (او جماعت اعلى د ملکو طلب د خدای ﷻ کوي لکه تاسي چي طلب کوئ) ولهذا قال الحكماء تصوره تعالى بالكنه وبكنهه ممتنع، والتفصيل في شرح السلم للقاضي محمد مبارک رح.

**درويش وايي**: چي دا مغلق خبره ما ددې لپاره وکړه چي اهل العقل د اهل النقل سره متفق دي په دې مسئله کي يعني فلا تضربوا لله الامثال الى اخير الآية.

ضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا عَبْدًا مَّمْلُوكًا

خدای ﷻ بيانوي يو مثال (يعني د خپل ځان لپاره او د هغه چا لپاره چي مشکان يې عبادت کوي د ماسوی د خدای ﷻ) د يو مريي چي مملوک د يو چا وي.

**يوه سه**: چي "عبداً" بدل دی د "مثلاً" او عبد چي په مملوک يې مقيد کړی احتراز دی له حر څخه ولي چي هغه خو هم عبد الله دی لکن مملوک د چا نه دی.

لَّا يَقْدِرُ عَلَىٰ شَيْءٍ

چي قدرت نه لري پر هيڅ شي، دا قيد احتراز له عبد ماذون څخه دی، ولي هغه د ته بادار اجازه د کسب او تجارت ورکړی دی، نو هغه قادر دی په اذن د مولی، او داغه رنګه احتراز دی د مکاتب مريي څخه ولي هغه هم په خلاصولو د خپل ځان له مريي توب څخه کسب او مزدوري وغيره کولای سي کما في کتب الفقهاء رحمهم الله.

**درويش وايي**: چي عبد مملوک لايقدر على شيئ خدای ﷻ مثل ګرځولي دي د هغو بتانو چي مشرکان يې د خدای ﷻ سره په عبادت کي شريکان ګڼي

او س مثال د خپل ځان وايي.

## وَّمَنْ رَّزَقْنٰهُ مِنَّا رِزْقًا حَسَنًا

او هغه څوک چي رزق ورکړی وي، مونږ رزق حسن یعني طیب حلال کثیر.

**پوه سه:** چي من موصوله دی او عطف دی علی عبد د هغه مقابل دی فالمعنی وحراً غنیاً کثیر المال.

## فَهُوَ يُنْفِقُ مِنْهُ سِرًّا وَّجَهْرًا ؕ

نو دی اتفاق کوي له هغه مال څخه په پټه او ښکاره یعني ینفق کیف یشا.

نو دا ضرب مثل خدای ﷻ دلیل ددي وګرځاوه چي ممتنع دی اشراک او برابري په عبادت او الوهیت کي په منځ کي د بتانو چي هغه اعجز المخلوقات دی او په منځ کي د الله چي غني دی او قادر دی پر هر شي.

## هَلْ يَسْتَوٗنَ ؕ

استفهام انکاري دی یعني هرګز نه سي سره برابرېدای.

**سوال:** په ضرب مثل کي خو دوه شیه ذکر سوي چي عبد مملوک او حر غني نو باید بل یستویان ویل سوی وای، نو صیغه د جمع څه وجه لري؟

**ځواب:** صیغه د جمع په اعتبار د جنسین رواږه فالمعنی هل یستوي الاحرار والعبید.

## اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ؕ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝

ثنا وصفت همه وهمه خدای ﷻ لره دی لانه معطی النعم کلها موصوف بصفات الجمال والجلال لا یستحق الحمد غیره تعالی فضلاً عن استحقاق العبادت والالوهیة صدق الله العظیم، بلکې ډېر د مشرکانو د مکې نه پوهېږي څکه نسبت د نعمتو د خدای ﷻ وبتانو ته کوي بیا نو عبادت د هغو بتانو کوي له دي کبله چي دوی مونږ ته دا نعمتونه راکړي دي.

**درویش وایي:** چي ابن جریج رح له عطا رح څخه روایت کړی دی چي مراد د عبد مملوک څخه ابو جهل دی او مراد له "من رزقه رزقاً حسناً" څخه ابوبکر ﷺ دی لکن تخصیص من غیر مخصص دی عموم د آیت اولی او مختاره د جمهور المفسرین



Scanned by CamScanner

دی. او بل دا چي په دې تفسیر کې د مجاز ته ضرورت سته ولي چي ابو جهل خو عبد مملوک لايقدر على شيئ نه دی کما لا يخفى. والعجب من المظهري يذكر امثال هذه التفاسير البعيدة. صاحب د کشف المحجوب راوړي دي چي يوه ورځ د خلوت د شیخ ابو العباس شيباني قدس سره ورغلم: وی را دیدم که این آیت "بل اكثرهم لايعلمون" میخواند ومیگریست ونعره پرسوز وگداز میزد پنداشتم که خواهد رفت (يعني ما گمان کاوه چي زکندن یې دی له دنیا څخه به ولاړ سي) گفتم ای شیخ این چه حالتست که ترا بگریه دلسوز اورده گفت که یازده سال میگزرد تا ورد ما تا اینجا رسیده است. واز اینجا نمیتوانم گذشت، آری حدوث درقدم نمیتواند رسید، وممکن از کنه واجب الوجود خبر نتواند داد این بیت بخواند:

نیست یا هست چون زند پهلو ....... قطره بابحر چون کند دعوی

**فائده**: لفظ د "اكثرهم" یې ووایه او سره ددې چي ضمیر خو راجع و مشرکانو ته دی تنبیهاً على ان بعض المشركين يعلمون ذالک لکن عمل په موجب د هغه نه کوي عناداً وتکبراً.

## وَضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا رَّجُلَيْنِ أَحَدُهُمَا أَبْكَمُ لَا يَقْدِرُ عَلَىٰ شَيْءٍ

خدای جلّ جلاله مثال بیانوي د بتانو او د خپل ځان په دوو کسانو سره چي یو یې مور زاده کوڼ او گنگی وي چي اخرس یې بولي چي نه خبره اوري او نه خبري کولای سي، چي قدرت نه لري پر یو شي د کسبو د دنیا لنقصان عقله.

## وَهُوَ كَلٌّ عَلَىٰ مَوْلَاهُ أَيْنَمَا يُوَجِّههُّ لَا يَأْتِ بِخَيْرٍ

او دوی درونډ باروي پر قریب او متولي د کارو دده. هره خوا ته چي یې واستوي مولی دده یعني په اشاراتو سره راتګ په خیر سره نسي کولای یعني هغه متوجه اليه امر نسي اجرا کولای.

**یوه سه**: چي دا مثال دی د صنم چي نه خبري اوري او نه خبري کولای سي او نه عقل لري. او دا بت پر عابد دده درونډ بار وي چي له یوه ځای څخه یې بل ځای ته وړي او د گرز له سببه هره ورځ صافه پوري موږي او دا عابد چي هر مراد او مطلب له

د، څخه وغواړي صنم يې نسي اجراکولای لکونه جماداً بلا علم ولاقدرة.

**هَلْ يَسْتَوِي هُوَ وَمَنْ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَهُوَ عَلَىٰ صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ ﴿٧٦﴾**

يعني عقل يې سالم وي فهم او فكر لري او ژبيارى وي او پر راه راست وي. او خلگو ته يې فائدې رسيږي او خلگ پر عدل باعثه كوي وهو التوسط بين الافراط والتفريط في القوة العقلية والقوة الشهوية والقوة الغضبية. او دى خپله پر سمه لاروي هر مطلب ته چي متوجه سي په سهولت سره لاس ته راوستای سي.

**درويش وايي**: چي دا مثل دی چي خدای پاک د خپل ځان لپاره ويلی دی. شيخ الاسلام علي البزدوي رح وايي چي غرض له دواړو مثالو څخه نفي د مساوات په منځ كي د خدای ﷻ او په منځ كي د مايعبده المشركون.

**درويش وايي**: چي وما اختاره شيخ الاسلام هو الظاهر من سياق الآيات. او مظهري او روح البيان په قيل سره نور احتمالات راوړي دي چي د بعضو نسبت يې و ابن عباس رضي الله عنهما ته كړی دی او د بعضو دا يې مقاتل رح ته كړی دی چي هغه ټوله احتمالات روح المعاني رد كړي دي په سبب د عدم صحت د اسنادو. وايضاً يأبى عن الاحتمالات المذكورة العقل السليم والفهم المستقيم فلذالك اعرضنا عن ايرادها وردها تفصيلاً. كه څوک تفصيل ددې احتمالاتو غواړي نو دي تفسير روح البيان او تفسير مظهري مطالعه كړي او كه يې تفصيل د رد غواړي نو دي روح المعاني په غور سره وګوري.

حاسد د خوله پټه ونسه د عبيدالله ټولې خبرې په حواله دي د تفاسير معتبره وو والله اعلم بحقيقة الحال.

**فائده**: "ضرب الله مثلاً" په دواړو ځايو كي كه څه هم صيغه د ماضي ده لكن مقصود څني انشا د ضرب المثل ده لاحكاية الضرب في الزمان الماضي فتامل هداك الله لفهم دقائق كلام الله عزوجل.

**وَلِلَّهِ غَيْبُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ**

يعني خاص خدای ﷻ لره دی علم د پټو شيانو (په حذف د مضاف يعني لفظ علم)

**پوه سه:** چي لـه غيب څخه مراد ماغاب عن الخلق ولي د خدای ﷻ غيبت ممكن نه دى، او حصر د علم غيب په خدای ﷻ پوري لـه تقديم څخه د خبر چي لله دی پر مبتدأ باندي چي غيب مضاف دی فهمېږي او کلمه د لام هم ممد ددې اختصاص ده.

وَمَآ أَمْرُ ٱلسَّاعَةِ إِلَّا كَلَمْحِ ٱلْبَصَرِ أَوْ هُوَ أَقْرَبُ

او نـه دی حال د قيام د قيامت في سرعته وسهولته اذا اراد الله ذالک. په بيضاوي کي وايي چي "لمح رجع الطرف من اعلى الحدقة الى اسفلها" او دا هم خدای پاک د مثال په توگه وايي "اذ لا يعرف اقل منه في العرف" (او هو اقرب) اى بل هو اقرب من لمح البصر. ولي چي خدای ﷻ تو له خلگ دفعةً ژوندي کوي اذا قال له كن فيكون او هر شى چي دفعةً پيدا سي كان في آن ولا امتداد للآن كما هو مثبت عند العقلاً.

إِنَّ ٱللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٧٧﴾

په تحقيق خدای ﷻ پر هر شي قادر دی يعني اذا شائه. نو قـادر دی پر احيا د تو له مخلوق دفعةً كما احيا هم في الدنيا تدريجاً. بغوي رح وايي نزلت يعني آيت فوق په كفارو کي دمکې چي دوی غوښتنه كړله د ژر راتلو د قيامت استهزاءً والا فهم منكرون عن القيامة.

وَٱللَّهُ أَخْرَجَكُم مِّنۢ بُطُونِ أُمَّهَٰتِكُمْ لَا تَعْلَمُونَ شَيْـًٔا

خدای ﷻ تاسي را ايستلي ياست لـه نسو څخه د ميندو ستاسي په داسي حال کي چي نه پوهېداست تاسي په هيڅ شي. مظهري رح وايي مستصحبين جهل الجمادية انتهى.

**درويش وايي:** چي اولى دا وه چي ويلي يې وای متشابهين جهل الجمادية لان العقلاً كلهم يقولون ان للطفل الخارج علم حضوري ستة بنفسه والجماد ليس له علم حضوري ولا حصولي فافهم.

وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ وَالْأَفْئِدَةَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿٧٨﴾

او تاسي ته يې دركړې وه سمع (سمع په معنى د اسماع ده لكونه مصدراً لاحاجة الى جمعه او سترګي او زړونه جمع د فؤاد ده، نو په دغو حواسو تاسي بعض جزئيات د اشياؤ لكه مور او لور پېژندل او بيا په زړو سره شركت د انسانانو او مباينه ددوى د سپو او پشانو سره په تكرار د احساس پوه سواست حتى چي تاسي بعض علوم بدهية هم وپېژند چي دې ته درجې حكماً عقل بالملكة وايي او اول درجې ته عقل هيولاني وايي.

**پوه سه**: چي "لعل" په معنى د لام كي دى يعني ددې لپاره چي تاسي په شكر ووایاست پر دغو نعمتو چي پر تاسي طوراً بعد طور راغلله او تاسي واورېدل من الله المتعال.

أَلَمْ يَرَوْا إِلَى الطَّيْرِ مُسَخَّرَاتٍ فِي جَوِّ السَّمَاءِ

دا بيان دى د بل حجت پر وجود د صانع و توحيده آيا دوى نه ګوري ومرغانو ته يعني تر صغيره او كبيره پوري، چي دوى مسخر دى و الوتو ته په واسطه د وزرو په هوا كي په منځ كي د مځكي او اسمان. په قاموس كي وايي چي جو هو الهوا.

**پوه سه**: چي مرغان كه څه هم و مځكه ته نژدې تر اسمان لكن جو السما چي ذكر سو ددې جهته طرف د اسمان دى.

**تنبيه**: په دې آيت كي اشاره ودې ته ده چي طيران د مرغانو په مقتضى د طبع ددوى نه دى بل بتسخير الله تعالى وان كان مقتضى طبع الطير من الثقل السقوط.

مَا يُمْسِكُهُنَّ إِلَّا اللَّهُ

نه دي څوندي كړي دغه مرغان په هوا كي بېله تاثير د قدرت د خداى ﷻ على خلاف طبعهن من الثقل في الغاية في بعض الطيور نه ده لوري څوا د څرېدلو شى سته او نه د كښتې څوا تنبه سته.

**فائده**: هغه داده چي هوا د مرغانو لپاره خداى ﷻ داسي مسخر كړې ده لكه درياب د آب باز لپاره، يعني آب باز په اوبو كي لاسونه ځان ته جوت وي بيا يې

غوړوي نو په دې ذريعه يې اوبه نه غوټه كوي مع ثقله درغـه رنګـه مرغـه وزرونه په هوا كي په ځان پوري جوتوي بيا يې له ځانه ځخه لېري كوي، نو پـه دې سبب دې كښتـه را ايله كېږي، او د قـدرت لـه عجـائبو ځخـه د قـدرت داده چي بعض مرغان په هوا كي هګۍ واچوي او هغـه هګۍ وروسته پـه هوا كي چيچي سي، وما ذالـك الا بتسـخير الله ﷻ وعجائـب قدرتـه تعـالى طيـر ابابيـل التـي رمت اصحاب الفيـل بحجـارة من سـجيل كما نطق بـه القرآن الكريم، ومن عجائب الطيور ما يقال له "هماى" فانه من سكان الهوا په هوا كي هګۍ اچوي او په هوا كي يې چيچي زېږي او پښې نـه لـري دومره بدن يې دى لكـه د ګيډ كي، چي مر سي په هوا لاښ يې په صحرا كي د هند ليدل كېږي.

**درويش وايي:** چي فالحق ان نقول ولا يعلم جنـود ربـك الا هـو، لـه ابـن عبـاس ﷺ ځخه روايت دى چي هوا معمور ده په امم مختلفة الخلق سره.

# إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿٧٩﴾

پـه تحقيق پـه دې احوالو كي د مرغانو دپاره دلائل د قدرت دي هغـه قوم لره چي ايمان پـر قـرآن لـري تخصيص د مؤمنـانو يې پـه دې سـبب وكـړى چي دوى پـه دقائقو كي د قدرت د خداى ﷻ فكر ووهي بخلاف الكفرة.

# وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُم مِّن بُيُوتِكُمْ سَكَنًا

بيان د نعمت اخرى دى او خداى ﷻ ګرځولي دي ستاسي له ځونو ځخه يعني چي په ځښتو يا پخې يا اومې يا په ډبرو كي جوړي كړه ځاى د سكونت ستاسي سكن مصدر په معنى د مفعول دى يعني المسكن.

# وَجَعَلَ لَكُم مِّن جُلُودِ الْأَنْعَامِ بُيُوتًا تَسْتَخِفُّونَهَا يَوْمَ ظَعْنِكُمْ وَيَوْمَ إِقَامَتِكُمْ

او خـداى ﷻ پيـدا كـړي دي تاسي لـره لـه پوسـتو ځخـه د چارپايـانو يعني اوښان، غوايي، مېږي، پسـونه او بزې، خوني چي خېمې يې بولي او اخبيته يې هم بولي چي له ځرمنو ځخه يې مالداران د صحرانشينو جوړوي، چي تاسي نه

سپکي وي په وخت کي د سفر او د اقامت. او دا هم احتمال سته چي له جلود څخه په عموم مجاز ما على جلود البعير من الوبر وصوف الغنم ومن شعر المعز ته هم شامل مراد وي چي له هغو څخه هم خيمې لوى او کوچنۍ جوړيږي.

## وَمِنْ أَصْوَافِهَا وَأَوْبَارِهَا وَأَشْعَارِهَا أَثَاثًا وَمَتَاعًا إِلَىٰ حِينٍ

يعني له وړيو څخه د پسو او د وړيو څخه د اوښانو چي وېښتې بولي، او د بزو وجغونې او د کور شيان لکه کمبلې، پرشونه، شړۍ او پشمي کالي، او اسباب د تجارت تر يو وخته پورې. په حديث شريف کي راغلي دي چي رسول الله ﷺ وايي من بنى بنيانًا من غير ظلم ولا اعتدا او غرس غرسًا في غير ظلم ولا اعتداً كان له اجر جاريًا ما انتفع به احد من خلق الرحمن.

**پوه سه**: چي "اثاث" جمع دی مفرد د لفظ نه لري.

## وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُم مِّمَّا خَلَقَ ظِلَالًا

او خدای ﷻ پيدا کړي دي ستاسي لپاره له هغو شيانو څخه چي خدای پيدا کړي دي من الشجر والجبل والابنية ظلالاً، سايې چي تاسي ځانونه په وساتئ له ګرمی څخه د لمر مثلاً په دوبي کي او يا په ديار حاره وو کي مثلاً عربستان.

## وَجَعَلَ لَكُم مِّنَ الْجِبَالِ أَكْنَانًا

او ګرځولي دي خدای ﷻ ستاسي د نفع لپاره له غرو څخه (يعني له غارو څخه چي په غرو کي وي) داسي ځايونه چي تاسي ځانونه پکښي ساتئ. يا دا معنی چي له دښمنانانو څخه ځانونه پکښي محفوظ کړئ او يا په هغو غارو کي سکونت وکړئ يا هورې په آلاتو سره خونې جوړې کړئ "اکنان" جمع د کن ده.

**پوښتنه**: خدای ﷻ نعمت د جبالو د اکنانو ذکر کړی او سره ددې چي د سهل ځمکو اکنان تر اکنانو د جبل ډېر دي؟

**ځواب**: عطاءرح وايي چي نزل القرآن على قدر معرفتهم كما في هذه الآية. ولي چي عرب د هغې زمانې عمومًا په غرو کي اوسېدل. د سهل ځمکي د خونو اوسېدل پکښي کم وه.

## وَجَعَلَ لَكُمْ سَرَابِيلَ تَقِيكُمُ الْحَرَّ

او خدای ﷻ تاسي ته درکړي دي قمیصان یعني د پنبه ؤ یا د وړیو یا د کتان یا د وریښمو چې تاسي وساتي له گرمی څخه.

**سوال:** په قمیصانو خو سړی له یخه هم ساتل کېږي؟

**ځواب:** هو! لکن یو ضد یې ذکر کړی او مراد دواړه دي لدلالة المذکور علی المحذوف او بعض مفسران وایي چې چونکه گرمي په دیارو کي د عربو ډېره وه او یخ یې ډېر کم ؤ نو ځکه یې حر ذکر کړی.

## وَسَرَابِيلَ تَقِيكُمْ بَأْسَكُمْ

ای جعل لکم سرابیل یعني قمیصان د وسپني چې په عربي یې درع بولي او په پښتو یې زغره، چې دغه قمیصان تاسي ساتي لـه جنگ الم او جرح څخه که توري وي او که د نېزي په وخت کي د شدت د جنگ.

**درویش وایي:** چې اول واضع د توري او زغرې داؤد علیه السلام دی کما نطق به القرآن "والناله الحدید" الی اخیر الآیة. او لقمان حکیم د داؤد علیه السلام سره یو ځای ؤ چې داؤد علیه السلام دا زغرې جوړولې او کړی د وسپني او په منځ کي د کړیو به یې نري نري مېخونه ورکول شپږ میاشتي دا سلسله جاري وه. لکن لقمان پوښتنه نه ځني کول چې ته دا څه شی جوړوې او د څه لپاره یې جوړوې، نو داؤد علیه السلام چې زغره پوره کړه. نو یې واغوستل او داسي یې وویل نعم لباس الحرب ... بیت:

چو لقمان دید کاندر دست داؤد ....... همی آهن بمعجز موم گردد
نه پرسیدش چه میسازی که دانست ....... که بی پرسید نش معلوم گردد

وکان کما زعم، یعني بې پوښتني یې لقمان ته حکمت معلوم سو.

**یوه سه:** چې داؤد علیه السلام وروسته صفت د زغرې جوړېدلو په چټکی روان ؤ حتی تر زمانې د رسول الله ﷺ حتی چې علیه الصلوة والسلام مبارک په جنگو کي د کفارو سره زغره اغوستې وه، او په صحیح احادیثو کي راغلي دي چې علیه الصلوة والسلام دوې زغرې یوه پر بله سربېره اغوستي دي. رفته رفته چې

نقشه د زغرې بدله سوه او په ځای کې د تورو او نېزوو او غشو کلاشنکوفونه او توفنچې او دستي او هوايي بومان منځ ته راغلل. نو صفت د زغرو پای ته ورسېدی الا ماشاء الله تعالی.

كَذَٰلِكَ يُتِمُّ نِعْمَتَهُۥ عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تُسْلِمُونَ ﴿٨١﴾

"كذالک" یعني لکه چې اتمام د نعمتو مذکوره وو یې پر تاسي کړی ؤ" خدای تام ګرځوي نعمت خپل پر تاسي یعني اې قریشو د مکې چې تاسي ته یې رسول راواستاوه او په معجزو یې دده رسالت ثابت کړی او ستاسي په عربي ژبه یې قرآن کریم نازل کړی واتم علیکم الحجة واعز الاسلام.

ددې لپاره چې اسلام به قبول کړې دپر خلګ د عربو و غیرهم څخه او طاعت به خالصاً د خدای ﷻ کوي او بت فرستي به محو او نابوده وګرځي.

فَإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلَاغُ الْمُبِينُ ﴿٨٢﴾

که اعراض وکړي یعني اهل مکه له قبول څخه د اسلام او ستا خبره ونه مني.

**پوه سه:** چې اصل جزاء د "ان" محذوفه ده یعني فلا تهتم ته غم مه کوه یعني زړه مه تنګوه و قوله فانما آه. دلیل د جزاء دی په ځای کې د جزاء دربدلی په دې معنی چې پر تا نه ؤ مګر بلاغ د امر الهي وقد اکملت البلاغ المبین یعني بې پردې او بېخوفه دې تبلیغ د امر الهي ورته وکړی. نو په دې آیت کې سبب چې بلاغ مبین دی په ځای کې د مسبب چې فلا تهتم چې اصل جزاء وه راوړی یې دی فافهم.

يَعْرِفُونَ نِعْمَتَ اللَّهِ ثُمَّ يُنكِرُونَهَا

دوی پېژني نعمت د خدای ﷻ هغه نعمتونه چې په دمخه آیتو کې خدای ﷻ بیان کړه. ولې دوی په دې اقرار کاوه چې دا مذکوره نعمتونه دي، او هم یې په دې اقرار کاوه چې له جانبه څخه د خدای دي، وروسته یې انکار کاوه له نعمت څخه د خدای ﷻ چې عبادت د خدای ﷻ مخلصین له الدین یې نه کاوه بلکې بتان یې په عبادت کې ورسره شریکان بلل. سدي ﷫ وایي چې مراد له نعمت څخه ذات انور د علیه الصلوة والسلام دی. فالمعنی یعرفون کفار مکة بنبوة محمد ﷺ

بالمعجزات الواضحات لكن انكار دده له نبوت څخه يې عناداً او تكبراً كاوه.

**پوه سه:** چې كلمه د "ثم" لپاره د تراخي في الزمان نه ده كما هو اصل معناه بلكې لپاره د انكار او استبعاد وروسته تر معرفت.

## وَأَكْثَرُهُمُ الْكٰفِرُوْنَ

او ډېر ددوی كافران او منكر له نبوت څخه د عليه الصلوة والسلام دي پر تفسير د سدي رحمه الله. او يا اكثر ددوی چې نعمتونه د خدای ﷻ پېژني چې من الله دي وروسته دوی كافران دي په هغو نعمتو سره چې نسبت ددغو نعمتو يې و بتانو ته كاوه. په هر صورت دلته يو سوال پيدا كېږي چې په دمخه آيت كې خو ضمير د يعرفون او ينكرون خو ټوله كافرانو مشركانو ته راجع ؤ او په دې آيت كې دا وويل سول واكثرهم الكافرون. ددې سوال دفع روح البيان په دې سره كړې ده "يعرفون" اى بعض المشركين ثم ينكرونها بافعالهم حيث يعبدون غير منعمها (چې خدای ﷻ دی) اى الاصنام. او بقولهم انها بشفاعة آلهتنا واكثرهم الكفافرون اى المنكرون بقلوبهم غير المعترفين بماذكر انتهى. او مظهري رحمه الله دفع په دې ډول كړې ده وذكر الاكثر اما لان بعضهم لم يعرف الحق المذكور لنقصان العقل او التفريط في النظر او لانه لم يبلغ حد التكليف واما لانه قال الاكثر واراد به الكل انتهى. او صاحب د روح المعاني يې په دې سره دفع كړې ده چې اسناد د سابق يعني يعرفون وينكرون دي پر خپل ظاهر پاته وي. والمراد ان اكثرهم المقرون الثابتون پر كفر دي الى يوم يلقونه فالتعبير بالاكثر لعلمه تعالى بان منهم من يؤمن به. او نورې توجيهاتې يې هغه كړي دي چې مظهري يې نقل د روح المعاني څخه كړی دی وان لم ينسبه الى روح المعاني كما هو ديدنه.

## وَيَوْمَ نَبْعَثُ مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيْدًا

او ذكر كړه يا محمد (ﷺ) هغه ورځ و كافرانو ته چې موږ وپاخه وو له هر امت څخه شاهد يعني پر هغه امت چې رسول د هغه امت دی چې پر مؤمنانو د هغه امت به شاهدي په ايمان سره ادا كوي او پر كافرانو به كفر سره.

**پوه سه:** چي "يوم" په مشهو رسره منصوب دی په اذكر مقدر سره او مظهري دا توجيه هم ذكر كړي ده خوفهم يوم آه.

## ثُمَّ لَا يُؤْذَنُ لِلَّذِينَ كَفَرُوا

او وروسته تر شاهدی د رسول اجازه نه ورکول کېږي يعني له جانبه څخه د خدای وه هغو کسانو ته چي په دنيا کي يې کفر مختاره کړی و يعني چي دوی دي عذر و خدای ﷻ ته ووايي، ولي عذر صحيح خو نه لري. ولي چي خدای ﷻ رسول سره د معجزاتو دوی ته ور استولی و. او بعض مفسرين وايي چي د مطلق خبرو اجازه نه ورکول کېږي. وهذا بعيد لقوله تعالى في شانهم "ربنا قد غلبت علينا شقوتنا آه" ولقوله تعالى "ربنا فارجعنا نعمل صالحاً آه" ولقوله تعالى حكاية عن قولهم "والله ربنا ماكنا مشركين آه. الا ان يقال يوم القيامة ذو الوان ففي بعضها يؤذن لهم في مطلق الكلام وفي بعضها لا يؤذن لهم.

## وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ ﴿٨٤﴾

او نه له دوی څخه طلب د رضا د خدای ﷻ کول کېږي يعني چي اوس خدای راضي كړي، ولي په ورځ د قيامت د خدای ﷻ رضی ممکنه نه ده. ولي دار الآخرة خو دار التكليف نه دی. او نه دوی و دنيا ته ردېږي چي ايمان راوړي او اعمال صالحه وكړي او خدای ﷻ راضي كړي لانهم يطلبون ذالک ای الرد الى الدنيا لكن لا يقبل ذالک منهم.

## وَإِذَا رَأَى الَّذِينَ ظَلَمُوا الْعَذَابَ فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمْ وَلَا هُمْ يُنْظَرُونَ ﴿٨٥﴾

او هغه چي ويني هغه کسان چي ظالمان وي يعني کافران عذاب د جهنم او بيا نه سپکول کېږي عذاب يعني وروسته تر دخول د جهنم او دوی ته مهلت ورکول کېږي يعني قبل الدخول.

**درويش وايي:** چي مظهري او صاحب د روح البيان په ځواب کي د "اذا" هيڅ نه دي ويلي. او مشهوره توجيه د "اذا" په ځواب کي د "اذا" في امثال هذا لروا امراً قطيعاً. او روح المعاني وايي چي بعض مفسرين وايي چي فلا يخفف عنهم

د اذا دی لکن تقدیر د فهو لا یخفف اولی دی، تا چي جمله اسمیه سي، ولي چي نحات وایي چي مضارع که مثبت وي او که منفي چي په ځواب کي د اذا واقع سي دخول د فا پر ناجائز دی، او ابو حیان ددې توجیه هر کلی کړی دی. او خفاجي رحمه الله په شرح کي د بیضاوي دا توجیه تر سخت تنقید لاندي نیولې ده. دي وایي چي تقدیر مذکور خلاف الاصل دی.

**نتیجه**: ځواب مشهور د چون وچرا څخه خلاص دی والله اعلم بالصواب.

**پوښتنه**: خدای پاک لا یخفف عنهم جمله فعلیه مضارعه راوړه او "لاهم ینظرون" یې جمله اسمیه راوړه حکمت یې څه دی؟

**ځواب**: نکته یې داده چي عدم تخفیف خو واقع دی وروسته تر رویت د عذاب، نو ځکه جمله فعلیه مضارعه راوړه چي دلالت پر ثبات کوي بخلاف عدم الامهال فانه ثابت لهم في تلک الحالة بل علی الدوام فلهذا اورد الجملة الاسمیة فتدبر کذا في الخفاجي، حافظ شیرازي رحمه الله:

کاری کنم ورنه خجالت بر آور ...... روزی که رخت جان بجهان دگر کشیم

## وَإِذَا رَءَا الَّذِينَ أَشْرَكُوا شُرَكَاءَهُمْ

هغه وخت چي ویني هغه چي شرک مختار کړي شرکا خلګ ددوی یعني چي شریکان د خدای جل جلاله ګرځولي وه په دنیا کي یعني خدای پاک به ددوی بتان په میدان د قیامت کي حاضر کړي.

## قَالُوا رَبَّنَا هَٰؤُلَاءِ شُرَكَاؤُنَا الَّذِينَ كُنَّا نَدْعُوا مِن دُونِكَ

دوي وایي چي دغه دي هغه بتان زموږ یعني معبودان هغه معبودان چي موږ په دنیا کي مو عبادت کاوه ددوی ماسوی له تا څخه. ددوی په دې خبره کي غرض دا وي چي موږ په خپل کار یعني چي عبادت د دغو بتانو مو کاوه پر خطا وو. یا یې غرض دا دي چي موږ دا بتانو غولولي وو، نو موږ له عذاب څخه وساته او عذاب دوی ته ورکړه او یا عذاب پر موږ او دوی نیمایي کړه کما في روح البیان والمظهري وروح المعاني مع قیل وقال.

فَأَلْقَوْا إِلَيْهِمُ الْقَوْلَ إِنَّكُمْ لَكٰذِبُونَ ﴿٨٦﴾

نو خداى عزوجل پر خبرو راولي دغه جمادات بتان او مشركانو ته ووايي يو قول چي هغه دادى چي په تحقيق تاسي درواغ واياست. يا په دې كې چي دا شركا د خداى ﷻ دي يا په دې كې چي موږ حقيقتًا او واقعًا بلكې دوى عبادت كاوه د شيطان يا د اهوا زائغه وو او د بتانو د قول غرض دادى چي موږ دوى ته دعوت د خپل عبادت نه دى وركړى او نه موږ دوى مجبور كړي دي پر شرك.

وَأَلْقَوْا إِلَى اللَّهِ يَوْمَئِذٍ السَّلَمَ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴿٨٧﴾

او واچوي و خداى ﷻ ته دغه "الذين ظلموا" په دغه ورځ كې انقياد او تسليم د حكم د خداى ﷻ بعد الاستكبار عن حكمه في الدنيا، يعني بيرغ د كبر د دنيا وغورځوي او بيرغ د تسليم او انقياد پورته كړي او ضائع او باطل وګرځي له دوى څخه هغه شى چي دوى په دنيا كې افترا او درواغ ويله چي بتان به زموږ شفاعت كوي.

الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ زِدْنَاهُمْ عَذَابًا فَوْقَ الْعَذَابِ

هغه كسان چي كفر او شرك يې كاوه او خلګ يې منع كول له لاري څخه د خداى ﷻ چي دين د اسلام دى او باعثه كول يې پر شرك چي دا رئيسان د مشركينو وه موږ دوى ته زياته وو عذاب د صد عن سبيل الله بالا پر هغه عذاب چي دوى يې مستحق وه په سبب د خپل كفر، عبدالله بن مسعود وايي چي دا عذاب د صد لړمان به وي لكه جګه درخته د خورما، او برا بن عازب رضي الله عنه له عليه الصلوة والسلام څخه روايت كړى دى په مثل د ماقبل حديث د ابن مسعود رضي الله عنه، او سعيد بن جبير رضي الله عنه وايي چي دا ماران به وي لكه مايه اوښان او لړمان به وي په مثال د غاطرو چي يو د هغو به خپل صاحب دوږخي نيش جګ كړي څلويښت كاله به يې درد باقي وي.

بِمَا كَانُوا يُفْسِدُونَ ﴿٨٨﴾

په هغه سبب چي دوى په دنيا كې فساد كاوه بالكفر والمعاصي والصد عن سبيل الله تعالى.

## وَيَوْمَ نَبْعَثُ فِي كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا عَلَيْهِم مِّنْ أَنفُسِهِمْ

او په یاد کړی خلګو ته هغه ورځ یعني یوم القیامة چي موږ به پاڅوو له هر امت څخه شاهد پر دوی یعني بالایمان للمؤمنین وبالکفر علی الکافرین چي دا شاهد به وي ددوی له ځانو څخه یعني من اقوامهم ولي چي نبي د هر امت خدای پاک ددوی له قوم څخه ورته استوي.

## وَجِئْنَا بِكَ شَهِيدًا عَلَىٰ هَٰؤُلَاءِ

او رابه ولو موږ تا یا محمد (ﷺ) شاهد پر دغو کسانو ای علی امتک.

درویش وایي: چي دا ترجمه مظهري رح کړې ده، او روح البیان وایي چي ای الامم وشهدائهم کما في قوله تعالی فکیف اذا جئنا من کل امة بشهید وجئنابک علی هؤلاء شهیداً، ولي مراد په دغه آیت کي خو شهداء د امم دي چي انبیاء علیهم السلام د دغو امو دي والقرآن یفسر بعضه بعضاً.

**سوال**: لوط علیه السلام خو د خپل امت له قوم څخه نه و فکیف یستقیم الایجاب الکلي في قوله تعالی من کل امة الآیة؟

**ځواب**: چونکه لوط علیه السلام د خپل امت ښځه په نکاح کړې وه او په دوی کي یې استوګنه درلودل کان کانه منهم.

## وَنَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ تِبْيَانًا لِّكُلِّ شَيْءٍ وَهُدًى وَرَحْمَةً وَبُشْرَىٰ لِلْمُسْلِمِينَ ﴿٨٩﴾

"الواو للاستیناف وهو کثیر في الهدایة" او څوک چي یې حال بولي په تقدیر د قد کما هو القانون النحوي عند کون الماضي حالاً هغه بې ضرورته تکلف دی، والترجمة الآیة: او نازل کړی دی موږ پر تا کتاب یعني القرآن چي بیان واضح پکښې دی د هر شي یعني من امور الدین خواه مفصل وي او که مجمل وي لکه "اتموا الصلوة واتوا الزکوة" چي قول او فعل د علیه الصلوة والسلام بیان مفصل دی، او سنن نبویه هم راجع و کتاب ته دي لقوله تعالی "ما اتکم

الرسول فخذوه وما نهاکم فانتهوا" او اجماع د مجتهدینو د امت مرحومه هم راجع و قرآن ته ده لقوله تعالی "ومن یتبع غیر سبیل المؤمنین نوله ماتولی" او قیاسات د مجتهدینو هم راجع و قرآن ته دي لقوله تعالی "فاعتبروا یا اولی الابصار"

**درویش وایي:** چې تفصیل د رجوع د مذکوره شیانو و قرآن ته په کتابو کې د اصول الفقه صراحةً بیان سوي دي او دا کتاب هدایت دی له ضلال څخه او رحمت دی د تولو خلګو لپاره او زیری دی د مسلمانانو لپاره بالخصوص.

**پوه سه:** چې حمل ددې درو مصدرو مبالغةً دی کزید عدل.

**پوښتنه:** تا په ترجمه کې وویل "او رحمت دی د خلګو لپاره" نو قرآن د کافرانو لپاره څرنګه رحمت دی؟

**ځواب:** هغو ته چې رحمت نه دی تقصیر ددوی دی .. بیت

نقصان ز قابل است و گرنه علی الدوام
فیض سعادتش بهمه کس برابر است
الشمس شمس وان لم یرها الضریر
والعسل عسل وان یجد طعمه فاه المریر

**إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ**

په تحقیق خدای ﷻ امر کوي یعني خلګ فالمفعول محذوف، په عدل سره او په احسان سره.

**پوه سه:** چې عدل په لغت کې برابری ته وایي څکه فدیه او جزا ته عدل وایي باعتبار معنی المساوات، کریمه "او عدل ذالک صیاماً" کریمه "وان تعدلوا بین النسا" یعني د متعددو ماینو په باره کې مساوات کوئ په هر شي کې چې ستاسي په اختیار کې وي، نو ددې آیت معنی داده چې خدای ﷻ تاسي امر کوي په مساوات سره په مکافات کې ان کان خیراً فخیراً وان کان شراً فشراً. هذا ما قاله المظهري. او روح المعاني او روح البیان وایي چې عدل توسط بین الافراط والتفریط وهو رأس الفضائل کلها. او ډېره فراخه لمن لري یعني ظلم مه کوه مه پر ځان او مه پر بل چا، بلکې مستحق ته خپل حق ورکوه او جور مه کوه. او عدل شامل دی و توسط ته په

امورو اعتقادیه وو کي کالتوحید چي متوسط درجه ده بین التعطیل (کما یقوله الحکماً چي خدای ﷻ یوازي اول یو عقل پیدا کړی دی، نو خدای ﷻ له ایجاد څخه معطل دی) وبین التشریک چي یا دوه واجب الوجود وایي یو خالق د نافع شیانو دی چي هغه یزدان بولي، او یو د ضرر مندو شیانو دی چي هغه ته اهرمن وایي لکه ثنویه چي وایي. وبین التشریک في العبادة لکه مشرکین چي وایي. او داغه رنګه مذهب د اهل سنتو عدل دی او متوسط دی په منځ کي د قول د هغه ډلي چي مرجیه یې بولي چي خدای ﷻ عبد مؤمن په هیڅ ګناه نه نسي او نه عذاب ورکوي، او د قول د هغه چا چي معتزله دي دوی وایي چي مرتکب د ګناهو چي بې توبې مړ سي ځای یې ابدي دوږخ دی. او اهل سنت وایي چي خدای ﷻ مرتکب د ګناهو چي بې توبې مړ سي نسي یې ان شا او مؤمن که څه هم مرتکب د کبائرو ګنهو وي او بې توبې هم مړ سي ځای یې ابدي دوږخ نه دی. او داغه رنګه دا قول د اهل سنتو چي بنده کاسب دی د خپلو اعمالو او خالق یې خدای ﷻ عدل او متوسط دی په منځ کي د جبر یعني چي بنده مجبور محض دی کما یقوله الجبریة او په منځ کي د قول د قدریه وو چي خالق د اعمالو د بندګانو بنده دی، او داغه رنګه عدل شامل دی توسط په اعمالو کما هو مذهب اهل السنة والجماعة یعني فرائض او واجبات او سنن به پر ځای کوي. دا متوسط دی په منځ کي د بطالة چي بعض جاهلان وایي چي عمل هیڅ په درد نه خوري نه عبادت او نه عصیان، ولي چي خدای پاک په ازل کي د هر چا لپاره ځای یا جنت یا دوږخ ټاکلی دی فما الفائدة في العمل وما الضرر فیه، او په منځ کي د ترهب چي لذائذ حلالات شیان پر ځان حرام بولي، او داغه رنګه عدل شامل دی توسط بین البخل (چي فرضي زکوة هم نه ورکوي او نه فرضي حج کوي وغیر ذالک من النفقات الواجبة في ذمته کنفقة الابوین الفقیرین) وبین التبذیر چي ټول مال خیرات کړي او عیال وړی پر پرېږدي، او داغه رنګه عدل شامل دی شجاعت لره چي متوسط دی په منځ کي د تهور (یعني بې جوازه دلاوري لکه پای لوچان چي یې کوي) او د جبن چي د له غزا څخه في سبیل الله د سپیتاني په سبب ځان کاږي.

**والحاصل**: درویش وایي: چي واجب معرفت د وسط په هر شي کي او عمل او

عقيده پر وسط شي كول. ولي چي توسط ممدوح دی او افراط او تفريط دواړه مذموم دي، په حديث صحيح كي راغلي دي چي يو سړی راغلی د عليه الصلوة والسلام سره يې مشوره كول په ترهب كي او د گرده عمر روژې نيولو كي او قيام الليل كله، نو عليه الصلوة والسلام پسله زجره او منع ورته وويل "ان لنفسک عليک حقًا ولزوجک عليک حقًا ولزورک عليک حقًا فصم وافطر ونم وقم" دا ذلې تفصيل د عدل، او احسان دادی چي ټول اعمال ښه او بد د خدای ﷻ د رضا لپاره وي، وفي الحديث ان الله كتب الاحسان في كل شئ وجائني الحديث الطويل الذي رواه البخاري ومسلم الاحسان ان تعبد الله كان تراه فانک بان لم تكن تراه فانه يراک. له فضيل بن عياض رح څخه روايت دی كه يو سړی ټول مواضع د احسان مراعات كړي او عمل په وكړي لكن يوه چرگه لري د هغه سره بد كوي لم يكن من المحسنين. او هم له دې سببه په حديث نبوي صحيح كي راغلي ان امرة عذبت في هرة (يوه ښځه په عذاب سوه په سبب د پشي) حبستها ولم تطعمها الى ان ماتت (دې پشي بنده كړې وه او خوراک يې هم نه وركاوه تردې چي پيشي مړه سوه يعني له لوږې.

**درويش وايي**: چي دا حديث وړد دی په قدر د حاجت موږ مختصر كړی.

**درويش وايي**: چي لوی جزء د احسان عفوه له جرائمو څخه د بل والاحسان الى من اساء . مقوله :.......... هر كه سنگت دهد تمر بخشش.

والصبر على الفرائض والواجبات وجميع الامر الالهية، والصبر عن المنهيات كلها والصبر في المصائب جهاد. ولهذا قال الله تعالى في كتابه الكريم "ان الله مع الصابرين"

وَإِيتَآئِ ذِى الْقُرْبٰى وَيَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ وَالْبَغْيِ

او په وركړه د خاوند د قرابت هغه څه چي دی ورته محتاجه وي من الطعام واللباس وغير ذالک چي تعبير په صلة الرحم څني كېږي.

**يوه سه**: چي فحشا هغه خصلت دی چي سخت وي از روی قبح كه فعل وي لكه زنى، لواطت وغيرهما او كه قول وي لكه كلمه د شرک او ريا وغير ذالک او منكر

هغه کار دی چي شرع شریف او عقل سلیم انکار څني کوي، او بغي، کبر او ظلم ته وایي. او له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی چي فحشی زنی ده، قاضي بیضاوي وایي چي فحشا افراط دی په متابعت کي د قوت شهویة کالزنی، ولي چي زنا بد ترین د احوالو د انسان دی اشنعها. والمنكر ماينكر عن تعاطيه في اثارة القوة الغضبية كالقتل والجرح والشتم وغيرها. والبغي هو الاستيلاً (اى الغلبة) والاستعلاً على الناس والتجبر عليهم، چي دا مقتضی د قوت وهميه ده، قال ولا يوجد في الانسان شر الا وهو مندرج في هذه الثلاثة ولهذا قال ابن مسعود رضي الله عنه اجمع آية في القرآن هذه الآية. او بغوي رحمه الله وايي چي سفيان بن عيينة رحمه الله وايي چي عدل استوا د سر او علانيه ده يعني ريا کاري نه وي پکښي، او احسان دادی چي د سري سر تر علانيه بهتر وي، او فحشا او منكر دادی چي علانيه د سري افضل وي تر سر يعني ريا کار وي. او بيضاوي وايي که په قرآن نه وای غير ددې آيت لصدق على القرآن انه تبيان لكل شيئ وهدى ورحمة وبشرى للمسلمين.

## يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴿٩٠﴾

خدای جل جلاله تاسي ته وعظ کوي يعني په امر او نهي سره. ددې لپاره چي تاسي به پند واخلئ له مواعظو څخه د قرآن.

**پوه سه:** چي اميرانو د مروانيانو د قوم په خپلو خطبو د جمعي لعنت پر امير المؤمنين علي رضي الله عنه وايه، امام سيوطي رحمه الله اول سړی وُچي لعنت د علي رضي الله عنه يې له خطبو څخه ساقط کړی عمر بن عبدالعزيز وُ په ځای کي د هغه دغه آيت وايه په خطبو کي ان الله يأمركم بالعدل والاحسان الآية. او خطيبانو تر ننی ورځي پوري په ده پسي اقتدا کړي ده شرقا وغربا جنوبا وشمالاً.

**فائده:** عمر بن عبدالعزيز رحمه الله په سنه نهه نيوي (۹۹) کي خلافت د اهل او عقد يې په اجماع سره تر لاسه کړی او دوه کاله پينځه مياشتي خلافت وکړی او بيا وفات سو. لکن په دغه لږ مده کي د خلافت په ميدان کي د عدالت دومره عظيم مقبوليت وګټی حتی چي بعض اهل المذاهب وايي چي خلفا راشدين پينځه دي عمر بن عبدالعزيز رحمه الله هم پکښي حساب دی او دده خلافت په مائة الاولی کي د

هجرت ؤ بالاجماع، او عرب مبالغةً وايي چي كه د دنيا د ظالمانو ظلم په يوه پله كي د ترازو واچول سي، او د حجاج بن يوسف ظلم په بله پله كي د ترازو كښېښول سي ظلم د حجاج به پر بالا وي، او دا هم عرب وايي كه د نړۍ د ټولو عادلانو عدالت په يوه پله كي د ترازو كښېښول سي او د عمر بن العزيزرح عدل په بله پله كي د عمر بن عبدالعزيزرح عدل به پر راجح وي، وهذه غاية المنقبة له في العدالت.

**درويش وايي:** چي تاريخ اسلامي په بلند اواز وايي چي څه وخت چي عمر بن عبدالعزيزرح له دار فاني څخه رحلت وكړی د بغداد په زرونو بلكي په لكونو خلګ دده جنازې ته حاضر سوي وه چي قبر تيار سو او دی هنوز پر جنازه پروت ؤ يو تند خوشبويه باد پيدا سو. دې باد يوه ورقه پر جنازه دده واچول چي په هغه كي په واضح الفاظو دا عبارت نوشته ؤ: هذا برائة من الله العزيز الجبار الى عمر بن عبد العزيز من النار. خلګو چي ورقه راپورته كړه له هر طرف څخه يې توري يعني الفاظ رسته معلومېدله. نو د خلګو دا يقين سو چي دا ورقه پېغام الهي دی اظهاراً لعلو رتبته عندالله بسبب المعدلة، نو خلګو چي عمر بن العزيز رحمه الله په قبر كي كښېښو هغه ورقه فوق الكفن پر ځيګر دده كښېښول انتهى قول اهل التاريخ، تاريخ اسلامي دا خبره هم په ثبوت رسولې ده اول سړی چي په خطبه ثاني كي دا آيت ورضم كړی "ان الله وملائكته يصلون على النبي الى اخير الآية" خليفة المهدي العباسيرح ؤ وعليه العمل في هذا الزمان في الخطب المطولة.

وَأَوْفُوا بِعَهْدِ اللَّهِ إِذَا عَاهَدتُّمْ وَلَا تَنقُضُوا الْأَيْمَانَ بَعْدَ تَوْكِيدِهَا

او تاسي وفا كوئ په وعده په ميثاق د خدای جل جلاله.

(**يوه سه:** چي بغويرح وايي چي مراد له عهد الله څخه دلته قسم بالله دی كما يدل عليه مابعده. او شعبيرح وايي چي عهد يمين دی كفاره يې كفاره د يمين ده) او تاسي مه ماتوئ قسمونه چي تاسي يې واخلئ وروسته تر ټينګولو د هغو قسمو په نامه د خدای جل جلاله چي والله او يا الله دی مثلاً.

وَقَدْ جَعَلْتُمُ اللَّهَ عَلَيْكُمْ كَفِيلًا ۚ إِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا تَفْعَلُونَ ﴿٩١﴾

او حال دا دی چي تاسي ګرځولی دی خدای جل جلاله پر ځانو باندي چي قسم مو په نامه

د هغه وانخستی "کفیل" دلته مراد له کفیل څخه شاهدی دی) په تحقیق خدای ﷻ خبر دی په هغو کارو چي تاسي يې کوئ یعني چي یا وفا بالله ده او یا نقض العهد دی، په راتلونکي آیت کي د نقض العهد یو مثال عجیب او غریب وایي.

**درویش وایي:** چي د "اوفوا بعهد الله الآیة" تفسیر چي ما وکړی پر رایه د بعضي مفسرینو ؤ، او حسین کاشفي رح مصنف د تفسیر حسیني چي یو قدیم تفسیر دی تر روح البیان او روح المعاني او مظهري دمخه تصنیف سوی دی داسي وایي، نزول آیت درشان جمعیت است که باحضرت رسالت مآب ﷺ درمکه عهد بستند بر ایمان وغلبه قریش وضعف مسلمانان مشاهده کرده جزع و اضطراب درایشان پدید آمد، شیطان خواست که ایشان را بفریبد تا نقض عهد پیغمبر کنند حق سبحانه وتعالی بدین آیت ایشان راثابت قدم گردانید وفرمود "واوفوا" یعني محکم وثابت قدم باشید "بعهد الله" یعني بر بیعت رسول خدا ﷺ کرده بودند اینجا عهد الله چرا گفته شد؟ جواب داده میشود که مبایعت رسول خدا مبایعت همراه خدا ﷻ است زیرا که درآیت دیگر خدا ﷻ فرموده "ان الذین یبایعونك انما یبایعون الله الآیة" علما گفته اند ان الرسول فان في الله باق بالله الی اخیر الآیات.

**فائده:** وفا ادا کول دي د هغه شي چي سړی پر ځان واجب کړی وي یا په قول د والله یا په نذر سره. یو هان د دین وایي چي که تاسي په یو سړي کي دومره کرامات ولیدل چي پر اوبو د دریاب روان ؤ او یا په هوا الوتی تاسي مه په خطاوزئ چي دا نو حتمًا ولي الله دی تر هغو چي تاسي ونه گورئ حال دده في حفظ الحدود والوفا بالعهود ومتابعة الشریعة الغرا، ولي چي تنگ پر اوبو چونگوښه هم کوي او په هوا الوتل توله مرغان کوي.

**درویش وایي:** چي مظهري رح و تفسیر د کاشفي رح ته صرف یوه اجمالي غایة الاجمال اشاره کړې ده نزلت الآیة في بیعة النبي ﷺ انتهی قوله. اوس نوبت دی د مثال غریب د نقض العهد.

وَلَا تَكُونُوا كَالَّتِي نَقَضَتْ غَزْلَهَا مِنْ بَعْدِ قُوَّةٍ أَنكَاثًا

او تاسي مه گرځئ په قسم ماتولو کي یا په بیعت ماتولو کي لکه هغه ښځه

چي دې به بيرته خپل ورته خلاصول وروسته تر قوت.

**پوه سه:** چي "من بعد قوة" متعلق دی په "نقضت" پوري "انكاثًا" اللغات النقض في البنا والحبل والعهد ضد الابرام كما في القاموس، وبالفارسية شكستن پيمان وپشم باز كردن ياريسمان، په پښتو خونه نړول يا رسی خلاصول يا وعده ماتول "غزل" مصدر دی په معنی د مغزول بعد قوة، يعني وروسته تر احكام د ماغزلته، "انكاثًا" حال دی له "غزل" څخه جمع د "نكث" په معنی د منكوث ده چي تاروته د رسی يا د ورتو چي بيرته يې وغوړوي، بغوي رح وايي چي يوه بېعقله او باوله ښځه وه د قريشو چي ريطه يې نوم و، او دا موسوسه وه چي دې به ورته وورېشل يو گز قدر د وړيو د پسو يا د اوښانو د وړيو يا له وجغونو څخه د بزو، او دې مينځيانې درلودې، دا كار به جاري و تر نصف النهار پوري چي نصف النهار پوره سوه، تولو مغزولات به يې بيرته خلاصول په مينځيانو دا ددې كار و هره ورځ، يعني تاسي مه گرځئ ريطه چي كار يعني قسم وكړي يا بيعت وكړي يا عهد وكړي څه مده وروسته تول ماتوي يعني يا دغه كارونه مه كوئ او يا وفا په كوئ.

تَتَّخِذُونَ أَيْمَانَكُمْ دَخَلًا بَيْنَكُمْ

**پوه سه:** چي دا جمله حال ده له ضمير څخه په "لاتكونوا" كي چي تاسي گرځوئ قسمونه ستاسي دغل يعني فريب او خيانت او فساد، اصل معنی د دخل په عربي هغه شي ته وايي چي هغه شي په خلاف الجنس گډ كړه د خيانت په تو گه لكه چي په غنمو لړ، وربشي گډې وي يو سړی وامثاله، او بعض مفسرين وايي چي دخل او دغل ان يظهر الوفا ويبطن النقض.

أَنْ تَكُونَ أُمَّةٌ هِيَ أَرْبَىٰ مِنْ أُمَّةٍ

**پوه سه:** چي تر "ان" دمخه لام محذوف دی ای لان يعني ددې لپاره تاسي نقض العهد كوئ چي جماعت هسې جماعت وي چي هغه ډېر وي په شمير كي د نفوسو او اغنيا وي په اموالو كي تر هغه جماعته چي تاسي دمخه عهد ورسره كړی و، مجاهد رح وايي چي عادت د مشركينو دا و چي د بعض اقوامو سره به يې

معاهده او تړون او حلف وکړي، نو بيا چي په دوی وليدی يو بل قوم چي هغه به اکثر وه عدداً ومالاً، نو ددمخه حلفاؤ سره به يې حلف مات کړی او د هغو د دښمنانو سره به يې حلف او معاهده وکړه، نو معنا د آيت داده چي تاسي طلب د عزت کوئ په نقض د عهد د ضعفاؤ والعهد مع الاقويا ولا ينبغي ذالک بل ينبغي الاستقامة على العهد الاول لان مراعات العهد علامة قوة القلوب وخلافه علامة الجبن" لکه قريشو د مکې چي په کال د حديبيه (چي د يو ځای نوم دی نژدې و حدودو ته د حرم) قصه يې ډېره وږده ده چي په دې تفسير کي به په مفصله توګه ذکر سي، لکن مجمل حال يې دادی چي عليه الصلوة والسلام سره د څورلس سوه صحابه کرامو ﷺ يا پينځلس يا شپاړس سوه على اختلاف الروايات د ذو القعدې په مياشت کي په نيت د عمرې راهي سوه، لکن قريشو ته د مکې چي راتګ دده او اصحابو معلوم سو نو په خپلو کي يې سوګند سره وکړی چي دوی ته اجازه د عمرې نه ورکوو چي زموږ رنګ بد برېږي خلګ به وايي چي محمد (ﷺ) سره د اصحابو په زوره سره مکې ته ورغلی دا احوال د قريشو په ذريعه د يو جاسوس چي عليه الصلوة والسلام مکې ته د کشف الحال لپاره استولی ؤ معلوم سو، نو د حديبيې په مقام کي يې خېمې ودرولې او ټوله احرام بنده هم وه او هدايا د مکې يعني اوښان هم ورسره وه، خير د قريشو د مشرانو آمد ورفت وحديبيې ته جاري سو خو قريشو په هيڅ توګه اجازت د عمرې او دخول د مکې نه ورکوی، البته دا يې ورته ومنل چي سږ کال بېرته ستانه سي پر نوي کال د ذو القعدې په مياشت کي به موږ درې ورځي تاسي ته حرم مکې درخالي کړو او تاسي به عمره وکړئ، او پر دې هم تړون او عهد سره وسو چي لس کاله به زموږ او ستاسي تر منځ به جنګ نه وي او آمد ورفت د مکې او مدينې تر منځ به جاري وي، خير عهد نامه لاس ليک سوه او دوه طرفه امضاوي پر وسوې:

**درويش وايي**: چي که څه هم قريشو په راتلونکي کال کي د عمرې په وعده وفا وکړه لکن عهد د توقف د حرب لس کاله وروسته تر دوه کاله يې مات کړی ولي چي دوی وليدی جماعت د قريشو اکثر عدداً او مالاً تر جماعت د مسلمانانو خير په هغه اول کال کي خو عليه الصلوة والسلام او اصحابو کرامو ﷺ با دل

شکسته احرامونه خلاص کړل او ځانونه یې حلال کړل او د مدینې و خواته رهي سوه، دا وه مجمله قصه په نهایت اجمال قصه د حدیبیې د صلح او د نقض.

**فائده:** په مدارک کې وایي چې "هي اربی" مبتدا او خبر دی، او مرفوع محلاً صفت د "امة" ده او "امة" فاعل د تکون دی او تکون تامه دی انتهی.

إِنَّمَا يَبْلُوكُمُ اللَّهُ بِهِ

**پوه سه:** چې ضمیر د "به" راجع دی و "ان تکون امة آه" ته یعني خدای ﷻ په دغه سره چې یو امت "اربی" تر بل وي ستاسي امتحان کوي، چې تاسي په رسی پوري د وفا لاسونه ټینګوئ، یعني بعهد الله وعهد رسوله او که یې عهد مذکور په زاویه کې د التوا غورځوي په سبب د کثرت د قریشو او د شوکت ددوی او د قلت د مسلمانانو او د ضعف ددوی.

وَلَيُبَيِّنَنَّ لَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَا كُنْتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴿٩٢﴾

او هر آئینه ښکاره به سي تاسي ته په ورځ د قیامت هغه چې ستاسي پکښي اختلاف و من الوفا بالعهد چې هغو ته یې خدای ﷻ ثوابونه ورکړي او چې عهد مات کړی وي هغو ته به عذابونه ورکړي.

**فائده:** په کثرت د عدد دې سړی نه غولېږي، ولې چې یوه هوسی بې ده تر یو لک سرکوزانو، او یو سړی چې پر حق وي لکه مؤمن تر لښکر د کافرانو افضل دی.

وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَجَعَلَكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً

که د خدای ﷻ اراده وای تاسي ټوله به یې یو امت ګرځولي وای یعني متفق علی الاسلام وفا کونکي په عهود سره او اختلاف به مو تر منځ نه وای.

وَلَكِنْ يُضِلُّ مَنْ يَشَاءُ وَيَهْدِي مَنْ يَشَاءُ

لکن خدای ﷻ ګمراه کوي هغه څوک، چې اراده د ضلال یې ورته وسي بسوء اختیاره الکفر او خدای ﷻ خپل امداد ځني قطع کړي چې خذلان یې بولي او یهدي هدایت ورکوي هغه چا ته چې اراده د هدایت یې ورته وسي بالتوفیق.

**درویش وایي:** چې ما چې ترجمه ددې آیت وکړه، نو استدلال د فرقه ضاله د

جبريه وو دفع سو چي بندگان مسلوب الاختيار دي، نو نه ثواب سته نه عقاب فافهم فان مذهبهم كفر بواح كما لا يخفى.

وَلَتُسْـَٔلُنَّ عَمَّا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿۹۳﴾

حتمًا به پوښتنه وكړل سي د هغو كارو چي تاسي په دنيا كي كوله من الكفر والمعاصي ونقض العهود. دا پوښتنه پېش خېمه د مجازات ده په ورځ د قيامت.

وَلَا تَتَّخِذُوٓا أَيْمَانَكُمْ دَخَلًا بَيْنَكُمْ

او تاسي مه گرځوئ قسمونه ستاسي فريب او فساد په منځ كي ستاسي يعني خلگ په قسمو خطاباسي چي هغوی ستاسي پر قسمو اعتماد وكړي او تاسي امين وگڼي او تاسي په عين حال كي خيانت ورسره وكړي.

**درويش وايي:** چي دا معامله د قسمو او د خيانتو په اكثرو تاجرانو او دوكان دارانو كي جاري ده في الزمان الحاضر.

فَتَزِلَّ قَدَمٌۢ بَعْدَ ثُبُوتِهَا

نو به وښويږي پښه وروسته تر ټينگ والي. دا لغوي معنی د عبارت د آيت ترجمه وه. او معنايي مراد يې داده چي تاسي به هلاک سئ وروسته تر دې چي په امن كي واست. قدم مؤنث سماعي دی.

**نكته:** عرب هر هغه څوک چي په يو آفت مبتلی سي وروسته تر عافيت. او يا په يو مهلكه كي اخته سي وروسته تر سلامتيا وايي فلان زلت قدمه.

**سوال:** په "لا تتخذوا الخ" ضمائر جمع وه، نو قدم يې مفرد څرنگه راوړی. د ډېرو خلگو خو ډېر اقدام وي؟

**ځواب:** مبالغةً يې مفرد راوړی يعني چي د قدم ښويدل آفت عظيمه دی چي له حق لاري ځنحه واوړي بعد الثبوت على الحق فكيف زلة الاقدام الكثيرة عن الصراط المستقيم. او يا معنی داده چي هغه د رسول كريم ﷺ محجة الاسلام ده يعني طريقة الاسلام او وفا په هغه بيعت سره ثبوت د قدم دی پر لار او نقض په مزلة القدم دی.

وَتَذُوقُوا السُّوٓءَ بِمَا صَدَدْتُمْ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ ۖ وَلَكُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿٩٤﴾

او تاسي به وڅکئ يعني تاسي ته به ورسېږي عذاب په دنيا کي په سبب د منع ستاسي نورو خلګو لره د وفا بالعهد څخه چي لار د خدای ﷻ ده نو کلمه د با سببيه ده او کلمه د ما مصدريه ده او د "صد" معنی په خروج سره هم کړل سوې ده ای بخرجوکم عن سبيل الله وهي الوفا بالعهود وبيعة النبي ﷺ، او تاسي لره عذاب لوی دی يعني په اخرت کي.

**درويش وايي**: چي په صحيح حديث کي راغلي دي چي که چا ښه طريقه کښېښول په اسلام کي نو ده لره ثواب د هغې ښې طريقې سته او ثواب د هغه چا چي دده په ښه طريقه عمل وکړي بېله دې چي د هغو عاملينو د ثواب دي شی ورکم کړي، او که چا بده لار په اسلام کي وضع کړه او نورو خلګو په هغه پسې اقتداً وکړه په هغه لار کي د وضع کړي، نو واضع د بدي لاري ته به خدای ﷻ عذاب ورکړي ده بېله دې چي د هغو له ګنهو څخه دي يو شی کم سي واضع د بدي لاري ورسره شريک دی آه، حتی علماً وايي چي قابيل د آدم عليه السلام زوی چي خپل ورور هابيل يې ناحقه مړ کړی، نو تر ورځي د قيامته چي هر څو مړي ناحقه کېږي قابيل يې په ګناه ورسره شريک دی، نو داغه رنګه ده چي نقض العهد او يا د بيعت د نبي عليه السلام د ماتولو لار هر چا چي غوره کړه وروسته تر ده هر څوک چي ورته کار وکړي هغه اول کار کوونکي ورسره شريک دی په عذاب کي د دنيا او اخرت.

**درويش وايي**: چي د ښې لاري د واضع او د بدي لاري د واضع مثالونه ښخي ډېر دي په اوسنۍ زمانه کي فتأمل فيها.

وَلَا تَشْتَرُوا بِعَهْدِ اللَّهِ ثَمَنًا قَلِيلًا ۚ

او تاسي مه رانسئ يعني مه بدلوئ (نو شرا مجازاً په معنی د استبدال ده) په وعده سره د خدای ﷻ لکه ايمان او په بيعت سره د رسول الله ﷺ لږ ثمن چي منافع د دنيا وي، نو اشترا په مناسبت يې عوض دنياوي ته ثمن ووايه.

إِنَّمَا عِنْدَ اللَّهِ هُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٩٥﴾

هغه شی چې په نېز د خدای ﷻ دی په عوض د وفاً بالعهود او د بیعت د رسول الله ﷺ من النصر علی الاعدا او نور نعمتونه چې پر وفاً مرتب کېږي په دنیا کې، او ثواب په اخرت کې هغه خیر دی ستاسي لپاره تر عوض دنیاوي که چېري تاسي په خیر او شر پوهېږئ او یا په فرق په منځ کې د عوضینو پوهېږئ او یا "تعلمون" نازل منزلة اللازم دی ای کنتم من اهل العلم والتمییز، او جزا د شرط محذوفه ده یعني ما اخترتم الادنی علی الاعلی.

مَا عِنْدَكُمْ يَنْفَدُ وَمَا عِنْدَ اللَّهِ بَاقٍ

هغه شی چې ستاسي سره دی من الامور الدنیاویة هغه نیستي کېږي او فاني کېږي، او هغه شی چې په نېز د خدای ﷻ دی من خزائن الرحمة والجنة هغه باقي دی ابدا، دا جمله علت دی د ماقبل جملې یعني انما عند الله آه.

**پوه سه**: چې احمد او حاکم رح له ابو موسی اشعري رضی الله عنه څخه روایت کړی دی چې رسول الله ﷺ وویل من احب دنیاه اضر بآخرته ومن احب آخرته اضر بدنیاه فآثروا ما یبقی علی مایفنی.

وَلَنَجْزِيَنَّ الَّذِينَ صَبَرُوا أَجْرَهُمْ بِأَحْسَنِ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿٩٦﴾

هر آیینه مونږ به جزا او ثواب ورکوو هغه کسانو ته چې صبر یې کړی وي پر مصائبو د دنیا من المرض والفقر واذی الکفار ومشاق التکالیف والاستقامة في الجهاد "اجرهم" ای ثواب صبرهم "باحسن ماکانوا یعملون" ای باحسن اجور اعمالهم الحسنة بعشر امثالها.

**درویش وایي**: چې دا لس خو متعین دی وهر صاحب الحسنة ته ثم یکثر التضاعف باعتبار اخلاص عامل الحسنة تراوه سوه مثل یوری الی ماشاً الله.

مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى وَهُوَ مُؤْمِنٌ

څوک چې عمل صالحاً د فرائضو او واجباتو او سننو او مستحباتو که نر وي او که ښځې.

**پوه سه**: چي ذکر او انثی چي يې ذکر کړل لپاره د دفع د توهم د تخصيص په نرو پوري. او حال دادی چي دی يعني عامل مؤمن وي قيد بالمؤمن ولي چي اعتبار نسته اعمالو لره د کافرانو په استحقاق کي د ثواب في الآخرة ولي چي بناً د ثواب في الآخرة په نيز د خدای ﷻ اخلاص او حسن نيت دی وهو مفقود في الکفرة من ای نوع کانوا. البته د تخفيف د عذاب اميد سته. مثلاً مؤسسات خيريه د کافرانو د مسلمانانو د کونډو او يتيمانو سره مرسته کوي او د وطن په آبادۍ کي ډېر نقود ورکوي.

**پوښتنه**: امريکايان وايي چي موږ په افغانستان کي داخل سوي يو د کومک او آبادۍ د مسلمانانو لپاره. د افغانستان رئيس جمهور د افغانستان د مسلمانانو څخه دی. دا خبره ددوی صحيح ده؟

**ځواب**: درواغ وايي دوی پر افغانستان تېری (تجاوز) کړی دی او خپل حکومت پر کوي او رئيس جمهور يې صرف برای نام دی هيڅ قدرت نه لري. امريکايان د افغانستان پر کلو او باندو باندي شپه او ورځ بمباری کوي قتل عام يې عمل دی. او رئيس جمهور هيڅ اختيار نه لري چي دا بمباری دي متوقف کړي فتفکر.

فَلَنُحۡيِيَنَّهُۥ حَيَوٰةٗ طَيِّبَةٗۖ

هر آئينه موږ به هغه ته ژوند ورکوو يعني في الدنيا داسي ژوند چي ډېر ښه ژوند وي.

**پوه سه**: چي سعيد بن جبير او عطاؒ وايي چي رزق حلال به ورکوو. او حسن وايي قناعت به ورکوو، او مقاتلؒ وايي خوشالي به د خدای ﷻ په طاعت کي ورکوو. او قاضي بيضاويؒ ډېر ښه جامع بيان کړی دی هغه وايي چي عيش به يې طيب وي، ولي که غني وي فظاهر ان عشيه طيب او معسر يعني که مسکين وي يطيب عيشه بالقناعة والرضا بالقسمة. او اميد د اجر عظيم په اخرت کي بخلاف الکافر، ولي چي که معسر وي خو ظاهره ده چي عيش بې د درد او غم سره ملګری وي، او که غني وي خدای ﷻ به يې په زړه کي حرص د دنيا او سرګردانۍ په طلب کي د دنيا او بېره ددې چي ته به ژوندی يې دنيا به نه

وي. وامثال ذالک. کریمه "ان له معیشة ضنکًا" او بعض مفسرین وايي چي بنده چي د خدای ﷻ سره محبت لري هر څه چي د محبوب له خوا ده ته ورسیږي که ترخه وي او که خواږه دي به په د دواړو خوند مومي. قال الرومي قدس سره:

عاشقم بر لطف و بر قهرت بجد...... ای عجب من عاشقم بر هردو ضد

ناخوش ازوی خوش بود درجان من...... جان فدای یار دل رنجان من

بعض محبان حقیقي د خدای ﷻ وايي:

امروز چون جمال تو بي پرده ظاهر است

در حیرتم که وعده فردا برای چیست

یعني روز قیامت چه خواهد بود. او مجاهد او قتاده رحمه الله وايي چي مراد له طیبه څخه ژوند د جنت دی. وقال الحسن لا یطیب الحیوة لاحد الا في الجنة.

**وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ أَجْرَهُم بِأَحْسَنِ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿٩٧﴾**

او موږ به ثواب ورکوو یعني في الآخرة.

**درویش وايي:** چي د احسن ماکانوا یعملون عنقریب تېر سو فلا نعیده.

**فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ ﴿٩٨﴾**

چي اراده وکړې له قرائت د قرآن (چونکه اراده سبب دی د قرائت. نو ذکر یې مسبب کړی مراد څني سبب دی لپاره د اختصار في عبارة القرآن. او بل لپاره د تنبیه پر دې چي څوک چي اراده د عبادت وکړي نو تلوار دي کوي چي اراده او فعل دي سره یو ځای کوي) ومثل هذا الایجاز والمجاز واقع في قوله تعالی "اذا قمتم الی الصلوة الآیة" ای اذا اردتم الی الصلوة) نو پناه وغواړه له خدای ﷻ څخه له وسوسې څخه د شیطان چي دی مرجوم او مطعون او ملعون او ترټلی دی له درباره د خدای ﷻ (تاچي دی په دوران کي د قرائت تاته وسوسه وانه چوي، دا وسوسې دده په وخت کي د قرائت د قرآن مجید په تجربه ثابتي دي خصوصاً و هغه چا ته چي په معنا د قرآن پوهیږي.

**مسئله:** بعض علماً وايي چي استعیذ بالله دي وايي نظراً الی ظاهر لفظ

القرآن. لكن مختاره اعوذ بالله من الشيطان الرجيم دى كما هو الثابت في الروايات الاربع عشرة الواردة في الفاظ الاستعاذة وهو المنقول عن النبي ﷺ.

**مسئله**: نخعي او ابن سيرين رحمه الله وايي چي اعوذ بالله دي وروسته تر قرائت وايي نظراً الى ظاهر لفظ الفا. او بل دا چي دعا وروسته تر عبادت اقرب ده و اجابت ته. والجواب انه قد صح عن النبي ﷺ چي تعوذ قبل القرائة ويله. وعليه انعقد الاجماع من السلف والخلف رحمهم الله تعالى.

**مسئله**: اعوذ بالله ويل سنت ده عند جمهور العلماء. او عطاء رحمه الله وايي چي واجب ده نظراً الى ظاهر لفظ الامر. والجواب عنه چي صحابه كرامو رضي الله عنهم رسول الله ﷺ ليدلى دى چي په بعضو اوقاتو كي تعوذ قبل القرائت نه ده ويلې. او په بخاري او مسلم كي په صحيح ثبوت ته رسېدلې ده چي عليه الصلوة والسلام قرائت د قرآن كړى دى بېله تعوذ.

إِنَّهُۥ لَيۡسَ لَهُۥ سُلۡطَٰنٌ عَلَى ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَلَىٰ رَبِّهِمۡ يَتَوَكَّلُونَ ﴿٩٩﴾

په تحقيق نشته شيطان لره تسلط او غلبه پر هغو كسانو چي ايمان يې راوړى وي او خاص پر رب ددوى توكل وي نسته. ولې چي مذكوره كسان د اوامرو د شيطان متابعت نه كوي په حفاظت د خداى جل جلاله او نه هم وسوسې د شيطان پر دوى تاثير كوي البته په صغيره گناهو كي په غفلت نادراً پر دوى تاثير وكړي، نو له هم دې سببه دوى په استعاذه سره مأمور سوه.

**تنبيه**: وروسته تر امر بالاستعاذة نفي د سلطنت د شيطان يې وكړه تاچي څوک له امر څخه د استعاذه من الشيطان دا توهم ونه كړي چي شيطان لره لكه چي سلطنت سته پر مسلمانانو كذا قال البيضاوي رحمه الله. او روح البيان وايي چي انه په ځاى كي د علت دى للامر بالاستعاذة او په دې تعليل كي اشاره ودې ته هم ده چي مجرد قول د اعوذ بالله آه فائده نه كوي په دفع كي د وسوسو د شيطان بلكې هغه چا لره چي دا غوارې چي پر ما دې د شيطان تسلط نه وي چاره نسته له دې څخه چي ايمان او توكل على الله به دواړه سره جمع كوي اذ لا حول ولا قوة الا بالله. او مظهري رحمه الله هو توجيه د تعليل ذكر كړې ده او نسبت يې و ځان ته كړى دى حيث قال قلت وجاز انيكون هذه الآية في مقام التعليل للامر بالاستعاذة الخ.

إِنَّمَا سُلْطٰنُهٗ عَلَى الَّذِيْنَ يَتَوَلَّوْنَهٗ وَالَّذِيْنَ هُمْ بِهٖ مُشْرِكُوْنَ ﴿۱۰۰﴾

بلکي غلبه د شیطان پر هغو کسانو ده چي دوی محبت لري د شیطان سره، نو دوی په خپل اختیار شیطان پر خانو مسلط کړی دی من غیر انیکون له سلطان علیه چي دوی دي مجبوره کړي وخپل اطاعت ته، نو هغه سوال دفع سو چي په دمخه آیت کي نفي د تسلط د شیطان وکړه او په دې آیت کي اثبات د تسلط وکړی. وحاصل الدفع ان النفي للتسلط راجع الی التسلط الاضطراري والاثبات راجع الی التسلط الاختیاري. او پر هغه چا یې تسلط سته چي دوی په خدای ﷻ سره مشرکین وي یعني خدای پاک لره شریک وایي. او او ضمیر د "به" راجع و شیطان ته دی یعني په سبب د شیطان دوی و خدای پاک ته شریک وایي.

وَاِذَا بَدَّلْنَآ اٰيَةً مَّكَانَ اٰيَةٍ ۙ

یعني چي بدل کړو یعني چي نسخ کړو تلاوت د یو آیت او نازل کړو په عضو کي د هغه آیت بل آیت او یا حکم د یو آیت په حکم سره بل آیت.

**درویش وایي:** چي مفسرین او فقها علیهم السلام وایي چي نسخ درې قسمه دی (۱) اول چي تلاوت یې په قرآن کي منسوخ سي او حکم یې پاته وي کقوله تعالی "الشیخ والشیخة (یعني المحصن والمحصنة) اذا زنیا فارجموهما نکالاً من الله. فان حکم الرجم باق کما في الآحادیث الصحیحة للبخاري ومسلم وتلاوتها منسوخة (۲) حکم یې نسخ سي تلاوت یې باقي وي کآیات الصفح وعدم التعرض للکافرین بالقتال فانها آیات متعددة في القرآن الکریم، لکن حکم د هغو منسوخ دی په آیت القتال سره (۳) تلاوت او حکم دواړه منسوخ وي کما روی ان بعض الصحابة کانوا یقرؤن في صلوة التهجد سورة مثل سورة الانعام، ثم آتی وقت کانوا یصلون التهجد ونسوا تلک السورة بالمرة فشکوا ذالک الی رسول الله ﷺ فقال رسول الله ﷺ ان تلک السورة رفعها الله تعالی مع الاحکام عن صدور الرجال کذا في نور الانوار وغیره من کتب الفقه.

## وَاللهُ اَعْلَمُ بِمَا يُنَزِّلُ

او خدای ﷻ خبر دی په هغه شي چي نازلوي يې، مظهري رح وايي انه كان مصلحة في وقت ثم صار مفسدة في وقت آخر (كعدم التعرض للكفرة والعفو والصفح في وقت ضعف الاسلام فانه كان مصلحة في ذالک الوقت وروسته چي اسلام قوي سو هغه عفو او صفح مفسده وګرځېدل، ولې چي كافران كه مشركان وه او كه يهود او كه نصارى وه د خبرو له لاري او د عفو او صفح د لاري پر اسلام تعرضات كول او پر عليه الصلوة والسلام يې ډېر جرئت كاوه او د اسلامي دين په نړۍ كي اشاعت يې نسواى كېداى، او فتح د شام او خيبر وسائر قرى اليهود امكان پذير نسواى كېداى، او د خداى ﷻ وعده د نصرت په جنګ كي د كافرانو چي د عليه الصلوة والسلام سره يې كړې وه عملي جامه يې نسواى اغوستلاى الى غير ذالک من الفوائد على الجهاد في سبيل الله.

**درويش وايي:** وعلى هذا فقس قول المظهري رح او كان مفسدة ثم صار مصلحة.

**اعراب:** پوه سه! چي جمله د "والله اعلم آه" حال ده له فاعل څخه د "بدلنا" والاسم الجليل من قبيل وضع الاسم الظاهر موضع المضمر كما لا يخفى، او يا دا جمله مستانفه ده لفظًا والواو الاستيناف وامثاله كثيرة في الهداية لكنها في مقام التعليل وبيان سبب التبديل والنسخ، يعني موږ چي دا تبديل كوو لانې اعلم بما هو اصلح للخلق في وقت دون وقت.

## قَالُوٓا اِنَّمَآ اَنْتَ مُفْتَرٍ

وايي كافران تاته يا محمد (ﷺ) مفتر يعني دا خبري د ځان له خوا كوئ او په خداى ﷻ پوري يې تړي، بغوي رح وايي چي مشركينو به ويل چي محمد ﷺ په خپلو اصحابو پسخند وهي يوه ورځ يې په يو كار امر كوي او بله ورځ يې له كاره څخه نهي كوي.

**پوه سه:** چي جمله د "قالوا" ځواب د "اذ بدلنا" الآية ده.

بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۰۱﴾

بلکې ډېر د کافرانو په حکمت د احکامو د خدای ﷻ نه پوهېږي او تمیز د صواب او خطا نسي کولای (نو مفعول د لایعلمون محذوف دی او یا یعلمون نازل منزله اللازم دی یعني اکثرهم لیسوا من اهل العلم والتمیز، ولې که دوی اهل تمیز وای نو دا خبره به ورته معلومه سوې وای چې قرآن کریم چې بلغاً د تولو عربو له اتیان څخه د یوه سورت عاجزه پاته سوه، نو دا محال ده چې جنس بشر دې ووایي خصوصاً النبي الامي الامین في اهل مکة قبل دعوی النبوة فلا یصلح هو ان یتهم بالافتراء علی الله ﷻ ...... شعر:

تبارک الله ماوحي بمکتسب ...... ولا نبي علی غیب بمتهم

قُلْ نَزَّلَهٗ رُوْحُ الْقُدُسِ

ووایه یا محمد (ﷺ) په رد کې د قول ددوی نازل کړی دی قرآن پاک روح یعني جبرئیل علیه السلام.

**یوه سه:** چې د قدس معنی طهر دی یعني مصدر دی په معنی د طاهر دی، نو اضافت د روح وقدس ته داسې ده لکه حاتم الجود یعني اضافت د موصوف صفت ته دی.

**فائده:** خدای ﷻ عبارت د نزله ووایه چې ماضي له بابه د تفعیل ده تنبیه پر دې ده چې نزول د قرآن پر سبیل د تدریج ده کما هو معنی التفعیل په مراعات د مصالح د عبادو، نو به حتماً تبدیل آیة مکان آیة پکښې موجود وي لان المصالح تتغیر وتتبدل فافهم هداک الله تعالی.

مِنْ رَّبِّكَ بِالْحَقِّ لِيُثَبِّتَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

له جانبه څخه د خدای ﷻ چې متلبس دی په حق سره چې توحید دی او اعتقاد د بعث بعد الموت دی او نور احکام حقه مطابق للواقع. تاچې ثابت او محکم وګرځوي هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی پر ایمان په دې سره چې دا کلام الله وان وقع فیه النسخ والتبدیل، ولې دوی چې ناسخ واوري او فکر په

حکمت او صلاح کي وکړي، نو راسخ عقائد ددوی بانه من جانب الحکیم الخبیر او د زړو اطمنان ورته حاصل سي او پر دې یې هم یقین سي چي نسخ د ابتلاً لپاره ده لان الحکیم لایفعل الا مافیه الحکمة المبالغة والمصلحة العامة.

وَهُدًى وَّبُشْرٰى لِلْمُسْلِمِيْنَ ﴿۱۰۲﴾

او هدایت او زیری دی د مسلمانانو لپاره چي منقادین د حکمه الله وي.

**پوه سه:** چي هدًی وبشری پر محل د لیثبت یعني دا هم مفعول له دی وفیه تعریض لحصول اضداد ماذکر لمن عداهم من الکفار. نجم الدین الکبری ؒ وایي چي خدای ﷻ لکه طبیب د امراض قلبیه ؤ او قرآن لکه دوا دی لپاره د امراض القلوب، لقوله تعالی شفا لما في الصدور. نو لکه طبیب چي د مریض دوا وقتًا فوقتًا وربدلوي بنوع من الدوا مطابقًا لمزاج المریض والعلة لپاره د ازاله د مرض گاهي معجونات ور مقرر کړي او گاهي مشروبات او گاهي پیچکاری. والطبیب اعلم بعلاج المرض من غیره کذالک الله ﷻ یعالج قلوب العباد بتبدیل آیة وانزال آیة مکانها والله اعلم بما ینزل ویعالج به العبد انتهی. په حدیث شریف کي راغلي دي چي یو سړی د علیه الصلوة والسلام ته راغلی او ورته وه یې ویل علمني مما علمک الله. علیه الصلوة والسلام و یو صحابي ته دی وسپاری چي تعلیم ورته وکړه. نو هغه صحابي د اذا زلزلت الارض تعلیم ورته شروع کړی حتی چي دی ځای ته ورسېدی "فمن یعمل مثقال ذرة خیرًا یره ومن یعمل مثقال ذرة شرًا یره" نو هغه سړي ورته وویل چي بسته زما تعلیم پوره سو. هغه صحابي د هغه طالب العلم خبره و علیه الصلوة والسلام ته ورسول. ده مبارک ورته وویل دعوه فقد فقها لرجل پربږدئ سړی فقیه سو. یعني د سړي سر خلاص سو چي د خیر او شر حساب په زره زره سره کېږي نو عملونه یې هم پر قیاس کړه چي تر زره لوي وي خیرًا او شرًا. شیخ سعدي وایي:

علم چند انکه بیشتر خواني ....... چون عمل درتو نیست ناداني
نه محقق بود نه دانشمند....... چار پای برو کتابي چند
آن تهی مغز را چی علم وخبر ....... که برو هیزم است و یا دفتر

قال الله تعالی في مثل هؤلاً مثلهم کمثل الحمار یحمل اسفارًا.

وَلَقَدْ نَعْلَمُ اَنَّهُمْ يَقُوْلُوْنَ اِنَّمَا يُعَلِّمُهٗ بَشَرٌ

او موږ خبر یو چي کفار مکه وایي چي دا قرآن و محمد (ﷺ) ته یو بشر ورښیي او دی یې خدای ته منسوبوي، بغوي رح وایي چي دا بشر دوی څوک یاداوه په دې کي اختلاف دی، ابن عباس رضي الله عنه وایي چي علیه الصلوة والسلام و یو آهنګر ته په مکه کي چي نوم یې بلعام ؤ او نصراني ؤ او اصل ژبه یې عجمي وه تعلیم یې کاوه د دین اسلام، او مشرکانو به علیه الصلوة والسلام لیدی چي دغه دکان ته ځي او راځي، نو دوی به ویل چي دا قرآن محمد ته بلعام ورښیي، او عکرمه رضي الله عنه وایي چي کان النبي ﷺ يقرء غلامًا لبني المغيرة چي يعيش يې نوم ؤ او هغه د پر کتابونه ویلي وه. نو مشرکینو به ویل چي دا قرآن وده ته یعیش ورښیي او هغه هم عجمي ؤ.

**درویش وایي**: چي نور قولونه هم مظهري رح د دغه سړي په باره کي رانقل کړي دي لکن ټول د دغه مسمی اشخاص عجمیان وه بالاجماع.

**درویش وایي**: چي امام واحدي رح په اسباب النزول کي له عبید بن سلمه څخه نقل کړی دی کان في مکة غلامان نصرانیان من اهل عين التمر اسم احدهما يسار واسم الآخر جبر، د دوی صنعت او کسب دا ؤ چي توري یې پالشولې او زنګ یې ځني لیري کاوه، نو دو به یو کتاب وایه په خپله ژبه سره نو علیه الصلوة والسلام چي به تېرېدی ورته وبه درېدی د دوی و قرائت ته به یې غوږ ونیوی، نو مشرکینو به ویل چي محمد زده کړه کوي له یسار او جبر څخه، نو خدای پاک په دې آیت کي رد پر دوی وکړی، نو مراد له بشر څخه په آیت کي دغه دوه مریان دي.

لِسَانُ الَّذِیْ یُلْحِدُوْنَ اِلَیْهِ اَعْجَمِیٌّ

ژبه یعني لغت د هغه سړي چي دوی میل و هغه ته کوي او اشاره ورته کوي چي دا معلم القرآن دي و علیه الصلوة والسلام ته.

**پوه سه**: چي حمزه او کسائي "یلحدون" په زور د یا او حا وایي یعني د مجرد له باب څخه او نور قاریان یې په ضمه د یا او کسره د خا وایي یعني له بابه څخه

د افعال "اعجمي" يعني كه څه هم عربي يې ښه زده ده خو فصيح في العربية نه دى. او عجمي هغه څوک دى چي په قوم عجم وي كه څه هم عربي يې زده وي، والعجم خلاف العرب من كان كه خبري په عبراني وي او كه سرياني او كه فارسي وي او كه پښتو الى غير ذالک من اللغات.

وَهٰذَا لِسَانٌ عَرَبِيٌّ مُّبِينٌ ﴿۱۰۳﴾

او دا قرآن لغت دى په عربي ژبه چي فصيح او بليغ دى او بيان واضح دى چي ددغه قول د قرآن "وان كنتم في ريب مما نزلنا على عبدنا فأتوا بسورة من مثله الى اخير الآية" نه چا په عربو كي د هغه وخت وركړى دى او نه به يې الى يوم القيامة وركړي ولو كان بعضهم لبعض ظهيراً.

**پوه سه:** چي دا دواړي جملې مستأنفې دي لپاره د ابطال د قول د مشركينو چي عليه الصلوة والسلام دا قرآن له ځانه جوړوي او وايي چي كلام الله دى، حاصل ابطال قولهم چي عليه الصلوة والسلام چي اوري د عجمي كسانو خبري هر څوک چي وه على اختلاف الروايات كمامر هغه خو عجمي ژبه وه. او عليه الصلوة والسلام خو په هيڅ عجمي ژبه نه پوهېدى او نه تاسي عرب د مكې پرته له عربي پوهېدلاست، والقرآن عربي يفهمونه فكيف يكون هذا اى القرآن ذالک اى الكلام من العجمي كما يقول المشركون. وايضاً د قرآن مبارک معنى لكه چي معجزه د لفظ يې هم معجز دى د طوق د بشر خارج دى بخلاف الكتب السماوية الاخر فان معناها وان كان معجزاً لكن لفظه غير معجز، نو قرآن كه څه هم د تورات او انجيل سره په معنى كي د توحيد وغيره من العقائد الحقة يو شى دى لكن تعبير د معانيو في الكتب السابقة بمثل عبارة القرآن ليس في وسع البشر، نو چي قريشو ته خپل عجز معلوم سو له اتيان څخه د مثل د يوه سورت كمامر عنقريب. نو څرنګه دوى ممكن بولي چي عليه الصلوة والسلام دي د تعلم د ټوله قرآن د يوه وخت وبل وخت په سمع سره په بعض اوقاتو كي د تېرېدلو پر عجمو چي په ژبه يې هم نه پوهېدى جمع كړي وي لكن ... بيت:

چشم بد انديش كه بركنده باد ........ عيب نمايد هنرش درنظر

إِنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ لَا يَهْدِيهِمُ اللَّهُ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ

په تحقيق هغه كسان چې ايمان نه لري پر آياتو د خداى ﷻ يعني چې د آيات قرآنيه من عند الله دي، نه كوي هدايت خداى پاك ددوى و حق لا ري ته، يا الى الجنة يا الى سبيل النجاة او دوى لره عذاب درد وركونكى يعني په آخرت كې.

إِنَّمَا يَفْتَرِي الْكَذِبَ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ

دروغ چې تړي پر خداى ﷻ، هغه څوک يې تړي چې ايمان نه لري پر آيات د خداى ﷻ ولې هغه كسان خو بعث بعد الموت نه مني چې د عقابد خداى ﷻ دي بېرېږي او افتراً پر خداى ﷻ دي نه كوي بخلاف مطلق المؤمنين بالله فضلاً عن النبي ﷺ.

وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْكَاذِبُونَ

اشارة الى كفار قريش او الى مطلق الكفار هم دوى دروغ ويونكي دي، يعني د رشتيا گو كاذبين هم دغه كسان دي، ولې چې مؤمنان د هغه عصر صادقان وه عادلان وه عمل كونكي وه او د خير القرون وگړي وه. او يا د آيت معنى داده چې دغه كسان كامل كاذبان دي، نو حصر د جنس الكذب په دوى كې كما يفيده ضمير الفصل وهو هم په اعتبار د كمال ددوى دى په كذب كې كما يقال زيد هو الشجاع مثلاً. ولې چې دوى تكذيب د آياتو د خداى ﷻ وكړى او رسول معصوم ﷺ ته يې لفظ قبيح د مفتر ووايه او طعن او عيب يې پر قرآن كريم او پر رسول جليل ﷺ ووايه په دغو خرافات يعني انما يعلمه البشر وروسته تر دې چې صدق د قرآن او د رسول ودوى ته په معجزاتو باهراتو ښكاره سوى و اعظم انواع الكذب.

**فائده**: جمله فعليه يعني انما يفترى الكذب آه تدل على انحصار صدور الافترا عليهم والجملة الاسمية يعني اولئک هم الكاذبون تدل على كون الافترا وصف لازم لهم. بغوي رح په خپل سند د عبد الله بن جراد رضی الله عنه څخه روايت كړى دى قلت يا رسول الله المؤمن يزنى قال قد يكون ذالک قلت المؤمن يسرق قال قد يكون ذالک. قلت المؤمن يكذب قال لا. قال الله تعالى انما يفترى الكذب الى

اخير الاية. وروى احمد عن ابى امامة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ يطبع المؤمن على الخصال كلها الا الخيانة والكذب.

**تبصرة:** الله اعلم المراد بالمؤمنين في الاحاديث المذكورة المؤمنون الموجودون في زمن النبي ﷺ لامطلق المؤمن ودليل ذالک انه قد انعقد الاجماع على كون الصحابة ﷺ صدوقًا عدولاً لايجوز الطعن على احد منهم.

**درويش وايي:** چي كذب او خيانت بعد خير القرون فقد شاع كل واحد منهما في المؤمنين وتجاوزا من العوام الى الخواص الا ماشذ وندر ثم يزداد شيوعهما يومًا فيومًا.

## مَنْ كَفَرَ بِاللّٰهِ مِنْۢ بَعْدِ اِيْمَانِهٖٓ اِلَّا مَنْ اُكْرِهَ

كه څوک كافر سي (يعني په خوله كلمه د كفر ووايي) وروسته تر ايمان يعني قولاً وقلبًا مگر نه هغه څوک چي مجبور سي پر كفر لسانًا. بغوي رح په خپل سند سره له ابن عباس ﷺ څخه روايت كړی دی چي دا آيت نازل سوی دی په عمار بن ياسر ﷺ كي. قصه يې دا وه چي مشركانو د مكې دی او دده پلار ياسر او دده مور سميه او صهيب او بلال او خبيب او سالم ﷺ ونيول او بې زړه سوي عذابونه يې پر شروع كړه، په سميه ﷺ خو يې داسي وكړل چي يوه پښه يې په يوه اوښ پوري او بل يې په بل اوښ پوري وروتړل او په فرج كي يې نېزه ووهله شهيده يې كړه، او ددې مېړه ياسر ﷺ چي د عمار ﷺ پلار و هغه يې هم قتل كړی، دا دوه اول مقتولان وه په اسلام كي، او عمار ﷺ ددوی سره ومنل هغه څه چي دوی ورته وايه يعني كلمه د كفر او شرک بالله صرف په ژبه سره وقلبه مطمئن بالايمان، او قتاده رح وايي چي بنوا المغيرة عمار ﷺ ونيوی او په څاه كي د ميمون يې په اوبو كي ډوب كړی او ورته وه يې ويل كفر بمحمد. نو عمار ددوی په خوله متابعت وكړی وقلبه كاره لذالک. نو عليه الصلوة والسلام ته چا خبر وركړی چي عمار خو كافر سو. عليه الصلوة والسلام ورته كلا نه دی كافر سوی يعني په كفر معتبر في الشرع وهو الكفر القلبي اَن عمارًا ملئ ايمانًا من قرنه الى قدمه (ډک دی له ايمان څخه تر سره بيا تر پښو پوري) واختلط

الایمان بلحمه ودمه. خیر خو عمارﷺ مدینې ته وتښتېدی. نو عمار چا ور وستی و علیه الصلوة والسلام ته. نو ده مبارک ورته وویل چي څه قصه ده؟ عمارﷺ وژړل او داسي يې وویل چي حال زما ډېر بد دی یا رسول الله "نلت منک" تاته مي ښکنځل وکړه وذکرت او ته مي په بدو الفاظو یاد کړې. علیه الصلوة والسلام ورته وویل کیف وجدت قلبک" زړه دي څرنګه ؤ عمارﷺ ورته وویل مطمئنًا بالایمان. نو علیه الصلوة والسلام یې د سترګو ښکې ور پاکولې او داسي يې ورته وویل ان عادوا لک فعدلهم. که يې ته بیا ونیولې ته د کفر خبره بیا ورته وکړه فنزلت هذه الآیة.

**درویش وایي:** چي له دې بیان څخه دا معلومه سوه چي بعد الهجرة دا موضوع پېښه سوې ده.

**درویش وایي:** چي صحیح هغه روایت دی چي ثعلبي او حدادي او ابن ابی حاتم رح له ابن عباسﷺ څخه کړی دی چي دا ټوله قصه یعني قتل د سمیهﷺ او ددې د مېړه یاسرﷺ او کلمه د کفر د عمارﷺ هغه وخت پېښه سوه چي علیه الصلوة والسلام اراده د هجرت کړې وه او مهاجر سوی نه ؤ الی اخیر القصة المذکورة. نو له دې څخه دا معلومه سوه چي دا آیت په مکه کي نازل سوی دی. بلکي مفسرین ټوله وایي چي سورت النحل ټوله په مکه کي نازل سوی دی مګر نه درې آیته د اخیر چي په مدینه کي نازل سوي دي.

**درویش وایي:** چي بغوي او ابن ابی حاتم وایي چي مجاهد رح وایي چي دا آیتونه نازل سوي دي په هغه خلګو کي د مکې چي ایمان یې راوړی ؤ. نو دوی ته نوشته کړه بعض اصحابو د علیه الصلوة والسلام چي تاسي ضرور هجرت راوکړئ. ولي چي موږ تاسي خپل له جملې څخه نه بولو تر څو چي تاسي هجرت موږ ته ونه کړئ. ولي وروسته تر هجرت د علیه الصلوة والسلام پر مکې والو مسلمانانو هجرت فرض ؤ. نو هغه کسان د هجرت په قصد له مکې څخه ووتل، نو قریش چي خبر سوه ورپسي ووتل او دوی یې ونیول په لار کي نو وروسته تر ډېر عذاب ورکولو دوی کفر مختاره کړی کارهین.

**درویش وایي:** چې له دې شان نزول څخه دا معلومیږي چې دا آیت مدني دی وقدمر آنفًا ان سورة النحل تول مکي دی الا ثلث آیات في اخیرها والله اعلم بالصواب.

## وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالْإِيمَانِ

او زړه یې مطمئن او آرام په ایمان سره وي یعني عقیدې یې تغییر نه وي کړی.

**مسئله:** په نېز د محققینو رکن لازم د ایمان تصدیق قلبي دی او اقرار باللسان شرط دی د اجرا د احکامو د ایمان کالنکاح وعدم وضع الجزیة الی غیر ذالک.

**درویش وایي:** چې له دې آیت څخه ددې مسئلې توضیح وسوه.

## وَلَٰكِن مَّن شَرَحَ بِالْكُفْرِ صَدْرًا فَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ مِّنَ اللَّهِ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿١٠٦﴾

ای لکن هغه کسان چې خلاصه کړي وکفر ته سینه یعني زړه او کفر قبول کړي او مختار یې کړي او زړه په خوشاله وي چې دې ته مرتد حقیقي وایي. نو پر هغو باندې غضب د خدای ﷻ او دوی لره دی عذاب لوی وهو هذاب النار.

**فائده:** "من کفر" مبتدأ ده متضمن معنی لره د شرط او خبریه چې متضمن معنی لره د جواب د شرط محذوف دی وهو فعلیهم غضب ولهم عذاب عظیم. دل علیه جواب من شرح.

**پوهه:** چې اکراه باعثه کول دي د بل چا پر داسې فعل چې دی یې بد بولي دا اکراه پر دوه قسمه ده. یو داده چې رضا یې نه وي لکن اختیار یې پاته وي لکه اکراه په ضرب او حبس سره، او دوهم دادی چې رضا او اختیار یې دواړه له منځه ولاړ سي لکه اکراه په قتل سره او یا په قطع د یوه اندام د مکره، او په دواړو قسمو کي دا شرط دی چې قدرت به لري مجبور کونکی. چې مکره "په صیغه د اسم فاعل" یې بولي پر هغه کار چې د مکره "پر صیغه د اسم مفعول" ذکر کړي. او غالب ظن د مکره داوی چې مکره داغسې راسره کوي که دده د غوښتنې مثبت خواب ورنه کړم یعني ارتداد باللسان مع اطمنان القلب کما ههنا. نو اول قسم د اکراه خو په آیت کي مراد نه دی او نه روا کونکی د ارتداد دی لبقاً اختیاره.

وعدم الاضطرار، بل المراد ههنا هو القسم الثاني. علماؤ اجماع كړي ده چي يو مسلمان چي مجبور سي پر كفر يعني يا په قتل يا په قطع د عضو هغه ته روا ده چي تلفظ په كلمه د كفر يا سجده و بت ته يا سب و نبي عليه السلام، يا نور داسي ورته اقوال يا افعال وكړي مطمئناً قلبه بالايمان، نو په تلفظ د كفر يا په فعل د كفر نه كافر كېږي او نه يې مانېنه پر طلاق كېږي "كما هو حكم المرتد الواقعي" په دليل ددې آيت "فمن كفر بعد ايمانه الى اخير الآية" او په دليل د قصه د عمار رضي الله عنه كمامرت عنقريب لكن هذه رخصة. والعزيمة عدم قبول الاكراه والتسليم للقتل لمرضات الله لقصة والدي عمار رضي الله عنهما كمامرت يعني سمية و يسار وغيرهما رضي الله عنهم.

ذٰلِكَ بِأَنَّهُمُ اسْتَحَبُّوا الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا عَلَى الْاٰخِرَةِ ۙ وَأَنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۰۷﴾

اى الكفر بعد الايمان چي عبارت د ارتداد حقيقي څخه دى په سبب ددې چي دوى خوښ كړى او مختاره كړى دى ژوند ناقص فاني، پر ژوند د اخيرت يعني ژوند د جنت چي باقي لايفنى ابداً دى او په تحقيق خداى جل جلاله هدايت په معنى د دلالت موصوله نه كوي و كافرانو ته، ما هدايت موصله ووايه، ولي كه هدايت په معنى د ارائة الطريق دى چي هدايت على مايوصل الى المطلوب هغه خو خداى جل جلاله كړى دى په رااستولو د رسولانو عليهم السلام او په نازلولو د يو سل او څلور (۱۰۴) كتابونو او صحيفو.

**پوه سه:** چي مراد هغه كافران دي چي په علم قديم كي د خداى جل جلاله دوى په خپل اختيار كفر غوره كوي او ثبات او دوام پر هغه كفر كوي الى الموت او دوى نه ساتي خلاف الاختيار د دوى له زيغ او كفر څخه "يعني قسر والجا" وهذا سبب لعدم هدايتهم يعني اختيارهم الكفر وعدم التدبر في آيات الانبياء عليهم السلام اى بمعجزاتهم والسبب الحقيقي هو عدم ارادة الله فيهم الهداية ففي هذه الآيات دليل على ان افعال العباد من الكفر والايمان والعبادة والعصيان مخلوقة له تعالى وهذا هو المذهب الاعذب لاهل السنة والجماعة بان الخالق لافعال العباد هو الله تعالى او د بنده برخه صرف كسب دى او صرف الارادة ده. والفرق بين الخلق والكسب

مذكور في كتب علم الكلام كشرح العقائد وشرح المقاصد للعلامة التفتازاني رح
والمواقف للقاضي عضد الدين رح وشرحه للعلامة السيد الجرجاني رح وقد ذكر
محب الله البهاري رح الفرق بينهما في مسلم الثبوت باحسن الوجه وهذا المذهب هو
المتوسط بين الجبر كما هو مذهب الجبرية من ان العبد مجبور محض في افعاله
لانه على هذا يكون ارسال الرسل وانزال الكتب عبثاً كما لا يخفى وبين القدر يعني
ان الخالق لافعال العباد هو العباد كما هو المذهب للقدرية اعني المعتزلة.

أُولَٰٓئِكَ الَّذِينَ طَبَعَ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ

دوی هغه کسان دي چې خدای ﷻ مهر د غفلت لګولی دی د دوی پر زړو
بسبب سوء اختيارهم، نو په حق دين کي فکر نه وهي او په علاماتو کي د قدرت
د خدای ﷻ في الانفس والآفات هم غور نه کوي.

وَسَمْعِهِمْ وَأَبْصَارِهِمْ ۖ وَأُولَٰٓئِكَ هُمُ الْغَافِلُونَ ﴿١٠٨﴾

او پر غوږو ددوی (چي حق په سماع قبول سره نه اوري) او پر سترګو ددوی
(چي دوی په کتلو د اعتبار و معجزاتو ته د انبيا عليهم السلام نه ګوري) او دوی دي
کامل په غفلت کي، ولي چي دوی د صانع ﷻ او د هغه د توحيد څخه غافله دي
وضمير الفصل دال على ان الغفلة محصور فيهم.

لَا جَرَمَ أَنَّهُمْ فِي الْآخِرَةِ هُمُ الْخَاسِرُونَ ﴿١٠٩﴾

**پوه سه:** چي "لاجرم" مجموع يوه کلمه ده په معنى د حقاً که درآن هيچ شک
نيست، چي دوی په اخرت کي يعني يوم القيامة کي لوی تاوانيان دي، ولي
عمرونه يې په داسي شي کي صرف کړل چي سبب د عذاب ابدي وګرځېدل يعني
الكفر والشرک او داسي شی يې حاصل نه کړی چي دوی دي له عذاب مخلد
څخه خلاص کړي او خسران عظيم په دوی کي حصر دی کما هو معنى ضمير
الفصل، او عصات المؤمنين که څه هم اکثره عمرونه يې په شهواتو او معاصيو
کي صرف کړي هم وي لکن د ايمان او توحيد لمن يې تينګه نيولې ده چي د
عذاب مخلد في النار يې ځانونه خلاص کړي دي، شيخ سعدي رح وايي:

قیامت که بازار مینو نهند ........ منازل باعمال نیکو دهند
بضاعت بچند انکه آری بری ........ اگر مفلسی شرمساری بری
کسی راکه حسن عمل بیشتر ........ بدرگاه حق منزلت بیشتر

درویش وایي: چي
بضاعت نیاوردم الا امید .......... خدایا زعفوم مکن ناامید

چار چیز اورده ام شاها که در گنج تو نیست
عاجزی و مسکینی فقر و گناه اوردم

الهی یا الهي یا الهی ......... ندارم جز امیدت تکیه گاهی
ندارم توشه راه قیامت ........ بجز شرمندگی و رو سیاهی
ندارم طاعت مقبول درگاه ........ بجز اشک ندامت آه آهی
زکن موجود کردی هر دو عالم ........ مرا از ذنب خود کن عذر خواهی
عبید راخاتمه بالخیر گردان ........ بحق مصطفی وچهار یاران

ثُمَّ إِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِينَ هَاجَرُوا مِنْ بَعْدِ مَا فُتِنُوا

**پوه سه:** چي لفظ د "ثم" لپاره د تباعد د حال ددې کسانو دی د حال د مخنې ذکر سوو کسانو څخه یعني د تراخي في الزمان لپاره نه دی بلکې د تراخي في المرتبة لپاره دی، وروسته ستا خدای یا محمد (ﷺ) د هغو کسانو لپاره چي هجرت یې مدینې منورې ته کړی وي وروسته تر دې چي دوی له اسلام څخه منع کړه سوي او معذب کړل سوي وي.

**پوه سه:** چي ابن سعد رح په خپل کتاب طبقات د عمر بن الحاکم څخه داسې روایت کړی دی چي عمار بن یاسر رضي الله عنه ته مشرکانو عذاب ورکاوه حتی چي دی پوهېدی چي زه څه ووایم. او صهیب رضي الله عنه ته عذاب ورکول کېدی حتی لایدري مایقول. او ابو فکیهة رضي الله عنه ته عذاب ورکول کېدی حتی لایدري مایقول او بلال او عمار بن فهیرة وقوم آخر من المسلمین رضي الله عنهم حتی لایدرون مایقولون. نو په دغو کسانو کي دا آیت نازل سوی دی. او بغوي رح وایي چي دا آیت په شان کي د عیاش بن ابی ربیعه رضي الله عنه چي د ابو جهل رضعي ورور ؤ او په شان کي د ابو جندل بن سهل

او ولید بن ولید او سلمه بن هشام او عبید الله بن اسید ﷺ کي نازل سوی دی چي دا
توله په فتنه کي د مشرکانو مبتلا وه او دوی بعض مطالبات د مشرکانو ورسره
ومنل په ژبه. وقلوبهم مطمئنة بالایمان حتی چي خانونه یې ددوی له شره خلاص
کړل او مدینې منورې ته یې هجرت وکړی والله اعلم بالصواب.

ثُمَّ جَاهَدُوا وَصَبَرُوٓا

بیا یې جهاد کړی وي په معیت د رسول الله ﷺ او یا بیله معیته دده کما
في السرایا د کفارو سره "وصبروا" او صبر یې کړی وي پر ایمان او طاعاتو او
پر جهاد في سبیل الله او پر سختیو د هجرت او ترک الوطن باندي، او صبر
یې کړی وي له گنهو څخه. او حسن او عکرمه رح وایي چي دا آیت په شان کي د
عبد الله بن سعد نازل سوی دی چي دی کاتب د وحي د رسول الله ﷺ و. نو
شیطان یې پښه وښویول او مرتدد سو ولاړی مکې ته د کفارو ملگری سو. نو
آنحضرت ﷺ چي مکه فتح کړه امر یې وکړی په قتل د عبد الله المرتد. نو
عثمان رضي الله عنه د عبد الله لپاره د پناه غوښتونکی سو چي عبد الله د عثمان رضي الله عنه د
مور د خوا ورور و. نو علیه الصلوة والسلام د عثمان رضي الله عنه خبره ومنله او امر د
قتل یې بیرته واخستی وروسته عبد الله مسلمان سو او اسلام یې د زړه له
کومي او اخلاص څخه و فانزل الله تعالی هذه الآیة.

**درویش وایي:** چي دا شان نزول چي مظهري رح راوړی دی له سیاق څخه د
هغه آیت ثم ان ربک للذین الآیة ډېر لیري دی کما لا یخفی.

إِنَّ رَبَّكَ مِنۢ بَعۡدِهَا لَغَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴿۱۱۰﴾

په تحقیق ستا خدای یا محمد (ﷺ) وروسته تر هجرت او جهاد او صبر
تاکیداً بخښونکی دی دده مخني اقوال او افعال ددوی او مهربان دی چي دوی ته
په نعمتونه د دنیا او آخرت ورکړي په سبب د افعالو ورستنیو ددوی.

**فائده:** خبر د "ان" اول یعني ثم ان ربک آه محذوف دی چي خبر د "ان" ثاني
دلالت پر کوي.

# يَوْمَ تَأْتِي كُلُّ نَفْسٍ تُجَادِلُ عَنْ نَفْسِهَا

**يوه سه:** چي "يوم" منصوب دی په "اذكر" مقدر سره يعني ته وريياد كړه، يعني بيان كړه هغه ورځ چي مراد ځني يوم القيامة ده چي كوشش كوي هر سړی په خلاص والي د خپل ځان وبل ته يې فكر نه وي لغاية الدهشة ولكون العزيز الجبار في لباس صفات الجلال، فالكافر يقول ربنا هؤلاء اضلنا" اميد يې دا وي چي په عذر به زه له عذاب ځنځه خلاص سم "والله ربنا ما كنا مشركين" اميد يې دا وي چي په دې انكار سره د شرک به زه خلاصون ومومم د خدای ﷻ له عذاب ځنځه لكه په دنيا كي چي به بعض وخت په انكار ديون وغيرها به سړی خلاصېدی وامثال من الاعذار، والمؤمن يقول رب اسئلک نفسي لاتجعلني مع القوم الظالمين. ابن جرير؊ په خپل تفسير كي راوړي دي چي يو سړي پوښتنه وكړه له عليه الصلوة والسلام "من اين يجأ بجهنم؟ له كومه ځايه راوړل كېږي جنهم؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل "يجأبها من الارض السابعة، لها الف زمام" دوږخ لره زر مهاره وي پر هر زمام يې اوويا زره ملكې وي چي تسبيح د خدای ﷻ وايي چي دوږخ له اهل محشر ځنځه په مسافت كي د زرو كلو وي دوږخ يوه ساه وكاږي، نو په دغه وخت كي لا يبقى ملک مقرب ولا نبي مرسل الا جثى على ركبتيه مگر كښېني پر زنگنو يعني پر هيئت د تشهد د لمانځه يقول رب نفسي نفسي زه خلاصون غوارم فقط د خپل ځان يعني په هيڅ چا كار نه لرم.

بجائی كه دهشت خورند انبيا ....... تو عذر گناه را چي داری بيا

# وَتُوَفَّىٰ كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿١١١﴾

او پوره به وركړل سي و هر سړي ته جزا د هغه شي چي ده يې عمل كړی وي يعني من خير وشر او پر دوی ظلم نه كړل كېږي چي يا دي عمل د خير دده ځني پټ سي يا يې په عمل كي د شر زياتوب راوستل سي.

# وَضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا قَرْيَةً

او بيانوي خدای ﷻ يوه قريه "چي صفت به يې راسي" مثال د هر قوم لپاره

چي خداى ﷻ دوى ته نعمتونه او امن واماڼ وركړې ؤ او دوى نعمتو غافله كړه له شكر څخه د خداى ﷻ بلكې په عوض كې د شكر يې كفر مختاره كړى، نو خداى ﷻ عذاب پر نازل كړى وهذا حاصل المثل المذكورة، بغوي رحمه الله وايي چي مراد له دې قريه څخه مكه ده، نو معنى ددې آيت داده چي خداى ﷻ گرځولې مكه په داسې حال سره چي دا ضرب مثل ده د نورو قريو لپاره. او روح البيان وايي اى قصة اهل قرية كانت من قرى الاولين وهي ايلة كما في تفسير الكواشي وهي قرية وبلد بين ينبع و مصر.

**درويش وايي:** چي مظهري رحمه الله چي وايي چي دا ضرب مثل يوه فرضي قريه دې وې بې ځايه احتمال دى كما لا يخفى لان ضرب المثل في جميع القرآن لايكون بالمفروض المحض.

## كَانَتْ اٰمِنَةً مُّطْمَىِٕنَّةً يَّاْتِيْهَا رِزْقُهَا رَغَدًا مِّنْ كُلِّ مَكَانٍ

چي وه دا قريه په امن كې (يعني اهل د هغې قريې چي نه چا غارت پر كاوه او نه له حملې څخه د كسرى فارس او نه له حملې څخه د قيصر روم بېرېدل) چي اهل ددې قريې په ارامه سره ژوند كاوه چي له خوفه د دښمن ترك الوطن ته مجبوره نه وه، او داغه رنگه له تنگى څخه د رزق لكه نور عرب چي به دې ته مجبوره وه.

چي ورته راتلى رزق ددې قريې يعني اهل ته يې (په اندازه د قوت ددوى) فراخه په قدر د كفايت ددوى د اطرافو د بري او بحري لارو څخه كه څه هم په مكه كې د كرهنې مځكه نه وه كما هو المعلوم الى الآن.

## فَكَفَرَتْ بِاَنْعُمِ اللّٰهِ

نو دې قريې يعني ناشكري ددې نعمتو وكړه او په ځاى كې د شكر يې كفر مختاره كړى "انعم" جمع د نعمت ده لكه ادرع چي جمع د ذرع ده.

**سوال:** په مفرد كې "انعم" چي نعمت دى تا موجوده ده او په مفرد كې ادرع چي درع تا نسته فالقياس مع الفارق؟

**خواب:** تا ته يې اعتبار نه وركړى.

فَأَذَاقَهَا اللَّهُ لِبَاسَ الْجُوعِ وَالْخَوْفِ

نو په دې قريه (يعني په اهل ددې قريې يې په سبب د ناشکرۍ ددوی کمايدل عليه الفا) وڅکلي يعني ورساوه دوی ته خدای ﷻ عذاب.

**پوه سه**: چي ذوق څکلو ته د مطعوم وايي. دلته استعاره ده ورسېدلو ته د اثر د ضرر. او لباس کالو ته وايي چي سړي اغوستي وي دلته استعاره ده و اثر ته د خوف او جوع چي تغير د رنګو دی وفي هذه الاستعارة نکتة بديعة يعني لباس چي پر لابس محيط وي داغه رنګه اثر د خوف او جوع پر دوی احاطه وکړه.

بِمَا كَانُوا يَصْنَعُونَ ﴿۱۱۲﴾

په سبب د هغه چي دوی وه صنع يې کوله من الکفر وکفران النعمة. بغوي رح وايي چي وروسته تر هجرت عليه الصلوة والسلام امر وکړی چي هغه تجار چي مکې ته يې خوراکي مواد راوړه نه دې راوړي او خپل سرايا يې پر دې وګمارل. نو آفاقي عربو خپل خوراکي مواد په امر د رسول الله ﷺ اووه کاله پر بند کړه حتی چي اهل مکه ودې اندازې ته ورسېدل چي مرداري غوښې او د سپو غوښې حتی العلهز. چي د اوښ وړی په وينو ولړي او بيا يې ويشولې او څيښلې به يې حتی چي اسمان ته به يې وکتل دوی به ويل چي لوږې زمونږ سترګې هم را تاريکي کړي دي حتی چي رئيسانو د قريشو عليه الصلوة والسلام ته استاذي ور واستول چي دا خو ستا عداوت دی د رجالو سره فمابال النسآ والصبيان يعني دې قحط خو ښځې او کوچنيان هم په تر اغيزې لاندې راوستل. نو عليه الصلوة والسلام امر وکړی چي تجار دې خپل خوراکي مواد مکې ته نقل کوي وهم بعد ذالک المشرکون کما کانوا قبل ذالک.

**درويش وايي**: چي پر دې شان نزول د بغوي رح يو دقيق سوال وارديږي چي دا سورت خو مکي دی کمامر. او عليه الصلوة والسلام چي بنديز د حمل ونقل د خوارکي موادو ولګاوه هغه خو بعد الهجرة و، نو د ځواب يې دوه اړخه دي، يا به سړی وايي چي سورت که څه هم مکي دی لکن دغه آيتونه يې مدني دي بعد

الهجرة. او یا به شان نزول د روح البیان تائید وي چي دا قریه مکه نه ده بلکې قریه د ایله ده کمامر عنقریب فافهم. نو دا مثل چي خدای ﷻ ذکر کړی په قرآن کریم کي لپاره د انذار د اهل مکه اما اهل مکه په دې انذار عمل ونه کړی.

**وَلَقَدْ جَآءَهُمْ رَسُولٌ مِّنْهُمْ فَكَذَّبُوهُ**

لام موطئه د قسم محذوف دی. او لفظ قد لپاره د تحقیق دی والمعنی. والله په تحقیق راغلی و دوی ته یعني اهل مکې ته رسول چي محمد ﷺ دی ددوی له قوم څخه یعني عرب او په عربو کي قریش.

**پوه سه:** چي بیر ته حال د اهل مکه بیانېږي وروسته تر ضرب مثل "فکذبوه" دوی یعني اهل مکه تکذیب وکړی د رسول مذکور ﷺ.

**فَأَخَذَهُمُ الْعَذَابُ وَهُمْ ظَٰلِمُونَ ﴿۱۱۳﴾**

نو دوی ونیول عذاب او حال دا چي دوی ظالمان دي بالکفر والاستهزا بالرسول وانکار القرآن المنزل.

**فائده:** مراد له عذاب څخه جدب او وچ کالي ده او واقعه د بدر ده مظهري وايي چي دا آیت هم پر دې دلالت کوي چي نزول یې بعد الهجرة دی.

**فَكُلُوا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ حَلَٰلًا طَيِّبًا وَاشْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ إِن كُنتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ ﴿۱۱۴﴾**

نو خوراک کوئ اې مؤمنانو چي تاسي ایمان راوړی دی پر محمد ﷺ او د کفره خدای ﷻ نجات درېه برخه کړی. له هغه شیانو څخه چي په رزق درکړي دي خدای ﷻ حال کون ذالک الرزق چي حلال وي او خوند هم درکوي.

**درویش وايي:** چي د "طیب" قید یې ددې لپاره وروایه چي ګاهي کېدای سي چي یو مطعوم خو حلال به وي لکن طبعاً سړي ته خوند نه ورکوي. نو هغه سړی مجبور نه دی چي خامخاه به یې خوري. او تاسي شکر وایاست ددې لوی نعمت د خدای ﷻ چي نبوت د محمد ﷺ دی او د نورو نعمتو د خدای ﷻ چي په دنیا کي یې تاسي ته درکړي دي که تاسي یاست چي خاص د خدای ﷻ عبادت کوئ

دون غيره تعالى، والتخصيص مستفاد من تقديم اياه كمامر في تفسير سورة الفاتحة من قوله تعالى اياك نعبد آه.

**فائده:** حلالاً حال دى له "ما رزقكم الله" څخه او د حلال لفظ احتراز دى له هغه شيانو څخه چې په وروسته آيت كې به راسي.

**إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَلَحْمَ الْخِنزِيرِ وَمَا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللَّهِ بِهِ**

او حرام كړې ده خداى پر تاسې "الميتة" يعني مرداره چې شرعي ذبح يې نه وي كړل سوې.

**پوه سه:** چې په ټولـه مذكوره شيـانو كې مراد حرمت د خوړك دى لان الاحكام الشرعية من الحل والحرمة وغيرهما صفت دى د فعل د مكلف لا لذوات هذه الاشيا كما تقرر في كتب الفقة، او مراد له "دم" څخه دم مسفوح دى يعني چې له ښارګو څخه د حيوان راوځي په وخت كې د ذبح. نو هغه وينه چې په غوښو ګډوي هغه نه ده حرامه. لكن اولى داده چې پرې يې مينځي او دغه دم جامد لكه كبد او طحال نه ده حرام يعني ينه او سږى. او غوښې د سركوزي چې نجس العين دى. او انګريزان او امريكايـان يې خوري. او هغه حيوان چې په وخت كې د ذبح د غير الله اواز پر پورته سوى وي. لكن اهل جاهليت به په وخت كې د ذبح د حيوان د لات او عزى وغيرهما نوم پر وايه.

**پوه سه:** چې اهل جاهليت د ذبح سوي حيوان تر غوښو د مردار سوي حيوان غوښې خوښولې، دوى به ويل چې مذبوح خو د انسان لـه خوا وژل سوى دى او ميتة د خداى له خوا وژل سوې ده.

**درويش وايي:** چې د "ماهل لغير الله" په باره كې لامذهبه خلګ چې په مختلفو نومانو يادېږي، وايي چې كه چا د ثواب رسېدلو و روح ته د يو ولي الله يو حيوان ذبح كړى هغه مردار دى حتى چې د عليه الصلوة والسلام لپاره يې ذبح كړي هغه مردار بولي. او كه چا په دوولسمه د ربيع الاول چې د عليه الصلوة والسلام د وفات ورځ ده يو حيوان ذبح كړى هغه هم مردار بولي وهكذا نوري ذبح، او دوى نه پوهېږي چې د اهلال په لغت عربي كې معنا رفع الصوت عند

رؤية الهلال او رفع صوت عند الذبح ده، نو دغه کسان چي دا مذکوره جرائتونه کوي په وخت کي د ذبح خو فقط بسم الله الله اکبر وايي، نه د نبي نه د ولي او نه د والد ينو نوم اخلي، عجيبه خو داده چي دا لامذهبه ملايان سره د غنيٰ د خلگو زکوتونه اخلي هغه مردار نه دي چي په اجماع د فقهاوٴ حرام دی او که يو مسلمان د جمعې په شپه غړی وکړي يا حلوا پخه کړي مسجد ته يې وروړي دوی وايي چي دا مردار دي الی غير ذالک من خرافاتهم، ما لهم لا يطالعون کتب الفقهآ لکن دوی د هغو کتابو څخه منکر دي.

فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۱۵﴾

او که څوک مجبور سي وه خوړک ته ددغو محرماتو مذکوره وو يعني په حال کي د غايت لوږي چي خپل پر مرگ وبېرېږي په داسي حال کي دی ظالم پر بل مضطر نه دی چي هغه هم په حال کي د مخمصې وي او يو څه غوښي وغيره د دغو محرماتو يې پيدا کړي وي چي د دواړو نه وي کافي، نو دا بل مجبور هغه مردار شی له هغه څخه اخلي په خپله يې خوري او هغه ومرگ ته وسپاري، ولي چي د ظالم حيوٰة خو د واجد تر حيوٰة افضل نه دی او نه عاد يعني تجاوز کونکی تر سد رمق خپل نه وي چي په ډک نس يې وخوري، نو په داسي حال کي خدای پاک غفور او رحيم دی.

**پوه سه:** چي په دې عبارت خبر د "فمن اضطر" محذوف دی او سبب د هغه يې په ځای کي د هغه راوړی دی، والتقدير فمن اضطر آه، يجوز له اکله (وهذا هو الخبر المحذوف) ولي خدای ﷻ غفور رحيم دی (دا سبب او علت د خبر محذوف دی)

وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَا تَصِفُ اَلْسِنَتُكُمُ الْكَذِبَ هٰذَا حَلٰلٌ وَّهٰذَا حَرَامٌ

**پوه سه:** چي مخاطب په دې آيت کي مسلمانان دي والمعنی تاسي مه واياست وهغه شي ته چي بيان يې کوي ستاسي ژبي (يعني ژبي د قوم ستاسي چي مشرکان دي، فلا بد من المضاف المحذوف الی ضمير کم وهو لفظ القوم

چي د هغو د خولې بيان دادی چي فلاني شی حلال دی او دا فلاني حرام دی. لکه د مشرکانو د قول نقل د قرآن کريم په ځای کي داسي راغلی دی "مافي بطون هذه الانعام خالصة لذکورنا الآية" او يا تحريم د بحائر او سوائب ونحوها وايه کمامر ذالک في سورة المائدة.

**فائده:** دا حصر د محرماتو په ما ذکر في هذه الآية کي چي له سياقه د کلام دا حصر فهمېږي او د انما راوړلو څخه د انما په صدر کي د کلام حصر اضافي دی بالنسبة الی ماحرم الکفار، نو دا سوال نه وارد ېږي چي محرمات خو نور هم ډېر دي کاکل لحوم السباع وغير ذالک الثابتة بالاحاديث الصحيحة فارجع الی کتب الفقها رحمهم الله.

**اعراب الآية:** کلمه د "ما" موصوله ده او عائد يې محذوف دی. والمضاف ايضًا محذوف. والتقدير ولاتقولوا في شان الذي تصفه السنتکم آه روح المعاني. "اوالکذب" منصوب دی په "لاتقولوا" چي د هغه مفعول به دی، وهذا حلال وحرام بدل دی له کذب څخه. روح البيان" ای لاتقولوا الکذب لما تصفه السنتکم من البهائم بالحل والحرمة من غي استناد ذالک الوصف الی علة موجبة للحل والحرمة من الله تعالی. مظهري.

لِّتَفْتَرُوا عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ

چي تاسي وتړئ په قصد پر خدای جل جلاله دروغ. ولي چي دوی به ويل ان الله حرم هذا ای السوائب والبحائر. کلمه د لام لپاره د تعليل ده لا للغرض.

إِنَّ الَّذِينَ يَفْتَرُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ لَا يُفْلِحُونَ ﴿١١٦﴾

په تحقيق هغه کسان يعني که دغه مشرکين وي او که نور چي وايي پر خدای جل جلاله دروغ خلاصون له عذاب څخه د خدای جل جلاله نسي پيدا کولای په ورځ د آخرت.

مَتَاعٌ قَلِيلٌ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١١٧﴾

"متاع قليل" خبر د مبتدأ محذوفي دی ای ماهم فيه متاع ای منفعة قليلة تنقطع عنقريب. نو دا دغه متاع قليل لپاره دروغ پر خدای جل جلاله ويل د عاقل کار نه دی، او

دوى لره ډرد ورکونکى عذاب ښته په اخرت کي پر دغو دروغو پر خداى ﷻ.
قال عليه الصلوة والسلام "من كذب علي متعمداً فليتبوء مقعده من النار"
فكيف يكون حال الكاذب على الله عزوجل.

## وَعَلَى الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا مَا قَصَصْنَا عَلَيْكَ مِنْ قَبْلُ

او پر هغو كسانو چي د يهوديت دين پر مخ وړي حرام كړي وه هغه شيان موږ
چي قصه يې موږ وتاته تر دې دمخه وكړه، كلمه د "ما" موصوله ده او عائد يې
محذوف دى اى الذي قصصنا.

**پوه سه:** چي مراد له "قبل" څخه سورة الانعام دى يعني قوله تعالى وعلى
الذين هادوا حرمنا كل ذي ظفر الى اخير الآية.

## وَمَا ظَلَمْنَاهُمْ وَلَكِنْ كَانُوا أَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴿١١٨﴾

او موږ نه دى كړى ظلم پر دوى په تحريم د بعضي طيباتو د رزق لكن دوى وه چي
پر خپلو ځانو يې ظلم كاوه په سبب د بغاوت ددوى له امر الهي څخه چي په تورات كي
دوى ته بيان سوي وه، يعني دا تحريم لپاره د عقوبت او د عذاب د دوى وكړل سو.

## ثُمَّ إِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِينَ عَمِلُوا السُّوءَ بِجَهَالَةٍ ثُمَّ تَابُوا مِنْ بَعْدِ ذَلِكَ وَأَصْلَحُوا إِنَّ رَبَّكَ مِنْ بَعْدِهَا لَغَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿١١٩﴾

وروسته (پوه سه! چي د "ثم" لفظ لپاره د تراخي في الزمان نه دى كما هو
معناه الحقيقي بلكي لپاره د تراخي في الذكر دى) په تحقيق ستا رب يا محمد
(ﷺ) و هغو كسانو ته چي عمل وكړي د بدو.

**درويش وايي:** چي علامه بغدادي رح په روح المعاني كي وايي "السوء"
مايسئ صاحبه من كفر او معصية ويدخل فيه الافتراء على الله. دى وايي چي ابن
عباس رضي الله عنهما تفسير په شرك سره كړى دى، دى وايي التعميم اولى آه. وتبع
المظهري للآلوسي رح في التفسير العام بجهالة اى بسبب الجهالة معنى دا چي
جهالت باعث ورګرځېدى پر عمل سوء بالمعنى الاعم لكه غيرت د جاهليت چي

باعث وګرځېدی د مشرکینو پر قتل او غارت خصوصًا قتل البنات بالدفن في القبر وغير ذالک من افعال الجاهلية. وروسته توبه وکاږي له کفر یا معاصیو څخه وروسته تر عمل سوء.

**سوال:** من بعد ذالک ته څه ضرورت ؤ ولي چي "ثم" یعني په ثم تابوا کي دلالت کوي پر بعدیت د توبې تر عمل سوء؟

**ځواب:** علامه برسوي وایي چي په دې کي تاکید او مبالغه في البعدیة مطلوب ده. او په عمل صالح کي داخل سئ په تحقیق ستا خدای ﷻ وروسته تر توبې او د اصلاح العمل بخښونکی دی د عمل سوء بالمعنی المذکور "صیغه د مبالغې ده" او مهربان دی چي ثواب ورکوي پر طاعت که فعل وي کالصلوة والصوم وغيرهما او که ترک وي لکه ترک د زنی وغیره بعد القدرة لمخافة عذابه تعالی.

**پوښتنه:** دا قول "ان ربک آه" د څه حکمت لپاره مکرر راوړل سو؟

**ځواب:** ددې ځواب روح البيان داسي ورکړی دی چي دا تکریر لپاره د تاکید د وعد بالثواب دی او لپاره د مبالغې في ايجاز الوعد المذکور في معنى الرحيم کمامر آنفًا.

## إِنَّ إِبْرَٰهِيمَ كَانَ أُمَّةً

په تحقیق ابراهیم (علیه السلام) ؤ امت، په قاموس کي وایي چي امت الرجل الجامع للخير، او امام یعني مقتدي ته هم وايي او من كان على الحق مخالف لسائر الاديان الباطلة ته هم وايي، او خوشاله سړي ته هم وایي. او عالم ته هم وايي الى غير ذالک من المعاني التي ذكرها صاحب القاموس. موږ هغه معاني ذکر کړې چي مناسب ددې مقام سره وې، او په ابراهیم علیه السلام کي دومره فضائل ؤ چي قریب نه وه چي دا فضائل دي انفرادًا په ډېرو اشخاصو کي پیدا سي. او دا اول معنی د امت چي قاموس ذکر کړې وه او خدای ﷻ دی امام او مقتدی د خلکو ګرځولی ؤ. دا دوهمه معنی د امت ده. او ابرهیم علیه السلام پر حق دین ؤ مخالف له ټولو ادیانو باطله وو څخه. دا دریمه معنی د امت ده او ډېر خوش طبیعته سړی ؤ. دا څلورمه معنا د امت ده. او ابراهیم علیه السلام عالم ؤ په خدای ﷻ او په احکامو د خدای ﷻ چي دا پینځمه معنی د امت ده. او ابن مسعود رضي الله عنه وایي

چي ابراهیم علیه السلام معلم د خیر ؤ چي په ده پسي اقتدا ئ تولو اهل الدنیا کړي وه یعني شخصیت مقبول ؤ د تولو وګړو د دنیا حتی چي مشرکانو د مکې به ویل او یهودو او نصارئ وو به هم ویل چي موږ پر ملت ابراهیم یو ولو کانوا کاذبین في هذه الدعوئ. کریمه "ماکان ابراهیم یهودیا ولا نصرانیاً الخ. نو د امة وزن فعلة دی په معنی د مفعول من امه اذا قصده. او مجاهد رح وایي چي ابراهیم علیه السلام یوازي مؤمن بالله ؤ او نور خلګ تول کفار وه.

قَانِتًا لِّلّٰهِ حَنِيفًا وَلَمْ يَكُ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿۱۲۰﴾

فرمانبردار د خدای جل جلاله ؤ او قائم په اوامرو سره د خدای جل جلاله ؤ. مائل له باطل څخه ؤ حق ته، وقیل مخلصاً وقیل مستقیماً الی دین الاسلام "ولم یک من المشرکین" او نه ؤ له مشرکانو څخه. لکه قریشو د مکې چي به ویل چي موږ پر ملت د ابراهیم یو.

**درویش وایي**: چي دا تولې معناني سره متلازمې دي.

**درویش وایي**: چي دا قبول عام د ابراهیم علیه السلام اثر د هغه دعا دده دی "واجعل لي لسان صدق في الآخرین" ماته راکړه ذکر حسن په اخیرنو خلګو کي آخرین که څه هم عام دی لکن لویه حصه د ذکر حسن د ابراهیم علیه السلام په امت کي د اسلام ده. کریمه "قل بل نتبع ملة ابراهیم حنیفاً"

شَاكِرًا لِّأَنْعُمِهِ

دی شکر وینونکی ؤ د نعمتو د خدای جل جلاله.

**نکته**: انعم چي یې جمع قلت راوړه ددې لپاره چي ابراهیم علیه السلام د لږو نعمتو شکر د خدای جل جلاله وایه. نو د ډېرو خو یې په طریق اولی شکر وایه. کریمه "لئن شکرتم (ای علی القلیل من نعمه تعالی) لازیدنکم.

اجْتَبٰهُ وَهَدٰىهُ إِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿۱۲۱﴾

خدای جل جلاله دی برګزیده کړی یعني په رسالت او په خلت سره او ده ته یې لارښوونه کړې ولاري سمې ته چي دین د اسلام دی او دعوت د خلګو د خدای

لاري او عبادت ته، په يو روايت کې راغلي دي چې د ابراهيم عليه السلام عادت دا وُ چې ډوډۍ يې بېله مېلمه نه خوړله. يوه ورځ مېلمه نه شو پيدا. نو ابراهيم ډوډۍ وځنډوله، نو يوه ډله د ملکو راغله د انسان په صورت کې. او ابراهيم خليل الله ته يې وويل چې په موږ پوري د جذام مرض دی (يعني اتشک چې خلګ ډېر بد ګڼي ورې او د آتشک سړي يو ځای ډوډۍ نه خوري) نو ابراهيم عليه السلام ورته وويل چې اوس واجب ده چې زه به ستاسي سره پر يوه کاسه ډوډۍ خورم لپاره د تشکر د خدای جل جلاله چې زه يې د داسي بدنامه مرض څخه ساتلی يم.

## وَاٰتَيۡنٰهُ فِى الدُّنۡيَا حَسَنَةً ؕ

او موږ ورکړی وُ و ابراهيم عليه السلام ته په دنيا کې ښه حالت من الذكر الجميل والثنا في الناس كما مر والاولاد الابرار من اسماعيل واسحق عليهما السلام او دراز عمر چې تر سل کاله ډېر متجاوز وُ او فراخي په رزق او مال کې او ژوند په ښه طاعت کې د خدای جل جلاله وان سيد المرسلين صلى الله عليه وسلم من نسله على نسل اسماعيل عليه السلام وان الصلوة عليه مقرونة بالصلوة على محمد صلى الله عليه وسلم في اشرف العبادات چې لمونځ دی. چناچه امتيان د عليه الصلوة والسلام په اخيره ناسته کې وايي اللهم صل على محمد وعلى آل محمد كما صليت على ابراهيم وعلى آل ابراهيم آه.

## وَاِنَّهٗ فِى الۡاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِيۡنَ ؕ﴿۱۲۲﴾

او ابراهيم (عليه السلام) په اخرت کې د صالحو بندګانو په ډله کې دی يعني الانبياً المعصومين. ولي کمال د صلاح په عصمت سره دی او مقتضي د عصمت ثواب بلا نهايت دی په اخير کې.

**درويش وايي:** چې که پوره او مفصل تحقيق د عصمت د انبياً عليهم السلام شوک يې شوق لري، نو د درويش هغه رساله چې نوم يې "كشف الغطاً عن عصمت الانبياً" دی په غور دې مطالعه کړي چې پر هغه رساله د ټولو علماؤ د قندهار د دست خط نشانه شته علاوه حضراتو د هرات يې هم تصديق کړی دی چې ډېره پخوا طبع او چهاپ شوې ده غالباً اوس به هم په بعضو کتب فروشيو کې د کوټې

دستیاب سي. او که شائقان د دې رسالې په ډلیزه تو ګه کتب فروشانو ته ورسي ان شاء الله بعض کتاب فروشان به یې از سر نو طبع ته وسپاري.

**ثُمَّ اَوۡحَيۡنَاۤ اِلَيۡكَ اَنِ اتَّبِعۡ مِلَّةَ اِبۡرٰهِيۡمَ حَنِيۡفًا ؕ**

بیا مونږ وحي وکړې تاته یا محمد چي ته متابعت کوه د ملت د ابراهیم چي مائل له باطل څخه و حق لیاري ته متابعت یې کوه (۱) في التوحید (۲) دعوة د خدای ﷻ د خلګو په رفق او نرمي سره (۳) د کافرانو سره دلائل وایه مرة بعد اخری (۴) او بحث کوه د هر چا پر اندازه د فهم د هغه (۵) توجه و قبله ته د ابراهیم علیه السلام کوه په لمانځه کي (ای بعد الصلوة الی بیت المقدس شپارس میاشتي ترغیباً للیهود) (۶) والتشریع بشرائع دینه (ای في الاکثر لان بعض الشرائع تتبدل)

**پوه سه:** چي دا آیت تتمه ده د ما انعم الله علی ابراهیم علیه السلام.

**فائده:** په کلمه کي د "ثم" تعظیم او اجلال دی ومنزلة د نبینا ﷺ د ملة د ابراهیم علیه السلام .......... بیت:

آفاقها ګردیده ام مهرتبان ورزیده ام
بسیار خوبان دیده ام تو چیزی دیګری

بغوي رحمه الله وایي چي آنحضرت ﷺ مامور په عمل د شریعت د ابراهیم علیه السلام مګر نه هغه شیان چي د علیه الصلوة والسلام په دین کي منسوخ سوي وي او چي نه وي نسخ سوي هغه اوس شرع د نبینا ﷺ ګڼل کیږي.

**وَمَا كَانَ مِنَ الۡمُشۡرِكِيۡنَ ۝**

او نه و ابراهیم (علیه السلام) له مشرکانو څخه. کرر هذه الآیة مبالغةً في الرد علی المشرکین والیهود والنصاری چي دوی تو له دا دعوه کوي چي مونږ تابع د ملت د ابراهیم علیه السلام یو.

**پوښتنه**: پر مشرکانو خو رد صحیح دی لکن یهود او نصاری خو اهل کتاب دي مشرکان نه دي؟

**ځواب:** دا رد پر هغو یهودو دی چي عزیر علیه السلام ابن الله بولي او پر هغو نصاری وو چي عیسی علیه السلام ابن الله بولي.

## إِنَّمَا جُعِلَ السَّبْتُ عَلَى الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِيهِ

یعني تعظیم د ورځي د سبت وتحرمه ددي ورځي او عبادت د خدای جل جلاله ځانونه فارغ کول د دنیا له کارو څخه د "مفروضه" علی الذین اختلفلوا فیه" یعني چي دوی مخالفت وکړي له نبي څخه ددوی. کلبي رحمه الله وایي چي موسی علیه السلام بني اسرائیل امر کړل چي په هر اووه ورځو کي تاسي فارغه کړئ یوه ورځ د عبادت لپاره د الله تعالی "فاعبدوه یوم الجمعة" او تاسي په دغه ورځ دنیاوي کارونه مه کوئ او شپږ ورځي دنیاوي کارونه کوي. یهودانو موسی علیه السلام ته وویل چي موږ نه مختاره کوو د عبادت لپاره مګر هغه ورځ چي خدای پاک په هغه ورځ فارغه سوی دی د خلق السموات والارض څخه چي یوم السبت ده. یعني د شنبې یا خالي ورځ. نو خدای جل جلاله د سبت ورځ دوی ته منظوره کړه مګر سره د تشدید پر دوی. بیا چي عیسی علیه السلام نبي سو هغه هم قوم ته د جمعې ورځ وټاکل قوم وویل چي زموږ هغه ورځ د عبادت لپاره خوښه ده چي خدای جل جلاله شروع په خلق سره په هغه ورځ کړې ده چي په عربي یې یوم الاحد بولي. او په پښتو یې یک شنبه بولي. او په اردو یې اتوار بولي او په انګریزي یې (سنډې) بولي چي نني ورځ د اتوار ورځ ددوی د رخصتی ورځ ده. پاکستان که څه هم اسلامي مملکت دی لکن د اتوار ورځ په جمعه نسي بدلولای. ولي چي پاکستان او هند د بر کلونه مستعمره د انګریزانو د لندن وه.

**درویش وایي:** چي د جمعې ورځ څه کوې! تو له عدالتي قوانین د پاکستان هغه قوانین د انګریزانو دي. د عدالتي محکمې قاضي ته پاکستانیان د انګریزانو په متابعت جج وایي و هغه جج ته هم د انګریزي قوانینو کتاب پروت دی او پر هغه کتاب موافق حل و فصل د دعوې د خلګو کوي او د اسلامي کتاب د حل وفصل لپاره جج صاحب توری هم نه سي ویلای.

وروسته خدای ﷻ و امت محمدیه (ﷺ) ته ورځ د جمعې وټاکل. دوی بې
چون و چرا هغه ورځ ومنل.

**درویش وایي:** چي بخاري او مسلم په خپلو صحیح کتابو کي له ابو هریره
ﷺ څخه روایت کړی دی قال رسول اللهﷺ "نحن الآخیرون (یعني في الدنیا)
السابقون یوم القیامة (یعني في دخول الجنة) بید انهم (غیر له دي څخه چي وی
ته یعني یهود او نصاری وو ته) اوتوا الکتاب من قبلنا واوتینا من بعدهم (دوی ته
ورکړل سوی دی کتاب یعني تورات او انجیل تر موږ دمخه او موږ ته راکړل سوی
یعني قرآن کریم تر دوی وروسته) ثم هذا یومهم الذي فرض علیهم یعني الجمعة
فاختلفوا فیه (یعني یهود او نصاری په دغه ورځ کي چي جمعه وه اختلاف وکړی
کما مر عنقریب) فهدانا الله له (یعني و ورځي ته) فالناس لنا فیه تبع یعني
وروسته دي یهود غداً چي د شنبې ورځ ده او نصاری بعد غد چي د یکشنبې ورځ
ده ثم تلی رسول اللهﷺ هذه الآیة بروایة البغوي" "انما جعل السبت الآیة"

**وَإِنَّ رَبَّكَ لَيَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴿١٢٤﴾**

او ستا خدای یا محمد (ﷺ) هر آئینه حکم به وکړي په منځ کي ددوی په ورځ
د قیامت په هغه شي سره چي دوی په هغه کي وکړی اختلاف یعني یوم الجمعة.
فالمجازات علی الاختلاف فیجازي کل فریق (ای بالنار) بما یستحقه من العذاب

**ادْعُ إِلَىٰ سَبِيلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ**

ته دعوت ورکړه خلګو ته (نو مفعول محذوف دی والمخاطب هو رسول الله
ﷺ) و لاري ته د خدای ﷻ چي توحید او اسلام دی.

**پوه سه:** چي د "حکمة" تفسیر روح البیان داسي کړی دی ای بالحجة القطعیة
المفیدة للعقائد الحقة المزیحة شبهة من دعی الیها. وروسته یې داسي ویلي
دي چي دعوة بالحکمة لپاره د خواصو د امت دی چي طالبانو د حقائقو وي او د
موعظة حسنة تفسیر یې په دلائلو چي قناعت بخښونکي وي او په حکایات
نافعه وو سره کړی دی، او وروسته یې ویلي دي چي دا موعظت حسنه لپاره د

عوام الناس دی. او مظهري رح د حکمت او د موعظة حسنة دواړو تفسیرونه په قرآن سره کړي دي. او وجه د تسمیه د قرآن يې په حمکت دا ویلي دي لانه محکم المقالات لایتطرق الیه الطعن والمعارضة وهو الدلیل الموضح للحق المزیل للشبهات وهو الموعظة الحسنة بالترغیب والترهیب آه.

**درویش وایي:** چي د دواړو تفسیرو ماخذ یو دی. او بعض مفسرین وایي چي موعظة الحسنة قول لین دی من غیر غلظة ولا تسف آه. دا هم ډېر ښائسته تفسیر دی.

## وَجَادِلْهُمْ بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ

او ته بحث او مناظره ورسره کوه په هغه خصومت سره (نو موصوف د التي محذوف دی ای الخصومة لکن اولی داده چي په مجادلة محذوف سي چي د جادلهم مصدر دی.

**پوه سه:** چي احسن وجه د مناظرة داده چي غضب او طغیان د نفس نه وي پکښې بلکي خالصاً لوجه الله او د اعلاً د کلمة الله لپاره وي.

**مسئله:** له دې آیت څخه دا معلومه سوه چي مجادله او مناظره په علمي مسئلو کي روا ده بالشروط المذکورة ولاظهار الحق لا لاظهار العلمیة والتفوق والتکبر کما في مناظرة اکثر العلماً في زماننا.

## اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعْلَمُ بِمَنْ ضَلَّ عَنْ سَبِيْلِهٖ وَهُوَ اَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِيْنَ ﴿١٢٥﴾

په تحقیق ستا رب یا محمد (ﷺ) دی ښه خبر دی په احوالو د ظاهر او د باطن په هغه چا چي گمراه وي له لاري څخه د خدای بالشرک والمعاصي. او خدای ﷻ ښه خبر دی په هغو کسانو چي پر هدایت ظاهراً و باطناً وي.

**تنبیه:** په دې آیت سره اشاره ودې ته ده چي علیه الصلوة والسلام ته خدای پاک وایي چي ستا وظیفه بلاغ مبین دی او دعوة الی الحق والتوحید دی او هر چه هدایت موصله الی الحق دی او مجازات او ثواب و عقاب پر هدایت او ضلالت. هغه مفوض و خدای ﷻ ته دی هغه په تا پوري یامحمد ﷺ اړه نه لري

بلکې خدای ﷻ اعلم بالضالین والمهتدین دی وهو المجازي لهم.. سعدي رح
توان پاک کردن ززنګ آئینه ........ ولیکن نیاید زسنګ آئینه

**فائده:** پوه سه! چې انسانان درې قسمه دي (۱) صنف مقطوع (چې یقین دی) پر حسن خاتمه دده مطلقًا کالانبیاء علیهم السلام والعشرة المبشرة بالجنة کما جاء في الاحادیث المشهورة (۲) صنف مقطوع بسوء خاتمتهم کابی جهل وقارون وفرعون ونمرود وغیرهم من الکفرة الفجرة (۳) وصنف مشکوک في حسن خاتمتهم سوء خاتمتهم مطلقًا کعامة المؤمنین الابرار وکافة الکافرین الفجار فان الابرار وان کانوا ممدوحین في ظاهر الشریعة من جهة العقائد والاعمال في الحال. والفجار وان کانوا مذمومین في ظاهر الشریعة من تلک الجهة ای العقائد و الاعمال لکن امر الفریقین في المآل مفوض الی الله تعالی والله یعلم المفسد من المصلح ویمیز بینهما في الآخرة. ولې چې سړی ولې وي في الظاهر یعود عدو الله، وولي الشیطان نعوذ بالله الرحمن من هذا الامتحان. او عین ممکنه ده چې یو سړی به عدو الله وي في الظاهر یصیروا ولیًا لله وعدوًا للشیطان کذا في روح البیان.

وَإِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوا بِمِثْلِ مَا عُوقِبْتُم بِهِ ۖ وَلَئِن صَبَرْتُمْ لَهُوَ خَيْرٌ لِّلصَّابِرِينَ ﴿١٢٦﴾

که چېرې تاسي عقاب او عذاب ورکوئ یو چاته نو تاسي عقاب او عذاب ورکوئ په مثل د هغه چې تاسي ته عقاب درکړه سوی دی یعنې د جنایت کارئ (یعنې زائد تر هغه د جنیات کار حق نه لرئ)

**سوال:** فعل اول یعنې "عاقبتم" خو جزاء د عقاب د جاني ده. نو دې ته یې ولې عقاب وویل سو. فعل د جاني چې په "عوقبتم" سره ذکر سو هغه رښتیا عقاب او عذاب دی چې تاسي ته یې درکړی؟

**جواب:** دا عبارت قرآني په مثل سره د هغه عبارت قرآني ده "وجزاء سیئة سیئة مثلها" او سره ددې چې ثاني فعل خو ګناه نه بلکې مکافات دی. نو دلته

په دې آيت کې چې فعل اول ته عقاب ويلي دی په سبب د جوار د "عوقبتم" لکه جزا د سيئة ته چې سيئه ويلي په مذکور آيت په سبب د ازدواج د اول فعل سره.

**درويش وايي:** چې د دې آيت په شان نزول کې امام قرطبي رح په خپل تفسير کې داسې وايي چې جمهور د مفسرينو وايي چې دا آيت مدني دی که څه هم سورة نحل مکي دی او دا آيت په شان کې د سيد الشهدا حمزة بن عبد المطلب عم النبي ﷺ کې نازل سوی دی چې په غزا کې د احد په مشرئ د ابو سفيان چې په هغه غزا کې له دی کافر ؤ بيا يې وروسته ايمان راوړی دی. مشرکانو د مکې د مسلمانانو د شهداوو سره له انسانيت څخه ډېر ليري کارونه او بدنامي کړي وې. نسونه يې ور څيرلي وه پزې يې څني پرې کړي وې او غوږونه يې هم څني پرې کړي وه حتی چې په لنګ کې د ننه اعضا چې مذاکير يې بولي هم څني پرې کړي وه، صرف يو حنظله رضي الله عنه چې په شهداوو کې ؤ بدنامي او مثلت يې نه ؤ ور رسولی په دې سبب چې دده پلار عامر الراهب د ابو سفيان سره په جنګ کې ملګری ؤ، وروسته چې ابو سفيان امر د کوچ الی مکه ور کړی او د مشرکانو فوج ستون سو. نو عليه الصلوة والسلام چې راغلی او د شهدا رضي الله عنهم حالات يې وليدل ډېر غمجن سو او حمزة سيد الشهدا چې يې وليدی نس يې څيري سوی ؤ او پزه او غوږونه يې هم څني پرې کړي وه، آنحضرت ﷺ ډېر دلګير سو او داسې يې وويل رحمة الله عليک کنت وصولاً للرحم فعالاً للخير. رحمت د خدای جل جلاله دې وي پر تا ته خو پالونکی د صله رحمی وې او ډېر د خير کارونه دې کول که دا بېره نه وای چې ښځې به ډېرې غمجيني سي خصوصاً صفيه رضي الله عنها او يا دا بېره نه وای چې وروسته تر ما دا سنت طريقه د شهداوو په باره په آئينده نسلو کې د مسلمانانو به پاته سي. ما به ته داغسې پرې ايښې وای يعني په قبر کې به مې نه ښخولای تا چې درندګانو او مرغانو خوړلي وای چې په ورځ د قيامت ته د هغو د نس څخه خدای جل جلاله ته ژوندی کړی وای، وروسته عليه الصلوة والسلام وويل والله لئن اظفرني الله بهم لامثلن بسبعين مکانک. که چېرې خدای جل جلاله ما ته برې راکړی پر دوی يعني پر مشرکانو زه به مثلت وکړم ددوی په اوويا کسانو ستا په عوض کې، او نورو مسلمانانو هم قسم واخستی چې که موږ پر مشرکانو د مکې قدرت او برې پيدا

کړی مور به دومره مثلت او بدنامي دوی ته واړوو چې هیڅ چا د عربو به د هیڅ چا سره نه وي کړي، څه وخت چې علیه الصلوة والسلام د شهدا د جنازې د لمانځه څخه فارغ سو دستي دا آیت نازل سو چې دا خبره ؤ علیه الصلوة والسلام ته "والله لئن اظفرني الله آه" نازېبا یې وښوول. نو علیه الصلوة والسلام کفارة الیمین ورکړه او نورو مسلمانانو چې ورته قسمونه اخستي وه هم کفارهٔ ایمان خپل ورکړه انتهی قول الامام القرطبي رح مع زیادة یسیرة. په انوار المشارق کي وایي چې حمزة رضي الله عنه د وحشي په نامه چې د حبش له قبیلې څخه ؤ شهید کړی او وحشي د جبیر بن مطعم بن عدي بن نوفل مریی ؤ، او د جبیر اکا طعیمه بن عدي د بدر په غزا کي حمزه رضي الله عنه په قتل رسولی ؤ. نو څه وخت چې لښکر د قریشو د احد جنګ ته روانیدل جبیر وه وحشي ته وویل که تا چې حمزه عم محمد په عوض کي زما د اکا طعیمه قتل کړی ته پر ما ازاد یې. نو وحشي چې په حربه (لکه نېزه غون دی کوچنی آله د جنګ وه) په ویشتلو کي ډېر ماهر ؤ خپل حربه یې راواخستل: نو چونکه د حمزه رضي الله عنه سره یې د مخامخ جنګ توان نه درلودی. نو د یوې لوی ډبري شاته پټ سو څه وخت چې حمزه رضي الله عنه د جنګ په دوران کي د ډبري و څنګ ته تېرېدی وحشي په حربه په ځیګر کي وویشتی حربه د حمزه رضي الله عنه د وړو تر منځ ووتل او حمزه رضي الله عنه غوځار سو وحشي یې سر څني پرې کړی. تاریخ اسلامي وایي چې په فتح کي د مکې وحشي په مکه کي ؤ طائف ته وتښتېدی او وروسته مکې ته راغلی او اسلام یې راوړی. علیه الصلوة والسلام یې اسلام ومانه او داسي یې ورته وویل "انت وحشي؟" ته وحشي یې. هغه ورته وویل هو! علیه الصلوة والسلام ورته وویل "انت قاتل حمزه رضي الله عنه؟" وحشي ورته وویل قد کان ماقد بلغک" نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل "هل تستطیع ان تغیب عنا وجهک" ته کولای سې چې زما څخه ځان لېري وساتې، دا یې ددې لپاره ورته وویل چې که وحشي هر وخت د علیه الصلوة والسلام سره ملاقات کولای د اکا حمزه رضي الله عنه قتل به په یاد ورتلای، نو علیه الصلوة والسلام چې وفات سو او د مسلمانانو فوج په خلافت کي د ابوبکر صدیق رضي الله عنه د مسیلمه کذاب چې د علیه الصلوة والسلام په ژوند کي یې د نبوت دعوه کړې وه غزا ته روانېدل وحشي

هم د مسلمانانو په فوج کي داخل سو. او داسي یې ویله چي زه د مسیلمه کذاب جنګ ته ور وځم شاید چي زه به دی قتل کړم او دا به مي فدیه وګرځي په ورځ د قیامت د قتل د حمزه ﷺ.

**درویش وایي**: چي د مسیلمه کذاب سره د غزا قصه وړده ده لکن دومره قدر وایم چي وحشي په خپل امید کي کامیاب سو یعني مسیلمه کذاب وحشي قتل کړی او د مسیلمه کذاب په قتل سره تابعان دده سره تیت وپرک سوه. دا آیت د یاتي حصي یعني "لئن صبرتم آه" ترجمه. که تاسي صبر وکړئ پر ظلم او عقاب د جاني یعني عقاب بالمثل هم ورنه کړئ حتماً صبر خیر دی تر مماثلت بالعقاب لپاره د صابرانو. کریمه "ان الله مع الصابرین".

**درویش وایي**: چي ددې اخیري برخي د آیت د علیه الصلوة والسلام داسي وویل "بل نصبروا یارب"

**مسئله**: په خلاصة الفتاوی کي وایي که یو سړي و بل ته وویل یا خبیث ومثل ذالک که دی ځواب ورکړی بل انت خبیث خو روا ده. لکن اولی داده چي پټه خوله دي سي ځواب دي نه ورکوي یعني صبر دي وکړي کما قال الله تعالی في هذه الآية. او په مجمع الفتاوی کي وایي چي لو قال لغیره یا خبیث مثلاً فجزاه بمثله جاز لانه انتصار (کسات اخیستل دي) بعد الظلم وذالک ماذون فیه کما قال الله تعالی "ولمن انتصر بعد ظلمه فاؤلئک ماعلیهم من سبیل" والعفو افضل قال الله تعالی فمن عفی واصلح فاجره علی الله.

**مسئله**: که یو سړي و بل ته وویل چي د زنا کاري زویه. چي دا کلمه موجب د حد ده یعني که زنی ثابته سي خو د هغه و مور ته حد زنی ورکول کیږي دی دي په ځواب کي و هغه ته ورته بنکنځل نه کوي. ولي که دی د زنی له اثبات څخه عاجزه سي ده ته حد قذف ورکول کیږي مجمع الفتاوی.

تفسیر ایوبي حنفي د نصیراحمد احمدي لخوا سکین او pdf سو. د دعا محتاج احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

وَاصْبِرْ وَمَا صَبْرُكَ إِلَّا بِاللَّهِ وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَلَا تَكُ فِي ضَيْقٍ مِّمَّا يَمْكُرُونَ ﴿١٢٧﴾

او صبر وکړه ته یا محمد ﷺ پر ازار د کفارو. او نه دی صبر ستا مګر په توفیق او کومک د خدای ﷻ دی. او ته مه ګرځه په سینه تنګولو کي له هغه کار څخه چي کافران تا او اهل اسلام ته مکر کوي چي تاسي او دین ستاسي له دنیا څخه نابود کړي یعني ته غم مه کوه په مکر سره ددوی ولي چي زه ستا ناصریم پر دوی او پر موږ ددوی جزا ده في الدنیا والآخرة.

**فائده**: خدای ﷻ وویل "وما صبرک الا بالله جعفر صادق رحمه الله وایي چي انبیا تو له خدای پاک په صبر سره امر کړي دي. او لوی په برخه یې د رسول الله ﷺ ته ورکړې ده، ولي چي خدای پاک داسي وویل وماصبرک الا بالله یعني لا بنفسک.

**فائده**: اصل د "لاتک" لاتکن ؤ نون یې حذف کړی تخفیفًا لکثرة الاستعمال.

**سوال**: په "لم یخن" او "لم یصن" وامثالها کي ولي حذف د نون نه دی روا؟

**جواب**: نور الفاظ خو دومره کثیر الاستعمال نه دي لکه باب د کان کما لایخفی علی المتفحص.

إِنَّ اللَّهَ مَعَ الَّذِينَ اتَّقَوا وَّالَّذِينَ هُم مُّحْسِنُونَ ﴿١٢٨﴾

په تحقیق خدای ﷻ ملګری یعني معاون دی د هغو کسانو چي دوی ځانونه وساتي د کفر او له معاصیو څخه او د هغو کسانو چي دوی په اعمالو د خیر مخلصان وي، په حدیث شریف کي راغلي دي چي د محسن دري علامې دي (۱) مبادرة دی و طاعت ته د خدای ﷻ (۲) پرهیز له محرماتو څخه د دین الاسلام (۳) احسان کوي د هغه چا سره چي دده سره بد وکړي ..... ابیات

به احسان خاطر مردم شود شاد ........ بتقوی خانه دین گردد آباد

بسوی این صفتها گرشتابی ........ رضای خلق وخالق هر دو یابی

**حکایت**: د هرم بن حبان رحمه الله چي د زکندن وخت ورسېدی یو چا ورته وویل چي وصیت وکړه! ده ورته وویل چي وصیت خو له مال څخه خلګ کوي ولا مالي لي،

لکن اوصیکم بخواتیم سورة النحل یعني من قرأ "ادع الی سبیل ربک الی اخیر السورة" ........... خواجه حافظ:

پاک وصافی شو و ازچاه طبیعت بدر آی .. که صفایي نه دهد آب تراب آلوده

معنی آنست که چاه طبیعت یعني شهوات نفسیه را بگذار تاکه طاعت شما باحسان واخلاص گردد. زیرا که آب خاک آلوده صفایي نمیدهد آن چنان طاعیتکه ریا درو باشد بدرگاه خدا مقبول نیست.

**نصیحت**: مسلمان لره په کار دی چي علم دین زده کړي. ولي چي خدای ﷻ آنحضرت ﷺ د هیڅ شي په طلب د زیادت نه دی امر کړی بېله علمه قال عز من قائل وقل رب زدني علماً. یو محقق شاعر وایي:

علمها ی انبیاً و اولیاً ..... دردلش رخشنده بود چون شمس الضحی
عالم که آموز گارش حق بود ...... علم اوبس کامل مطلق بود

ومع هذا امر بطلب الزیادة في العلم. ابوبکر الکناني رح وایي چي ماته خضر علیه السلام وویل چي زه په مسجد کي د صنعا وم او محدث عبدالرزاق رح و خلګو ته احادیث د رسول کریم ﷺ بیانول او حاضرینو په ډېر شوق او ذوق احادیث د عبدالرزاق رح اورېدل. د جامع مسجد په کنج کي یو ځوان ناست ؤ سر یې پټ کړی ؤ په مراقبه کي ؤ. ما ورته وویل لم لاتسمع کلام عبدالرزاق. ده مخ لڅ کړی او وه یې ویل "انا اسمع کلام الرزاق وانت دعوني الی عبدالرزاق. خضر علیه السلام وایي چي ما ورته وویل نو ماته ووایه چي زه څوک یم؟ ده راته وویل انت الخضر.

درویش وایي

صرفت العمر في لهو ولعب ....... فآها ثم آها ثم آها
نود سال عمری عزیزت گذشت ....... مزاج تو از حال طفلی نه گشت
الهي یا الهي یا الهی ....... ندارم جز امیدت تکیه گاهی
شفیع آورده ام روی محمد ﷺ ...... کرم کن برمن گم کرده راهی
ندارم طاعت مقبول درگاه ...... بجز اشک ندامت آه آهی
ندارم توشه راه قیامت ...... بجز شرمندگی وروه سیاهی

مناجات

الهی عبدک العاصي اتاکا ........ مقراً بالذنوب و قد دعاکا
فان ترحم فانت لذالک اهل ........ وان تطرد فمن یرحم سواکا

**درویش وایي**: چي په توفیق د رب العزت ﷻ له تفسیر څخه د څورلسم جزء په ورځ د جمعې مبارکې وروسته تر صلوة الجمعة فارغ سوم ولله الحمد والمنة والصلوة والسلام علی خیر البریة وعلی آله وصحبه الکملة رضی الله تعالی عنهم اوس نوبت د پینځلسم جزء ورسېدی د خدای ﷻ ولوی جناب ته دا امید دی چي پینځلسم او شپاړسم جزء له تفسیر څخه مي په عافیت او صحت تامه فارغ کړی بلکې تر اخیره پوري د امل د عاصي تناؤ د پر ورېد دی ولله الامر.
ددولسم تاریخ د ذوالقعدة الحرام د میاشتي سنه (۱۴۲۹) هـ ق.

**حکایت**: د تفسیر ددې جزء په اخیره نېټه کي پر کوټې او اطرافو مسلسل د زلزلې جټکې راتلې چي په بعضې قریو کي یې لوی لوی جاني او مالي تاوانونه و خلګو ته اړولي دي.

اللهم احفظ اهل الاسلام من الفتن والزلزال برحمتک یا ارحم الراحمین آمین آمین آمین.

لا إله إلا الله محمد رسول الله

الله نور السموت والارض

## د تفسیر ایوبي حنفي د مضامینو فهرست

تفسير ایوبي حنفي۱۰ ټوک
د نصیراحمد احـمدي لخوا
سکین او pdf سـو.
تاریخ. ۳-۱۱-۱۳۹۸
واتساپ، ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹
د دعـا محـتـاج احـمـدي!

